گلیزیرمان

# د ټولنیز پرمختگ قوانین:

# د هغو څرنگوالی او پکارول



 د «پروگرس» نشراتي مؤسسه

# د مندرجاتو فهرست

Dzwa:k Mənd

## گرانو لوستونکو !

د «پروگرس» نشراتي مؤسسه هیله لري چې تاسې د کتاب د مضمون او لهجې او همدارنګه د هغه د طباعتي هنر او ډیزاین په هکله خپلې نظریې او پیشنهادونه په لاندیني پته راواستوئ : شوروي اتحاد، مسکو، زوبوفسکي بولوار ۱۷، د «پروگرس» نشراتي مؤسسه.

## د «پروگرس» نشراتي مؤسسه

### لاندي کتابونه له چاپ څخه راوزي:

ن. کوليسوف. «د سوسياليزم سياسي اقتصاد په سوالونو او ځوابونو کې» (د ټولنيزو پوهنو د درسي کتابونو سلسله).

دغه کتاب ديته رابلل شويدی چې د سوسياليزم د سياسي اقتصاد په زده کولو کې له لوستونکو سره فعاله مرسته وکړي. د کتاب ليکونکی، نوميالی شوروی اقتصادپوه په عامفهمه او لنډه توگه سره مبرمو سوالونو ته ځواب ورکوی.

دغه کتاب د اقتصادی پوهې هغه پرمختگ بيانوی چې د شوروی اتحاد د کمونست گوند ۲۶ کنگری تری نتيجه اخيستې ده.

دغه کتاب د سياسي اقتصاد د مطالعې سره ټولو علاقمندانو ته وقف شويدی.

## ز. یانکووا. «شوروی ښځه»

په شوروی اتحاد کی د کارګرو او منسوبینو په عمومی شمیر کی د ښځو ونډه په سلو کی ۵۱ تشکیلوی. شوروی ښځی نن ورځ د ټولنیز ژوندانه په ټولو برخو کی ستر رول لوبوی.

د شوروی اتحاد د علومو د اکاډمۍ د سوسیولوجی څېړنو د انستیتوت د مشری علمی همکاری یانکووا کتاب شوروی ښځو، د هغو کار او زیار، پرابلمونو او اندیښنو ته وقف شویدی. مؤلف د خپلی معاصری ښځی اجتماعی سیما انځوروی، د ماشومانو او د لوئېدونکی نسل په روزنه کی دهغی رول ښئی. په دغه کتاب کی له ښځی سره د مرستی د اجتماعی تدابیرو سیستم ته چی د هغی د شخصیت تشکل او غوړېدنی ته لاره هواروی، زیاته پاملرنه وقف شویده.

ګلیزیرمان



# د ټولنیز پرمختګ قوانین:
# د هغو څرنګوالی او پکارول

د «پروګرس» نشراتي مؤسسه



Г. Глезерман

**ЗАКОНЫ ОБЩЕСТВЕННОГО РАЗВИТИЯ: ИХ ХАРАКТЕР И ИСПОЛЬЗОВАНИЕ**

*На языке пушту*



د مشهور شوروی فیلسوف گ. اې. گلیزیرمان په کتاب کې د ټولنیز پرمختګ د مارکسیستي تیورۍ اساسي مسئلې څیړل کیږي. د تاریخي ماټریالیزم د قوانینو د خصلت او خصوصیاتو توضیح کولو او په خپل فعالیت کې د انسان له خوا د هغو څخه استفادې ته ډیره پاملرنه شویده. د ټولنیز اقتصادي نظام په باره کې د مارکسیستي تعلیماتو شرح ته او په تیره بیا د ټولنیزو اقتصادي نظامونو د بدلون د عمومي قانونمندۍ او له یوه نظام څخه بل نظام ته او مخصوصاً سوسیالیزم ته د ځانګړو هیوادونو او اولسونو د انتقال د شکلونو د خصوصیتونو تر منځ د متقابل ارتباط تحلیل ته ډیره توجه راګرزیدلې ده.



په شوروي اتحاد کې چاپ شویدی

Г $\frac{0302020200-451}{014(01)-83}$ 295—83

# د ادارې له خوا

د ژوند د ټولو پدیدو له جملې څخه تر ټولو پیچلې پدیده ټولنیز ژوند دی. هره ټولنه ټاکلې مولده قواوې او تولیدي مناسبات، ټولنیز جوړښت، د ایډیالوژۍ ځانته شکلونه او داسې نور ټکي لري. په ټولنه کې خلک فعالیت کوي چې د ځان په وړاندې ټاکلي هدفونه ږدي او پخپله خپل تاریخ جوړوي. د خلکو د فعالیت په نتیجه کې ټولنه تل بدلون مومي او پر مخ ځي.

آیا په ټولنیز پرمختګ کې قوانین موجود دي؟ دې پوښتنې د ډیرې مودې راهیسې د بیلابیلو اولسونو او هیوادونو د مفکرینو او پوهانو فکر د ځان خوا ته جلب کړیدی. دې پوښتنې ته د لومړي ځل له پاره مارکسیزم بیخي مدلل او علمي ځواب ورکړ چې د ټولنې د پرمختګ قانوني خصلت یې ثابت کړ او د هغه قوانین یې کشف کړل.

په دې کتاب کې لیکونکي د ټولنیز پرمختګ د تر ټولو مهمو قوانینو مضمون نه څرګندوي. هغه پخپل وړاندې زیاته ساده وظیفه ټاکلې ده چې هغه د دغو قوانینو د خصلت، د هغو د درک کولو او له هغو څخه د استفادې د مسئلو روښانول دي. د دې تر څنګ ده دا مصلحت آسیزه وګڼله چې یو لړ هغه مسئلې چې د دې موضوع په څیړلو کې څرګندیږي تر یوې اندازې پورې پراخې کړي او د خپل کتاب وروستي فصلونه داسې مسئلو ته وقف کړي لکه د ځانګړو هیوادونو د خصوصیتونو مطابق د تاریخي پرمختګ د عمومي قوانینو تحول، د سوسیالستي ټولنې د جوړولو د عمومي قوانینو او په بیلابیلو تاریخي شرطونو کې د هغو د څرګندیدو د خاصو شکلونو تر منځ متقابل ارتباط.

دا کتاب د مؤلف د مرګ څخه وروسته چې په ۱۹۸۰ کال کې وشو چاپ شو. دا کتاب د ځینو اختصاراتو او تزییداتو سره چې د ادارې په غوښتنه د روسیې د شوروي سوسیالستي فدراتیف جمهوریت د وتلې علمي شخصیت د فلسفي علومو د ډاکټر پروفیسور خ. ن. مومجان له خوا تر سره شویدي له چاپه ووت.

# ۱ فصل

# د تاریخی ماتریالیزم مضمون او د هغه د قوانینو خصوصیتونه

د بیلا بیلو هیوادونو ټولنیزو مترقي مفکرانو په اوږده موده کی داسی علمي تیوری لټوله چی امکان' برابر کړی" چی د ټولنی پرمختګ توضیح کړی او د ټولنیز پرمختګ په ګټه د هغی د بدلون چاری ته خدمت وکړی. دغسی تیوری (تاریخی ماتریالیزم) د ک. مارکس او ف. انګلس له خوا د تیری پیړۍ په نیمایۍ کی ایجاد شوله. تاریخی ماتریالیزم د ټولنیز پرمختګ قوانین رابرسیره کړل چی د هغو په پیروۍ انقلابی ګوند کولی شی چی مشخص تاریخی شرایط په سمه توګه تحلیل کړی، د طبقاتی قواو د پرمختګ تمایل او د هغو ارتباط وټاکی او ددې مطابق خپل سیاست معلوم کړی او ویی چلوی.

د کمونستی او کارګری ګوندونو یو تر ټولو مهم خصوصیت په دې کی دی چی هغوی خپل فعالیت د ټولنیز پرمختګ د عینی قوانینو د پیژندلو او په کارولو په اساس دروی. د همدغه شی له برکته هغوی کولی شی چی په علمی اساساتو دریدلی او په عملی لحاظ ګټور سیاست تدوین کړی.

تاریخی ماتریالیزم په مارکسیستی لینینی نړۍلید کی چی کمونستی ګوندونه یی پیروی کوی څه ډول ځای لری؟ د علم په حیث د تاریخی ماتریالیزم خصوصیتونه کوم دی؟

## ۱. د تاریخی او دیالکتیک ماتریالیزم متقابل پیوند

مارکسیزم او لینینیزم خالص او پرلهپسی علمی نړۍلید دی. دا نړۍلید په سمه توګه ژوند څرګندوی او د کارګری طبقی اصلی ګټی ښکاره کوی. په هغه کی په نهجلا کیدونکی توګه دیالکتیک او تاریخی ماتریالیزم او د علمی کمونیزم تیوری او اقتصادی پوهنه شامله ده.

ریویزیونیستانو* یعنی د مارکسیزم دښمنانو چې مارکسیستي جامې یې آغوستي دي کوښښ کاوه او کوښښ کوي چې د مارکسیزم د ترکیبي برخو یووالی سره وشلوي او مارکسیزم د بورژوازي فلسفي سره یو ځای کړي.

د ښې اړخ د معاصرو سوسیالیستانو د مفکوره جوړوونکو اکثریت له مارکسیزم څخه اوښتي دي او زیاتره یې ځانونه نور مارکسیستان نه بولي. مګر هغوی لکه په دوهم انترناسیونال کې د خپلو اسلافو په شان زیار باسي چې دا ثابته کړي چې سوسیالیزم د هیڅ ډول فلسفي نړۍ‌لید سره ارتباط نه لري، چې دا کیدلی شي چې سړی په سوسیالستي ګوند پورې تعلق ولري او د نړۍ په برخه کې د هر ډول نظریاتو پیروي وکړي. د آلمان د سوسیال دموکراتیک ګوند پروګرام چې د ۱۹۵۹ کال په نوبمبر کې د هغه په فوق‌العاده کنګره کې تصویب شو دلته ښه مثال دی.

د ښې اړخ د سوسیالیزم ځیني مفکوره جوړوونکي په ګوند کې د یوه واحد نړۍ‌لید د «ناممکن‌توب» د اثبات د پاره حتی د سوسیالیزم په زیاتیدونکي محبوبیت باندې اتکاء کوي. مثلاً و. ایخلیر د آلمان د سوسیال دموکراتیک ګوند په ارګان «Geist und Tat» کې لیکلي و چې سوسیالستي ایدیال «برملا او په بې‌شرمانه توګه کاتولیکان، پروتیستانتان، یهودیان، محمدیان، هندوان، سینتویستان، د کنفوسه پیروان او د ټولو ولسونو لاادریان منلی شي».

هو، زموږ په زمانه کې د سوسیالیزم مفکورو دومره محبوبیت پیدا کړیدی چې د بیلا بیلو نړۍ لیدونو پیروان د هغه خوا ته را ګرزي. مګر آیا دا د دې خبرې معنی لري چې د سوسیالیزم د مفکورو او د علمي دیالکتیک او ماتریالستي نړۍ‌لید تر منځ باطني پیوند له منځه تللی دی؟ آیا دا د دې خبرې معنی لري چې سوسیالستي نهضت خپل طبقاتي خصلت له لاسه ورکړیدی او لکه څنګه چې د ښې اړخ د سوسیالیزم

---

* ریویزیونیزم د مارکسیزم پر اصولو د تجدید نظر ضد علمي طرز دی. دا د انقلابي کارګري نهضت په دننه کې اپورتونستي جریان دی چې د ژوندانه د نوو پدیدو د تخلیقي ادراک په پلمه د مارکسیزم د تیورۍ پر هغو ریښوي اصولو چې په عملي ژوند کې تایید شویدي نوی نظر کوي.

مفکوره جوړوونکی يې انګېرې د ټولو طبقاتو د پاره مشترک هدف تشکيلوي؟

د لويديز آلمان د سوسيال دموکراسۍ يو تيوريشن و. لومار د «Die Zeit» په اوونۍ جريده کې په خپرو شوو تزيسونو کې وايي چې سوسيال دموکراسي په خپل سياست کې د ټولنې د کومې واحدې تيورۍ نه بلکه د «آزادۍ، عدالت او پيوستون د معنوي ارزښتونو» پيروي کوي. نوموړی د ماټرياليستي فلسفې چې کمونستان يې پيروي کوي پر ضد خبرې کوي، «يو علتي ټولنيز او اقتصادي نړۍ‌ليد چې کمونستي ايدیالوژي پرې ولاړه ده» ردوي او د «لوړنيو عقايدو او نظرياتو پلوراليزم (يعنې ډېروالی)» چې ګڼي د هر ذهني پرمختګ د پاره فيصله‌کوونکی شرط شميرل کيږي د هغه په بدل کې دروي *.

مګر د و. لومار د ساده عقيدې پر خلاف کمونستان اصلاً د مشخصو مسئلو په برخه کې د نظرياتو توپير او بحث نه منع کوي. هغوی همدغه رنګه هغه کسان چې واقعاً غواړي د سوسياليزم د پاره مبارزه وکړي مګر علمي نړۍ ليد نه لري له ځانه نه لرې کوي. په عين زمان کې د دې خبرې معنی اصلاً دا نه ده چې د سوسياليزم د لارې مخکښ مبارزين د خپلو موقفونو د مفکوروي ابتناء د پاره علمي نړۍ ليد ته اړتيا نه لري. د مخالفو نړۍ‌ليدونو سره د سوسياليزم د سره يوځای کولو کوششونو هيڅ ته ګټه لا نه ده رسولې.

د ښي اړخ د سوسياليزم د تيوريشنانو له خوا چې د نړۍ ليد په نسبت د ګوند کومه بې‌طرفي اعلان شويده هغه موهومه خبره ده. قولاً د دې خبرې په منلو سره چې «دموکراتيک سوسياليزم» د بيلا بيلو نړۍ‌ليدونو سره يوځای کيدلی شي د ښي اړخ د سوسياليزم تيوريشنان خپله ټوله انرژي د ديالکتيک ماټرياليزم ردولو ته متوجه کوي.

په نړۍ‌ليد کې د «بيطرفۍ» د تبليغاتو او د بې‌ايدیالوژۍ کولو (له ايدیالوژۍ څخه د خلاصون) د بورژوازي تيورۍ تر منځ چې په ۵۰ — ۶۰ کلونو کې يې پراخ ترويج موندلی رابطه په آسانۍ سره ليدل کيدلی شي.

---

* U. Lohmar. Sozialdemokratie und Kommunismus.— «Die Zeit», 21. IV. 1972.

د «ایدیالوژۍ د پای» په باره کې تصورات د مفکورو د یوې مجموعې سره یعنې د دې نظریې سره چې کاپیتالیزم «د عمومي سوکالۍ ټولنې» ته اوړي چې په هغې کې گنې د طبقو تر منځ مخالفت ورکیږي او دا چې کارگرې طبقه په دغه ټولنه کې «انسجام» سوې پیوند لري. مگر څرنگه چې طبقاتي مبارزه لا په زیاته پیمانه تیرې زماني ته لرې کیږي نو طبقاتي ایدیالوژي هم بې‌ضرورته کیږي او سوسیال دموکراسي د کارگرې طبقې له گوند څخه د ټول اولس گوند ته بدلیږي.

لکن د کاپتالیزم پرمختگ د مفکورو دغه ټوله مجموعه له بنسټ څخه ورانوي. د «عمومي سوکالۍ» موعوده «ټولنه» جوړه نه شوه، بلکه د هغې پر ځای د کاپتالیزم د عمومي بحران یعنې د اقتصادي، اسعاري او نورو بحرانونو نور زیاتوالی، د پولي تورم، بیکارۍ ، د کارگرې طبقې د اعتصابونو د مبارزې پراختیا لیدل کیږي.

په دغسې شرطونو کې د هغو مفکورو چې وکولی شي «انسجامي» رول ولوبوي د پیدا کولو د پاره د بورژوازي مفکوره جوړوونکو هلې ځلې زیاتیږي. هغوی د پخو مفکورو چې وکولی شي د «ټولنیزو سمنتو» په شان، «د سیستم د ثبات» د عامل په حیث خدمت وکړي د نشتوالی خطر احساس کړ. په دې اساس باندې د ۶۰ مو کلونو په پای او د ۷۰ مو کلونو په پیل کې د «بیا ایدیالوژي کولو» خوا ته تمایلات پیدا شول. د دې تیورۍ مفکورو هم د ښې اړخ په سوسیال دموکراسۍ کې ترویج پیدا کړ. ولي مطلب دلته علمي سوسیالیزم ته د بیرته گرزیدو څخه نه دی. د دې د پاره تلاش کیږي چې د «دموکراتیک سوسیالیزم» مفکورې د مسیحي بشردوستۍ، «تنقیدي راسیونالیزم» (یعنې معقولیت) او اگزیستینسیالیزم د گډو وډو پیوند کولو له لارې استناد کړي*.

د اپورتونیستانو پر خلاف انقلابي مارکسیستي گوندونو هیڅکله د نړۍ لید په نسبت د بې‌تفاوتۍ اعلام نه دی کړی او نه یې کوي. و. ای. لینین په ټینگار ویل چې د پرولتاریا د انقلابي گوند پروگرام په علمي دیالکتیک او ماتریالیستیک نړۍ‌لید باندې ولاړ دی. د کارگرې طبقې گوند د مارکسیزم د مفکورو سپیڅلتیا، د علمي نړۍ لید

---

* G. Lührs, T. Sarazin u. a. Kritischer Rationalismus und Sozialdemokratie. Bad Godesberg, 1975.

د برې د پاره مبارزه د خپل تن او وجود د چارې په حيث ګماري . او دا څرګنده خبره ده؛ ځکه چې يوازې د مارکسيستي نړۍ‌ليد او مارکسيستي تيورۍ په پيروۍ کارګرې طبقه د کمونيزم برې ته رسيدلی شي. د مارکسيستي نړۍ‌ليد څخه انحراف او په ايدياليزم او ميتافزيک باندې د هغه بدلون د ريويزيونيزم (تجديد نظر غوښتنی) او دوګماتيزم د اشتباهاتو چې په سياست کې د اشتباهاتو موجب کيږي يوه تيورتيکي منبع شميرل کيږي.

د مارکسيستي او لېنيني نړۍ‌ليد د اهميت په باره کې د دغو اصولو په رڼا کې د ديالکتيک او تاريخي ماترياليزم تر منځ نه‌شليدونکی پيوند برملا څرګنديږي. په يو شمير کمونستي ګوندونو کې د معاصرو تجديد نظر غوښتونکو هغه تلاشونه چې له ديالکتيک ماترياليزم څخه د تاريخي ماترياليزم د بيلولو د پاره کيږي ډير غلط او زيان رسوونکي دي. ريويزيونيستان (تجديد نظر غوښتونکي) عقيده لري چې ګڼي تاريخي ماترياليزم د مارکسيستي فلسفي برخه نه ده بلکه يوازې يو علم دی چې ځانته او له فلسفي څخه خپلواک موجوديت لري. په دې ترتيب هغوی هلی ځلی کوی چې د معاصرې بورژوايي سوسيالوژۍ سره چې د هغوی په خبرو يې «د پديدو د ثبت، اندازه کولو او تحليل داسی دقيق طرزونه» جوړ کړيدی چې ګڼي د ايدياليوژۍ او د طبقاتي ګټو له اغيزې څخه خلاص دی د تاريخي ماترياليزم د يوځای کولو لاره پرانيزي. تجديد نظر غوښتونکي چې تاريخي ماترياليزم له ديالکتيک ماترياليزم څخه جلا کوی او هغه له فلسفي او نړۍ ليد څخه ځانګړی اعلانوی په حقيقت کې عملي ځلې کوی چې د تاريخي پروسې مارکسيستي تيورې د ټولنې پيژندنې (سوسيالوژيکو ) په نظرياتو باندې بدله کړي.

تاريخي تجربه ښيي چې د مارکسيزم د واحدې او خالصې پوهنې تجزيه کول هروسرو د هغې د تحريف موجب کيږي.

د فلسفي ريويزيونيزم (تجديد نظر غوښتنی) سره په مبارزه کې و. ای. لېنين د ديالکتيک او تاريخي ماترياليزم پر يووالی او نه بيليدونکي خصلت باندې ټينګار کاوه. هغه ليکلي وو چې د مارکسيزم په فلسفه کې چې «د فولادو له يوې ټوټې څخه جوړه شويده د هيڅ يوې عقيدې ايستل، د هيڅ يوې مهمې برخې ايسته کول... پرته له

دې چې سړی د بورژوايي ارتجاعي دروغو په غېږ کې وروپرېوزي ناممکن دی» *.

د ديالکتيک او تاريخي ماترياليزم تر منځ د باطني پيوند او نهشليدونکی وحدت ماهيت په څه شي کې پروت دی؟

تاريخي ماترياليزم د بشري ټولنې د ادراک په برخه کې د فلسفي ماترياليزم او ديالکتيک د اصولو د باب کولو نتيجه ده. په دې بنياد تاريخي ماترياليزم پر عمومي ماترياليستيکي (مادي) نړۍ‌ليد باندې اتکاء کوي. له بلې خوا تاريخي ماترياليزم دې نړۍ‌ليد ته اتمام ورکوي او د کمال حد ته يې رسوي. يوازې د تاريخي ماترياليزم په پيدايښت سره فلسفي ماترياليزم د دې توان تر لاسه کوي چې نه يوازې د طبيعت بلکه د ټولنيز ژوند پديدې په علمي توګه تعريف کړي.

څکه خو نو نه شي کيدلی چې تاريخي ماترياليزم د يوه ځانګړي علم په حيث وڅېړل شي د کوم په نسبت چې د ديالکتيک ماترياليزم له طرز څخه استفاده کيږي. دا د مارکسيستي فلسفي نهبېليدونکی برخه ده چې له هغې څخه پرته مارکسيستي او لېنيني نړۍ‌ليد ناشونی برېښي.

تاريخي ماترياليزم تر ټولو لوړی څکه فلسفي علم دی چې د ټولنې په برخه کې د فلسفي اساسي مسئله حل کوي چې هغه د ژوند سره د شعور برخورد دی. د دې مسئلې په حل کولو کې د ديالکتيک او تاريخي ماترياليزم وحدت ليدل کيږي. که چيرې ديالکتيک ماترياليزم په عيني توګه واقعي ژوند د شعور څخه جلا شميري نو تاريخي ماترياليزم ټولنيز ژوند عيني واقعيت بولي چې د ټولنيز شعور څخه جلا دی **. په دواړو برخو کې شعور او په هغه جمله کې ټولنيز شعور د عيني واقعيت د زيات يا لږ دقيق انعکاس په حيث څېړل کيږي. د ټولنيز ژوند په نسبت د ټولنيز شعور د برخورد مسئله په تاريخي ماترياليزم کې هماغه ځای لري چې په ديالکتيک ماترياليزم کې يې د ژوند سره د ذهن د برخورد په باره کې عمومي مسئله غوره کوي. دا د ټولنې په باره کې د پوهنې اصلي مسئله ده چې د هغې د حل

---

* و. ای لېنين. کليات، ۱۸ ټوک، ۳۴۶ مخ.

** و. ای. لېنين. کليات، ۱۸ ټوک، ۳۴۶ مخ.

کولو مختلف طرزونه د تاریخ د ماتریالیستیک او ایدیالیستیک درک ترمنځ فاصل حد ټاکي.

د تاریخي ماتریالیزم دغسي مفاهیم لکه ټولنیز ژوند او ټولنیز شعور، مادي او ایدیالوژیک مناسبات او نور د دیالکتیک ماتریالیزم د مربوطو مفاهیمو دوام او تدقیق شمیرل کیږي. تدقیق (نه یوازي دوام) ځکه ضروري دی چي د دیالکتیک ماتریالیزم د مفاهیمو څخه چي په عمومي توګه واخستل شي په خالصه منطقي لار د ټولنیز ژوند د ادراک مخصوصو (خاصو) پوښتنو ته ځواب نه شي ورکول کیدلی.

ددې خبري د توضیح کولو د پاره به د ژوند او مادې عمومي مفهوم راواخلو. دیالکتیک ماتریالیزم مادي اشیا، پدیدی، مناسبات چي د انسان د شعور څخه په مستقلانه توګه وجود لري تعریف کوي. مګر ټولنیز ژوند د طبیعت څخه په دې کي توپیر لري چي ټولي ټولنیزي پدیدی او مناسبات د انسانانو د فعالیت نتیجه ده او انسانان باشعوره موجودات دی. په دې مناسبت پوښتنه پیدا کیږي چي آیا په ټولنه کي داسي مناسبات هم وجود لرلی شي چي د انسانانو په ټولنیز شعور پوري تعلق و نه لري، په دغه شعور باندی و نه ټاکل شي بلکه برعکس دا مناسبات شعور وټاکي؟ د دې مسئلی په حل کولو سره تاریخي ماتریالیزم د ټولنیز ژوند مفهوم ایجاد کړ او مادي مناسبات یې د ټولنیزو مناسباتو د پیچلي او هراړخیزې شبکې څخه بیل کړل. د دې له برکته د فلسفي ماتریالیزم اساسي اصول د انسان له خوا د ټولنې د درک کولو په چاره تطبیق شول ولی په عین حال کي د مادي نړۍ د ځانته برخي په حیث د ټولنیز ژوند د خصوصیتونو د سنجش سره‌آسم تدقیق شویدی. د «ټولنیز ژوند»، «مادي ټولنیزو مناسباتو» او نورو مفاهیمو کي په دې بنیاد نه یوازي هغه څه چي بشري ټولنه د ټولي پاتي مادي نړۍ سره یوځای کوي بلکه هغه څه چي د ټولنې خصوصیتونه تشکیلوي څرګند شویدی.

همدغه‌رنګه د فوق‌العاده انکشاف («خېز») چي د پرمختګ کیفي مرحلي یو له بل څخه بیلوی د ټولنیزو انقلابونو په تعلیماتو کي د ټولنیز ژوند په برخه کي مشخص کیږي چي د هغو له لاری له یوه ټولنیز او اقتصادي نظام څخه بل لا ډیر اوچت ټولنیز او اقتصادي نظام ته انتقال ترسره کیږي. د ټولنیز انقلاب تعلیمات ښیي چي بشري

ټولنه د طبیعت په څیر نه یوازې د تحولي بلکه د انقلابي بدلونونو له لارې چې د تاریخ په ټول جریان کې د ژور اوښتون معنی لري پرمختګ کوي. د دې نه علاوه د ټولنیز انقلاب مفهوم خپل خاص مضمون لري. دا مفهوم د ټولنې د پرمختګ خصوصیت ښيي چې په هغې کې نوې ټولنیز او اقتصادي نظام د تر ټولو شدیدې طبقاتي مبارزې په نتیجه کې د زاړه نظام ځای نیسي.

په دې ترتیب د تاریخي ماتریالیزم اساسي اصل نه یوازې د ټولنیز ژوند د مطالعه کولو په برخه کې د دیالکتیک ماتریالیزم د اصولو دوام بلکه د هغو تدقیق کول هم دی. د هغو تر منځ داخلي ارتباط موجود دی او په عین حال کې د تاریخي ماتریالیزم اصول مخصوص ټولنیز مضمون لري.

مګر دا داخلي ارتباط په دې معنی نه دی چې دیالکتیک ماتریالیزم تر تاریخي ماتریالیزم مخکښې منځ ته راغلی دی. داسې فکر کول چې دیالکتیک ماتریالیزم له اوله پوره منځ ته راغی او وروسته تر دې له هغه څخه د بشري ټولنې په پوهیدلو کې استفاده وشوه ناسم کار دی. د مارکسیستي فلسفي د جوړښت د تاریخي پروسې څېړنه ښيي چې دیالکتیک او تاریخي ماتریالیزم د ک. مارکس له خوا د هغو په نه‌ماتیدونکي وحدت کې او د هغه د معنوي انکشاف په یوه دوران کې ایجاد شول. د دې پرمختګ محرکه قوه د انقلابي مبارزې ربښتونې ایجابات وو چې مارکس ته یې د هیګل د ایدیالیزم بې‌اساسي، د ربښتوني ټولنیز ژوند چې د طبقاتو او د هغو د مادي ګټو له تصادم څخه ډک دی د عمومي عقل د تجسم په حیث د دولت د ایدیالیستیک درک نامعقولیت ښیي. په دې ډول د ټولنیزو مسئلو همدغه تحلیل د مارکس له خوا د نوي نړۍ‌لید د جوړولو د پاره فیصله کوونکي اهمیت درلود. له ایدیالیزم څخه ماتریالیزم ته او له انقلابي دموکراتیزم څخه کمونیزم ته انتقال چې په «آلماني او فرانسوي کالنۍ» کې د مارکس په مقالو کې تاکل شوی وو د ک. مارکس او ف. انګلس د «مقدسي کورنۍ» او «آلماني ایدیالوژۍ» په مشترکو آثارو کې خپل تکامل بیا موند. په نوموړو آثارو کې د دیالکتیک او تاریخي ماتریالیزم اساسي اصول بیان شویدي.

د تاریخي ماتریالیزم ایجاد د پخواني ماتریالیزم د تنګ‌نظرۍ او

محدودیت د له منځه وړلو ضروري شرط شمیرل کیده. څرګنده ده چې ټولو ماتریالیستانو د ک. مارکس څخه پخوا یوازې طبیعت په ماتریالیستیکې لحاظ پیژانده او د ټولنیز ژوند په تعریف کې ایدیالیستان پاته کیدل ځکه خو نو د هغوی ماتریالیزم تر ټاکلې اندازې پورې محدود وو. فلسفي ماتریالیزم تر هغه وخته پورې چې د بشري ټولنې د پوهیدلو د پاره ترویج ونه موسی تکمیل شوی او د ټولې دنیا معرف نه شي شمیرل کیدلی. یوازې د ک. مارکس او ف. انګلس له خوا د تاریخي ماتریالیزم په جوړیدو سره فلسفي ماتریالیزم «تر سره پورې ایجاد شو». په دې ترتیب خالص ماتریالیستیک نړۍ‌لید پیدا شو.

یوازې د تاریخي ماتریالیزم په اساس د پراکتیک د رول مارکسیستي علمي مفهوم ایجادیدلی او د انسانانو د ادراک د پرمختګ د پاره د هغوی د ټولنیز تاریخي فعالیت اهمیت څرګندیدلی شو. دیالکتیک ماتریالیزم د پخوانې مشاهدوی ماتریالیزم پر عکس پراکتیک د ادراک د پروسې د توضیح کولو د بنسټ په حیث وپیژاند او همدغه‌رنګه یې د حقیقت د محک په حیث هم د هغه اهمیت څرګند کړ. د مارکس څخه مخکښې د ځینو پخوانیو ماتریالیستانو پر خلاف (مثلاً ف. بیکن) په مارکسیزم کې پراکتیک د علمي او تخنیکي تجربې څخه عبارت نه دی بلکه د انسانانو مادي ټولنیز او تاریخي فعالیت احتوا کوي چې د طبیعت او ټولنې بدلولو ته متوجه وي.

د ک. مارکس له نقطه نظره فلسفه د نړۍ د انقلابي اوښتون وسیله شمیرل کیږي. د مارکسیستي فلسفې دغه مؤثر خصلت د تاریخي ماتریالیزم څخه پرته چې د انسانانو د ټولنیزو مناسباتو د بدلون د پاره د هغوی د عملي فعالیت ضرورت ښیي نه شي درک کیدلی. ک. مارکس او ف. انګلس لا په «مقدسه کورنۍ» کې ښودلې وه چې کارګري طبقه باید د خپلې آزادۍ د پاره لکه څنګه چې د هیګل د کیڼ اړخ پیروانو تصور کاوه نه یوازې د شعور (ذهن) په ساحه کې د پانګې مفهوم له منځه یوسي بلکه په خپله په ژوند کې کاپټالستي مناسبات لغو کړي یعنی دا چې عملاً هغه نابود کړي. یوازې د ماتریالیستیک نقطه نظره په تاریخ باندې په ځان خبرولو سره کیدلی شي چې د مارکس د مفکورې د نبوغ ارزښت وټاکل شي چې ویلې یې وو چې «فیلسوفانو په بیلا بیلو طرزونو د

نړۍ تعبیر کړیدی مګر مطلب په دې کې پروت دی چې هغې ته تغییر ورکړی شي» *.

په دې ترتیب دیالکتیک او تاریخي ماتریالیزم یو له بل سره اصلي او نه‌شلیدونکی پیوند لري. دا د واحد نړۍ‌لید دوی برخې دی. ځکه خو نو د هغو د سره شلولو د پاره هر ډول کوششونه بې‌نتیجې او بې‌اساسه دي.

د دیالکتیک ماتریالیزم څخه انکار هرومرو د تاریخي ماتریالیزم د ردولو موجب کیږي.

په دیالکتیک باندې سترګې پټول او په ټولنیز ژوند کې د هغه څخه د استفادې ردول لکه په فلسفي ماتریالیزم باندې د سترګې پټولو په شان هرومرو د تاریخي ماتریالیزم څخه د انکار موجب هم کیږي.

دا خبره نن په وضاحت سره د معاصرو تجدید نظر غوښتونکو په تیوریو کې چې هغه سوسیالیزم ته د کاپتالیزم د «خودبخوده» اوښتون څخه عبارت دی لیدل کیږي. د دغو تیوریو عمومي خصوصیت د طبیعي او نه‌لارښودل شوي پروسې په حیث چې د مولده قواو د ودې، د تخنیکي پرمختګ او نورو څخه په طبیعي ډول سرچینه اخلي د سوسیالیزم خوا ته د خوځون د څرګندولو کوشش دی.

البته په مولده قواو کې او په تیره بیا د تولید په تخنیک کې تغییرات د اقتصادي مناسباتو د بدلون ضرورت پیدا کوي. مګر د اقتصادي نظام اساسي بدلون پخپله نه ترسره کیږي. یوازې انقلابي اوښتون چې د مترقي طبقې له خوا ترسره شوي وي پخواني تولیدي مناسبات ړنګول او په دې ترتیب د مولده قواو د ژر تر ژره پرمختګ په لاره کې خنډونه له منځه وړلی شي. که چیرې ټولنیز ژوند د هغه د اړخونو د ژوندي تعامل څخه بهر څیړل کیږي نو د دې معنی دا ده چې تاریخي ماتریالیزم په بازاري «اکونومیزم»، «عینیت» («ابجکتویزم») سره بدلیږي چې د سیاست مؤثر رول او پر اقتصاد باندې د هغه مقابل تأثیر په نظر کې نه نیسي. او دا خبره د تاریخي ماتریالیزم د انقلابي روحیې د مړه کیدو، د پرولتاریا د سیاسي ګوند د رول د ښکته کیدو، د کهالت

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۴۲ ټوک، ۲۶۳ مخ.

د تبلیغ او د حوادثو د طبیعی او نه لاړښودل شوی جریان په وړاندی د سر ټیټولو موجب کیږی.

## ۲. د نورو ټولنیزو علومو سره د تاریخی ماتریالیزم متقابل مناسبات

تاریخی ماتریالیزم د مارکسیزم د فلسفی د نه‌بیلیدونکی برخی په حیث په عین وخت کی د پلټنی خپل خاص مضمون لری. که چیری دیالکتیک ماتریالیزم د ژوند سره د ذهن مناسبات مطالعه کوی او دې پوښتنی ته ځواب ورکوی چی نړۍ څه ډول ده او د خوځون او پرمختګ کوم عمومی قوانین پکښی پراته دی او تأثیر کوی نو تاریخی ماتریالیزم د مادی نړۍ د خاصی برخی په حیث د ټولنی په نسبت همدغسی مسئلی حل کوی. د تاریخی ماتریالیزم د پلټنی موضوع بشری ټولنه او د هغی د پرمختګ عمومی قوانین دی.

مګر تاریخی ماتریالیزم د کلمی په پخوانۍ معنی د تاریخ فلسفه نه ده. تر مارکس دمخه ټولنیزو مفکرانو هلی‌ځلی کولی د طبیعی فلسفی په شان د تاریخ فلسفه جوړه کړی یعنی د تاریخی پروسی په هکله تعلیمات ایجاد کړی چی د ټولنیز پرمختګ په مشخصو مطالعاتو نه بلکه په تجریدی فلسفی نظریاتو باندی بنا وی. زیاترو ټولنی پیژندونکو پخپلو تیورتیکی مفکورو کی پرته له دې چی ټاکلی ټولنیز او اقتصادی نظامونه مطالعه کړی د ټولنی مجرد تشخیص په نظر کی نیوه. و. ای. لېنین پخپل «د خلکو دوستان څوک دی او څنګه هغوی د سوسیال دموکراتانو پر ضد جګړه کوی؟» نومی اثر کی په دغسی ټولنی پیژندونکو باندی ملنډی وهلی دی. هغه لیکلی وو چی د دې پوښتنو څخه چی ټولنه څه شی ده، پرمختګ څه شی دی او داسی نور لکه څنګه چی مثلاً ګ. سپینسر دا کار کاوه د علم پیل کول په دی معنی دی چی سړی له پایه پیل وکړی. لېنین د دغو ټولنی پیژندونکو په مقابل کی مارکس وړاندی کاوه چا چی د ټاکلی ټولنیز او اقتصادی نظام یعنی پانګوالۍ د پرمختګ په مطالعه کولو سره د تاریخ د ماتریالیستی پوهیدلو عمده

اصول چي د هغه د اقتصادي آثارو د پيدايښت څخه پخوا يې يوازې د فرضيې حيثيت درلود تاييد کړل او په علمي اساس يې ودرول. موږ وينو چې د مارکسيزم او لېنينيزم بنسټ ايښودونکو د مشخصو ټولنيزو او اقتصادي نظامونو له مطالعه کولو څخه د ټولنې د پرمختګ د قوانينو د مطالعې پيل کول ضروري بلل. مګر آيا د دې خبرې معنی دا ده چې مارکسيزم د کومې «مجردې» ټولنې او د هغې د پرمختګ د عمومي قوانينو مفهوم په رسميت نه پيژني؟ څرګنده ده چې نه. دا مسئله چې د ټولنې د پرمختګ د عمومي قوانينو په باره کې علم څنګه ايجاد شو بايد د دې مسئلې سره چې دا علم څه شی دی سره ګډه نه شي.

د مثال په توګه د ديالکتيک قوانين څنګه کشف شول؟ له اوله انسانانو د خوځون ځانګړې مشخصې شکلونه او قوانين ئې وپيژندل او وروسته د عمومي قوانينو کشفولو ته راتير شول. البته ماده د مشخصو اجسامو څخه بهر «په عمومي توګه» وجود نه لري، همدغه‌رنګه خوځون د هغه د مشخصو شکلونو نه بهر «په عمومي توګه» موجود نه دی. مګر د دې خبرې معنی دا نه ده چې ګنې د طبيعت، ټولنې او انساني تفکر د پرمختګ د عمومي قوانينو په هکله د علم په حيث د ديالکتيک تعريف بې‌اساسه دی.

د ټولنې د پرمختګ عمومي قوانين همدغه‌رنګه خودبخوده د دغو يا هغو ټولنيزو او اقتصادي نظامونو په تاريخي حوادثو کې د هغو د پيدايښت نه پرته تبارز نه کوي. د مشخصو ټولنيزو او اقتصادي نظامونو نه بهر کومه «مجرده» ټولنه وجود نه لري. مګر ددې خبرې معنی دا نه ده چې د بشرې ټولنې او د هغې د پرمختګ د عمومي قوانينو په باره کې علم د موجوديت حق نه لري. وظيفه يوازې په دې کې ده چې دا قوانين بايد په سمه توګه درک کړې شي او د ګ. سپينسر په روحيه، په مجرده توګه او د هغو د څرګنديدو د مشخصو شکلونو څخه جلا تعريف نه کړې شي.

زموږ په نظر د «قانون» او «قانون‌مندۍ» مفاهيم په يوه ساحه پورې اړه لري. د مارکسيزم او لينينيزم د بنسټ ايښودونکو له خوا د دغو مفاهيمو د استعمال دقيقه مطالعه ښيي چې هغوی د دغو مفاهيمو تر منځ ډير زيات توپير نه راوست. مثلاً و. ای. لېنين ليکلي وو چې «د علت، ضرورت، قانون‌مندۍ او داسې نورو عواملو مفکوره د انسان په

ماغزو کې د طبیعت، د حقیقي نړۍ د قوانینو انعکاس شمېرل کېږي»*. هغه د ل. فویرباخ د دې مفکورې طرفداري کوله چې «په طبیعت کې یې عیني قانون‌مندي... چې د ترتیب، قانون او نورو شیانو په باره کې د انسان په تصوراتو سره صرف تقریباً په سمه توګه منعکس شوې وي منلې وه»**.

موږ وینو چې و. ای. لېنین د «قانون» او «قانون‌مندۍ» تر منځ ډېر زیات توپیر نه راولي او قوانین او علمي مفاهیم د انسان په ذهن کې د جاویداني خوځېدونکي او پرمختګ کوونکي طبیعت د عمومي قانون‌مندۍ او د طبیعت د قوانینو د انعکاس د شکل په حیث څېړي***.

د «قانون‌مندۍ» او «قانون» تر منځ په مفاهیمو کې توپیر یوازې په لږو فروعاتو کې پروت دی. قانون‌مندي د پروسې عمومي خصلت څرګندوي چې د تصادفونو انجړبنجړه ذخیره نه ده چې ضروري تواتر ته تابع وي، د یوه مشخص ترتیب لاندې وي چې د انسان په اراده او شعور پورې تعلق نه لري. قانون د ځانګړو پدیدو تر منځ ټاکلي پیوند ښیي. موږ پوهیدلی یا اټکل کولی شو چې کومه یوه پدیده قانون‌مندانه رابرسیره کېږي او تصادفي نه وي مګر باید هغه مشخص قانون هم کشف کړی شي چې دا پدیده د هغه تابع وي.

په عین حال کې و. ای. لېنین د علم قوانین او د عیني نړۍ قوانین په ډېر دقت سره بېلول او د علم قوانین یې د عیني نړۍ د قوانینو د تقریباً سم انعکاس په حیث ګڼل. لکه د طبیعت او ټولنې د قوانینو په شان د علم قوانین هم عیني خصلت لري منتها په بېلا بېلو مفاهیمو. د عیني نړۍ قوانین په دې مفهوم دي چې هغه د انسانانو د شعور څخه دباندې او په مستقلانه ډول وجود لري او د علم قوانین (په ډېر یا کم دقیق ډول) د طبیعت د قوانینو هغه عیني تصویر دی چې د انسان په ذهن کې پیدا کېږي.

ډېر علوم د ټولنیز ژوند په مطالعه کولو بوخت دي. د نورو ټولنیزو علومو په مقایسه د تاریخي ماتریالیزم خصوصیت په څه شي کې

* و. ای. لېنین. کلیات، ۱۸ ټوک، ۶ مخ.
** و. ای. لېنین. کلیات، ۱۸ ټوک، ۱۵۹ مخ.
*** و. ای. لېنین. کلیات، ۲۹ ټوک، ۱٦٤ مخ وګورئ.

پروت دی؟ د تاریخی ماتریالیزم د موضوع او د هغه له خوا د مطالعه کیدونکو قوانینو خصوصیت کوم دی؟

دغو پوښتنو ته د سم ځواب ورکولو د پاره لازمه ده چی لومړی، د ټولنی د پرمختګ د عمومی قوانینو او د ټولنیزو او اقتصادی نظامونو د خاصو قوانینو متقابل ارتباط، دوهم د ټولنی د پرمختګ د عمومی قوانینو او د ټولنیز ژوند د ځانګړو اړخونو او ساحو د پرمختګ د قوانینو تر منځ متقابل ارتباط وڅیړل شی.

د دغو مسئلو لومړۍ مسئلی ته مخصوص فصل وقف شوی نو ځکه به موږ دلته پری په لنډه توګه وغږیږو.

د ټولنیز پرمختګ قوانین په عمومی چی په ټولو یا کم تر کمه په یو لړ ټولنیزو او اقتصادی نظامونو کی حکمفرما وی او په مخصوصو قوانینو چی په ځانګړو ټولنیزو او اقتصادی نظامونو کی موجود وی ویشل کیږی *.

دا به لویه اشتباه وی چی سړی فکر وکړی چی په ژوند کی یوازی مخصوص قوانین موجود دی. که چیری دا قوانین د دغه یا هغه نظام (فرماسیون) د موجودیت شرطونه څرګندوی نو عمومی قوانین د هر ډول بشری ټولنی د موجودیت شرطونه ښیی. په دې ترتیب تیر له دی چی ټولنه د پرمختګ په کومه مرحله کی واقع ده او په کوم ټولنیز نظام کی خلک ژوند کوی د هغوی د موجودیت تر ټولو مهم شرط تولید دی. د تولید فیصله کوونکی رول عمومی قانون شمیرل کیږی چی د ټولنیز پرمختګ په ټولو مرحلو کی نفوذ لری.

البته په دی قانون باندی پوهیدل لا دا امکان نه برابروی چی د هر ځانګړی نظام ټا کلی خصوصیتونه معین کړی شی. د هغو د معلومولو د پاره باید د مربوط نظام (فرماسیون) د تولید د طرز خصوصیت ولټول شی. لکن د عمومی قانون په هکله معلومات له سړی سره مرسته کوی چی په دی خبره باندی پوه شی چی د ټولنیز ژوند په کومه ساحه کی باید د ټولنی

---

* داسی قوانین هم شته چی د دغه یا هغه نظام (فرماسیون) د پرمختګ په ځانګړو مرحلو کی حکمفرما دی. د کار له مخی د نعمتونو د ویش اقتصادی قانون چی یوازی د کمونیزم په لومړۍ مرحله کی نفوذ پیدا کوی د هغو له جملی څخه دی.

د مترقي پرمختگ اساس ولټول شي. مثلاً که چېرې موږ وغواړو د سوسیالستي ټولنی د مترقي پرمختگ او کمونستي ټولنې ته د هغې د تدریجي انتقال په شرطونو باندې پوه شو نو مهمه دا ده چې په عمومي قانون باندې پوه شو او په دې پرمختگ کې د تولید فیصله کوونکی رول په نظر کې ونیسو . د دې له فیضه به موږ د کمونستي ټولنې د مادي تخنیکي بنسټ د جوړېدو په لزوم چې د کمونستي ټولنې د لومړۍ څخه دوهمې مرحلې ته د انتقال فیصله کوونکی شرط شمېرل کېږي پوه شو.

د عمومي او خاصو قوانینو نفوذ یو په بل کې گډېږي څکه نو هغه یو له بله په جلا توگه نه شي څېړل کېدلی. نه ښائي چې هغه یورنگه وگڼل شي. دا قوانین سره بیل دي څکه چې د ټولنیزو پدیدو تر منځ د بیلو ډولونو مهم روابط ښرگندوي. عمومي قوانین د ټولنیزو پدیدو تر منځ هغه ضروري روابط ښرگندوي کوم چې په ټولو نظامونو (فرماسیونونو ) پورې تعلق لري او خاص قوانین هغه روابط افاده کوي چې یوازې په یوه نظام (فرماسیون) پورې اړه لري.

تاریخي ماټریالیزم نه شي کولی چې د ځانگړو فرماسیونونو د پرمختگ خاص قوانین هم په نظر کې ونه‌نیسي څکه چې له دې څخه پرته د عمومي قوانینو په عمل باندې پوهېدل ناممکن دي. مثلاً که چېرې په مختلفو نظامونو (فرماسیونونو ) کې یعنې په طبقاتي متضادو ټولنو او په سوسیالستي ټولنه کې د مولده قواو او تولیدي مناسباتو د متقابل ارتباط خصوصیتونه په نظر کې و نه نیول شي نو سړی په دې باندې نه شي پوهېدلی چې د دغه متقابل ارتباط عمومي قوانین څنگه عمل کوي. مگر د یو لړ نورو ټولنیزو علومو مثلاً د سیاسي اقتصاد پر خلاف د تاریخي ماټریالیزم اصلي مضمون په عمومي توگه د ټولنې او د هغې د عمومي قوانینو درک کول دي.

په سیاسي اقتصاد کې معمولاً ځانگړې ټولنیز او اقتصادي نظامونه مطالعه کېږي. له اوله له پانگوالۍ څخه مخکښې د نظامونو (فرماسیونونو ) وروسته د کاپټالیزم (پانگوالۍ ) او بیا د سوسیالیزم اقتصادي مناسبات مطالعه کېږي. ښرگنده خبره ده چې سیاسي اقتصاد د عمومي اقتصادي قوانینو په موجودیت باندې د بطلان کرښه نه راکاږي مگر دا قوانین د دې علم اصلي مضمون نه تشکیلوي. سیاسي اقتصاد زیاتره د ځانگړو ټولنیزو او اقتصادي فرماسیونونو د پرمختگ خاص قوانین، د هرې بیلې

ټولنې د خوځون اقتصادي قوانين مطالعه کوي مګر دا قوانين په بيلا بيلو فرماسيونونو کې سره توپير لري. د هغو د توپير په نظر کې نه نيول تر ټولو عمومي او بې مضمونه اصولو ته د سياسي اقتصاد اړول دي چې ډيرو بورژوازي اقتصادي پوهانو خپل آثار له هغو څخه ډک کړي او دا مشغوليت يې د توليد د عمومي قوانينو د څيړلو په حيث ښودلې دي. د هغوی په نامه د «انتي ديورينګ» په اثر کې د ف. انګلس له استهزاء ډکې خبرې متوجه دي چې وايي «هغه څوک چې غواړي د اورينې ځمکې (د جنوبي امريکا يوه ډيره وروسته پاته سيمه ده — مترجم) د سياسي اقتصاد او د معاصر انګلستان د سياسي اقتصاد يورنګه قوانين منځ ته راولي هغه صرف مبتذلې عمومي خبرې کوي او بس» *. د بشري ټولنې د پرمختګ په بيلابيلو مرحلو کې د توليد او د مادي نعمتونو د ويش د خاصو قوانينو مطالعه د سياسي اقتصاد اصلي مضمون شميرل کيږي.

په تاريخي ماټرياليزم کې د عمومي قوانينو (څرګنده خبره ده چې د اقتصادي قوانينو نه بلکه د عمومي سوسيالوژيکو قوانينو) مطالعه کول بل مطلب لري. تاريخي ماټرياليزم هم نه شي کولې چې د ځانګړو نظامونو (فرماسيونونو) د خاصو قوانينو اختلاف له نظره وغورزوي مګر د هغه اصلي توجه د تاريخي پروسې د عمومي قوانينو چې په ټولو يا کم تر کمه په يو څو ټولنيزو او اقتصادي نظامونو کې موجودي دي مطالعې ته اوښتې وي.

تاريخي ماټرياليزم د تاريخي پروسې عمومي تيوري ده چې د ټولنيزو او اقتصادي فرماسيونونو د پرمختګ د مطالعه کولو په اساس جوړه شوې ده او په عين زمان کې دا د ټولنيزو پديدو د ادراک متود شميرل کيږي. د ټولنې د پرمختګ د عمومي قوانينو پوهنه ټولنيز شخصيتونه او همدغه رنګه هغه پوهان چې د تاريخ د بيلا بيلو دورو يا د ټولنيز ژوند د ځانګړو اړخونو په مطالعه کولو بوخت دي د ادراک په سم طرز سره سنبالوي.

ځيني مؤلفين چې د بشري ټولنې د پرمختګ د عمومي قوانينو په باره کې د علم په حيث د تاريخي ماټرياليزم له تعريف سره موافق دي

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۲۰ ټوک، ۱۵۰ — ۱۵۱ مخ.

عقیده لري چې د طبقاتو او طبقاتي مبارزې، د دولت او ټولنيز انقلاب مسئلې د تاريخي ماترياليزم په مضمون کې نه دي شاملې. د معنوي په عقيده تاريخي ماترياليزم بايد په داسې مسئلو باندې بوخت وي چې ټوليزې د ټولو فرماسيونونو سره ارتباط لري لکه مثلاً د ټولنې او طبيعت، د مولده قواو او توليدي مناسباتو، زيربنا او روبنا او داسې نورو شيانو متقابل ارتباط. هغه څه چې د طبقاتي مبارزې په قانون پورې تعلق لري نو هغه په ټولو ټولنيزو فرماسيونونو کې حاکم نه دي، ځکه خو نو د هغه مطالعه کول د تاريخي ماترياليزم په مضمون کې نه شامليږي. يو شمير پوهان عقيده لري چې د طبقاتو، دولت او انقلاب په باره کې مسئلې بايد د علمي کمونيزم په تيورۍ پورې تعلق ونيسي او نور پوهان دا مسئلې د عملي سوسيالوژۍ په چوکاټ کې وردننه باسي.

د عملي سوسيالوژيکو (اجتماعي) پلټنو سره د تاريخي ماترياليزم د ارتباط په باره کې به وړاندې وغږيږو. مګر دوهره وار د واره بايد وويل شي چې د تاريخي ماترياليزم له چوکاټ څخه د پورته ذکر شوو مسئلو ايستل د هغه د قوانينو د پوهيدلو محدودول دي.

د ټولنيز ژوند هغه قوانين چې تاريخي ماترياليزم يې مطالعه کوي عمومي دي او دا عموميت په دوه اړخيزه معنی دی. لومړی لکه مخکښې چې وويل شول په دې معنی چې دا قوانين په ټولو يا کم تر کمه په يو لړ ټولنيزو فرماسيونونو کې وجود لري. دوهم دا چې دا قوانين ځکه عمومي دي چې هغه د يوه سلامت ارګانيزم په صفت د ټولنې د ژوند د بيلا بيلو ساحو او مختلفو اړخونو تر منځ مناسبات څرګندوي. په همدې خصوصيت سره تاريخي ماترياليزم د زياترو ټولنيزو علومو څخه توپير پيدا کوي.

په حقيقت کې سياسي اقتصاد د ټولنيز ژوند يو اړخ مطالعه کوي چې هغه د خلکو اقتصادي او توليدي مناسبات، د توليد، تبادلې او د محصولاتو د ويش مناسبات دي. حقوقي علوم دولت او حقوق، د خلکو تر منځ سياسي او حقوقي مناسبات مطالعه کوي. نور علوم شته چې د ټولنې د معنوي ژوند دا يا هغه اړخونه مطالعه کوي لکه ښکلا پيژندنه، ادبيات پيژندنه، پوهنه او روزنه او نور. د دغو علومو په مقايسه د تاريخي ماترياليزم خصوصيت په دې کې دی چې هغه د ټولنيز ژوند د بيلا بيلو اړخونو تر منځ روابط راسپړي. مثلاً تاريخي ماترياليزم دا ښيي چې د

ټولنې د اقتصادي نظام او په دې اساس د پیدا شوو سیاسي موسسو او ایدیالوژیکو شکلونو تر منځ، د ټولنیز ژوند او ټولنیز شعور تر منځ کوم ارتباط موجود دی. په مارکسیستي ادبیاتو کې منل شویده چې دغه ډول قوانین د سوسیالوژیکو (اجتماعي) قوانینو په نامه یاد شي. د اقتصادي قوانینو پر خلاف دا قوانین د نفوذ پراخه ساحه لري او هم د ابتدایي مرحلې په حیث د تولیدي مناسباتو او هم د هغو د مولود په صفت د ایدیالوژیکي مناسباتو تر منځ ارتباط او پیوند احتوا کوي. مګر که په پراخ مقیاس د سوسیالوژیکو قوانینو په باره کې خبرې وشي نو هم اقتصادي قوانین چې طبعاً ټولنیز قوانین شمیرل کیږي په هغه جمله کې شاملیږي. کله چې و. ای. لېنین «له اقتصادي قوانینو څخه د سوسیالوژیکو قوانینو د جدا کولو» * د کانت د نوو پیروانو د نظریې سره خپل مخالفت څرګنداوه نو زموږ په نظر یې دا مفهوم په ستر مقیاس استعمال کړی و. د «اقتصادي» مفهوم څخه د «سوسیالوژیک» مفهوم د بیلولو په باره کې د پ. ستروو د پیشنهاد په هکله و. ای. لېنین ویلې و چې دا مفکوري «په تعریف کې د تر ټولو بې‌معنی او غیرعملي لوبې څخه پرته چې د کانت پیروانو د «مفاهیمو د انتقاد» غټ او یا حتی د «ادراک» نوم ورته ورکړی د بل هیڅ شي معنی نه لري. زه اصلاً نه پوهیږم چې د دغسې توپیر تاکل څه معنی درلودلی شي؟؟ څنګه کیدلی شي چې اقتصادي د ټولنیز دباندې وي؟؟» **.

و. ای. لېنین د «ټولنیز» کلمه دلته په پراخ مقیاس استعمال کړیده. په دې مفهوم هغه د «اجتماعي» سره (د طبیعي پر خلاف) یو شی دی. اقتصادي مناسبات او پروسې لکه چې و. ای. لېنین ذکر کړیدي په ټولنیزو پدیدو پورې تعلق نیسي. کله چې د «ټولنیز» کلمه په محدود مقیاس استعمالیږي نو مطلب ترې د ټولنې ټولنیز جوړښت، د هغې د طبقاتو او ټولنیزو ډلو، د هغو د سازمانونو تر منځ متقابل روابط، د ذاتونو یعنې د ټولنیزو ډلو، شخصیتونو او نورو تر منځ چې ټولنیز مناسبات پر مخ بیائي اړیکې دي. په دې مفهوم و. ای. لېنین مثلاً د کار د اشتراکي کولو مادي پروسې، د ابتدایي مرحلې په حیث د تولیدي

* و. ای. لېنین. کلیات، ٥٥ ټوک، ١٦٦ مخ.

** و. ای. لېنین. کلیات، ٤٦ ټوک، ٣٠ مخ.

مناسباتو بدلونونه او هغه مناسبات چې د هغو په اساس منځ ته راځي او کوم چې د «پروسې د ټولنيز اړخ، د کارګرو د يو ځای او يوسوټی کيدلو او متشکل کيدلو» * په حيث تعريف کيدلی شي سره بيلول.

د خاصو ټولنيزو علومو او په هغه جمله کې د سياسی اقتصاد پر خلاف تاريخی ماټرياليزم د يوه تمام واحد په حيث د ټولنې د پرمختګ سره سروکار لري.

البته يو بل ټولنيز علم هم شته چې په عمومی ډول د ټولنې د ټولو اړخونو د متقابلی اغيزی په رڼا کې د هغی پرمختګ مطالعه کوی او دا مدنی تاريخ دی. مګر تاريخ دا وظيفه لري چې د تاريخی حوادثو مشخص جريان ترسيم او توضيح کړی خو تاريخی ماټرياليزم نظری علم دی او وظيفه يی دا ده چې هغه عمومی قوانين کشف کړی چې د دغو يا هغو هيوادونو يا ولسونو د ژوند د حوادثو پر مشخص پرمختګ تسلط لري.

په کتابونو کې عقيده څرګنده شويده چې د علم په حيث د تاريخ او د تاريخی ماټرياليزم تر منځ توپير په موضوع نه بلکه د هغی د پلټنې په طرز کې او په دې کې پروت دی چې سورخ د تاريخی او ټولنه پيژندونکی د منطقی طرز څخه استفاده کوی. په ريښتيا هم د تاريخی او منطقی متودونو (طرزونو) تر منځ توپير د تاريخی علم او د تاريخی ماټرياليزم د تيوری خصوصيتونه ټاکی. مګر د پلټنو او څرګندولو د متودونو دا توپير د دغو علومو د مضامينو د خصوصيتونو څخه سرچينه اخلی. سره د دې چې تاريخی علم نه يوازی د ټاکلو دورو قوانين په‌کاروی بلکه کشفوی يی هم بيا هم خالص قوانين د هغه د پلټنې مضمون نه شميرل کيږی. د تاريخ علم د ټولنې په کومه کې چې د هغو قوانينو چې هم د تاريخی ماټرياليزم او هم د ټولو نورو ټولنيزو علومو له خوا مطالعه کيږی د پرمختګ ټاکلی جريان مطالعه کوی او توضيح کوی.

اوس به د پخوانۍ، اوسنۍ او راتلونکی زمانی سره د تاريخی او نظری علومو ارتباط وڅيړو. اکثراً ويل کيږی چې نظری ټولنيز علوم اوسنۍ زمانه او تاريخ تيره زمانه مطالعه کوی.

دې کې شک نشته چې تيره زمانه د تاريخی پوهنی عمده مضمون

---

* و. ای. لينين. کليات، ۱ ټوک، ۱۷۸ مخ.

تشکیلوی. مګر دا یوازې تېره زمانه نه ده. د تېرې او اوسنۍ زمانې، د اوسنۍ او راتلونکې زمانې تر منځ پولې متحرکې دي. تاریخي علم کم تر کمه په خپلو ځینو برخو کې (په هغو کې چې انګرېزان یې «current history» یعنې روان تاریخ بولي) د اوسنۍ زمانې سره هم سروکار لري. د تاریخي پلټنو څخه د آینده زمانې د پاره هم ځینې نتیجې اخستل کېدلی شي. سره د دې چې علمي پیشګویي او مخکېنۍ لید په عمومي توګه د نظري علومو وظیفه شمېرل کېږي چې د پدیدو قانونمندۍ راسپړي بیا هم تاریخي علم په دې بنیاد چې هغه په تجربوي توګه پدیدې نه ترسیموي نو هم د دې قدرت لري چې ځینې مشخص قانونمندۍ څرګندې کړي او د دې مطابق د راتلونکې زمانې پیش‌نظر ووینې.

خاص ټولنیز علوم په اصطلاح د مدني تاریخ او همدغه‌رنګه د تاریخي ماتریالیزم پر خلاف د ټولنیز ژوند د ځانګړو اړخونو پرمختګ پلټي، د هغو تاریخ راسپړي یا د هغو تیوري جوړوي.

د دغو علومو له خوا مطالعه کېدونکې قوانین د ټولنیز ژوند په دغو یا هغو ځانګړو ساحو کې نفوذ لري. کله کله د ټولنیز پرمختګ د قوانینو د تصنیف په وخت کې هغه د ټولنې د اقتصادي، سیاسي او معنوي ژوند په قوانینو باندې ویشل کېږي چې د ټولنیز ژوند بېلا بېلې ساحې احتواء کوي. د تاریخي ماتریالیزم قوانین په دغسې تصنیف کې نه‌ځاییږي ځکه چې د ټولنې د بېلا بېلو اړخونو د متقابلې اغېزې په رڼا کې د هغې پرمختګ څرګندوي. دا قوانین د ټولنیز ژوند د مختلفو اړخونو تر منځ مثلاً د ټولنیز ژوند او ټولنیز شعور، د زیربنا او روبنا، اقتصاد او سیاست او نورو تر منځ متقابل مناسبات او متقابل روابط ښیي.

په دې مفهوم د طبقاتي مبارزې قانون سره د دې چې هغه په ټولو فرماسیونونو کې مسلط نه وي او د ټولنیز انقلاب قانون سره د دې چې په غیرطبقاتي ټولنه کې ټولنیز انقلابونه له منځه ځي د عمومي قوانینو په جمله کې شامل دي. د طبقاتي مبارزې قانون وایي چې په هغو ټولنو کې چې په متضادو طبقو ویشل شوي وي «هر ډول تاریخي مبارزه — که په سیاسي، مذهبي، فلسفي یا په کومه بله ایدیالوژیکه ساحه کې تر سره شي — په حقیقت کې یوازې د ټولنیزو طبقاتو د مبارزې لږ یا زیات څرګند ښکارندوی شمېرل کېږي او د دغو طبقاتو موجودیت او

په عین حال کی یو له بله سره د هغوی مبارزه پخپل وار د هغوی د اقتصادی وضعیت، د پرمختګ د سویې، د تولید او ورپوری د مربوطی تبادلی د خصلت او طرز مولود شمیرل کیږی»*. د ټولنیز انقلاب قانون همدغه‌رنګه هغه بدلونونه چی د ټولنی د ژوند په بیلا بیلو ساحو کی یعنی په اقتصاد، سیاست او ایدیالوژۍ کی تر سره کیږی احتواء کوی. ټولنیز انقلاب د ټولنیز ژوند په دغو ټولو ساحو کی ریښوی بدلون او اوښتون دی چی د یوه ټولنیز او اقتصادی فرماسیون څخه بل لا اوچت فرماسیون ته په تبدیلۍ کی تر سره کیږی.

د ټولنی د پرمختګ د عمومی قوانینو او د ټولنیز ژوند د بیلا بیلو اړخونو د پرمختګ د قوانینو تر منځ کوم متقابل ارتباط موجود دی؟ آیا عموماً سمه خبره ده چی د ټولنیز ژوند د ځانګړو څانګو مثلاً د سیاسی او معنوی اړخونو د پرمختګ د مخصوصو قوانینو په باره کی مسئله مطرح شی؟

د هر مارکسیست د پاره دا اصل مسلم دی چی حقوقی، سیاسی او نور ایدیالوژیک مناسبات لکه د دولت د شکل په شان پخپل پرمختګ کی د ټولنی د اقتصادی بنسټ چی پر هغو باندی فیصله کوونکی تاثیر کوی بدلون څرګندوی. ځکه خو نو هغه بیخی خپلواک تاریخ نه لری او د زیربنا څخه په ځانګړی توګه نه شی څیړل کیدلی. مګر دا د بیلا بیلو ټولنیزو پدیدو نسبتی خپلواکی نه تردیدوی.

د ۹۰ کلونو پخپلو لیکونو کی چی د تاریخی ماتریالیزم په باره کی یی لیکلی وو ف. انګلس دا مسئله د کار د ټولنیز ویش له نقطه نظره وڅیړله. د ټولنیز ژوند هره ساحه د کار د ویش د خاصی ساحی په حیث څیړل کیدلی شی چی په اقتصاد پوری د خپل ټول پیوستون سره سره نسبتی خپلواکی او د اقتصاد پر پرمختګ باندی د متقابلی اغیزی قدرت لری. د کار د ویش د هری دغی ساحی نسبتی خپلواکی د هغو خلکو په نزد چی په دغو ساحو کی مشغول دی له اقتصاد څخه د دغو یا هغو ټولنیزو پدیدو د پرمختګ د خپلواکۍ تخیل پیدا کوی. مثلاً د ټولنیز ژوند د ادراک سره د یواړخیز او میتافزیک برخورد له امله چی جز له

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۲۱ ټوک، ۲۵۹ مخ.

کل څخه شلوی او بیلوی د تاریخ په نسبت د ایدیالستیک نظر د پیدایښت د پاره امکان پیدا کیږی چی د هغه مطابق د حقوقی نظریو، مذهبی عقایدو او فلسفی تعلیماتو پرمختگ ګنی صرف د «مفکورو د توارث» یعنی له اقتصاد څخه پرته د یو ډول مفکورو پر بل ډول مفکورو باندی د تاثیر په څیر کی تر سره کیږی. په استثماری ټولنو کی د تاریخ په نسبت دغسی نظر د حاکمو طبقاتو په ګټو ساتل کیږی او ټینګیږی.

د «مفکورو د توارث» په باره کی تصور په حقیقت کی خیالی دی ځکه لکه څنګه چی وویل شول هیڅ یوه فکری ساحه پرته له بنسټ څخه تاریخی پرمختګ نه شی کولی او بالاخره د اقتصادی اساس خوځون څرګندوی. مګر کذایی مطلقه خپلواکی د ریښتونی موجودی نسبتی خپلواکۍ سره چی په اقتصادی نظام پوری د هری مفکوروی ځانګی د عمومی متابعت په چوکاټ کی ځای لری باید یو شی و نه شمیرل شی. دا نسبتی خپلواکی د دې ساده حقیقت څخه سرچینه اخلی چی د ټولو مفکوروی شکلونو په انکشاف کی تل کلی توارث موجود دی یعنی د دې انکشاف په هره تاریخی سرحله کی خلک په هر صورت له هغه څه څخه استفاده کوی چی د هغوی د اسلافو له خوا ایجاد شویدی.

ف. انګلس د تولید او سوداګرۍ د متقابل ارتباط په مثال سره د نسبتی خپلواکۍ چی د ټولنی د ژوندانه مختلفی ساحی د هغی خاوندی وی موجوده پولی ښکاره کوی. بالاخره تولید فیصله کوونکی رول لری. مګر په مجردی چی سوداګری په تاریخی لحاظ د اقتصادی ژوند خاصی ساحی ته واوړی نو ځانته پرمختګ کوی چی په هغه باندی په عمومی او کلی توګه د تولید د پرمختګ قوانین تسلط لری مګر کوم چی په ځانګړو برخو کی او د دې عمومی ارتباط په چوکاټ په هر صورت خپل قوانین لری *.

د همدې په شان د روبنا د بیلا بیلو څانګو پرمختګ هم کیږی. په عمومی او کلی توګه د هری یوی دغی څانګی پرمختګ د اقتصادی پرمختګ تابع وی مګر د دې ارتباط په چوکاټ کی دا پرمختګ خپل

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۳۷ ټوک، ۴۱۵ — ۴۱۶ مخ وګوریٔ.

قوانین او د دې قدرت لری چی پر اقتصادی مناسباتو باندی متقابله اغیزه وکړی.

د تاریخی ماتریالیزم اصول چی ټولنیز شعور د ټولنیز ژوند انعکاس شمیرل کیږی هغه عمومی قانون ښکاره کوی چی د ایدیالوژۍ د ټولو شکلونو پرمختګ د هغه تابع وی. مګر په عین حال کی هر یو دغه شکل ځانته خصوصیتونه لری. په هنر، فلسفه، اخلاقو او نورو کی عین ټولنیز مناسبات په ځانته ډول انعکاس موسی.

که چیری د دې انعکاس مخصوص قوانین نه وای موجود نو په هغه صورت کی به هغو علوسو چی د ټولنیز شعور د ځانګړو شکلونو په مطالعه کولو بوخت دی د خپلواک موجودیت حق نه درلودلی. که چیری د ژوند د هنری ترسیم هیڅ ډول مخصوص قوانین نه وای موجود نو مثلاً ښکلاپیژندنی او د هنرپیژندنی مختلفو څانګو به څه شی مطالعه کولی؟ د دغسی قوانینو تردیدول به په ساده بیان سره د علم د مربوطو څانګو د وظیفو د محدودولو په معنی وی.

نه یوازی د ټولنیز ژوند بلکه د ډول ډول ټولنیزو سازمانونو او ادارو د بیلا بیلو څانګو مخصوص قوانین موجود دی. مثلاً د ټولنی د سیاسی ژوند په ساحه کی د دولت، ګوند کارګری اتحادیو او نورو قوانین شته دی. د مثال په توګه به پرولتاری ګوند راواخلو. سیاسی ګوند د طبقی یوه برخه ده ځکه خو نو د هغه پرمختګ د طبقاتی مبارزی په عمومی قوانینو سره تاکل کیږی. مګر دا عمومی قوانین د ګوند په پرمختګ باندی څنګه اغیزه کوی؟ و. ای. لېنین څو څو ځله په ټینګار ویلی دی چی هغه اختلافونه چی د کاپیټالستی ټولنی په شرطونو کی (او عموماً د متضادو طبقاتو د موجودیت په شرطونو کی) په کارګری نهضت او دننه په ګوند کی پیدا کیږی اصلاً تصادفی نه دی او د هغو علت نه خو د ځانګړو کسانو یا ډلو په اشتباهاتو او نه خو په ملی خصوصیاتو یا عنعناتو په نفوذ پوری اړه نه لری. د دغو اختلافونو سرچینه د کارګری نهضت په رشد او د ټولنی د بیلا بیلو قشرونو څخه د پرولتاریا کتارونو ته د ډیرو کسانو په داخلیدو کی چی د خپلو نظریاتو، عاداتو او نورو له لحاظه توپیر لری پروت دی. د کارګری طبقی نامتجانس‌والی، په هغی کی د بیلا بیلو قشرونو موجودیت او د کوچنۍ بورژوازی او بورژوایی ایدیالوژۍ فشار هغه تر ټولو زیات

عمومی علتونه دی چی د طبقاتی مبارزی د پرمختګ د هر بدلون په اثر د کارګری طبقی د ګوند په دننه کی اختلافونه او تضادونه پیدا کوی. دا تضادونه د اپورتونیزم پر ضد د پرولتاریا د اصلی ګټو په لاره کی د اصولی مبارزی له لاری له منځه تللی شی چی د هغی په نتیجه کی ګوند پخیږی او ټینګیږی. د شوروی اتحاد د کمونست ګوند تاریخ او د سوسیالستی انقلاب د بری او په شوروی اتحاد کی د سوسیالستی ټولنی د جوړولو په لاره کی د دې ګوند مبارزه د همدې شی تعلیم ورکوی. په اوسنی وخت کی د ریویزیونیزم (تجدید نظر غوښتنی) او دوګماتیزم پر ضد د نړۍ د بیلا بیلو هیوادونو د کمونستی او کارګری ګوندونو مبارزه چی په هغی کی بین‌المللی کمونستی نهضت ټینګیږی د کارګری طبقی د ګوند په پرمختګ کی دا قانونمندی تاییدیږی.

هغه مخصوص قوانین چی د ټولنیز ژوند په بیلا بیلو ساحو کی عمل کوی د عمومی قوانینو څخه نه شی جلا کیدلی. هر بیل ټولنیز او اقتصادی فرماسیون خاص ټولنیز ارګانیزم دی چی د پیدایښت، پرمختګ او بل فرماسیون ته د انتقال خپل قوانین لری. د ټولنیز ژوند د ځانګړو اړخونو په مطالعه کولو کی د هغو د پرمختګ قوانین یوازی په هغه صورت کی درک کیدلی شی چی هغه د کل د جز په حیث د عمومی قوانینو سره په ارتباط کی وڅیړل شی. په دې کی د اقتصاد پرمختګ چی بالاخره د تاریخی پروسی لوری ټاکی د ټولنی په پرمختګ باندی فیصله کوونکی اغیزه کوی.

د خاصو قوانینو د مطالعی سره دغسی برخورد د معاصری بورژوایی اسپیریک (یعنی ترثیمی او تجربوی) سوسیالوژۍ د برخورد سره چی ټولنه د یوه بشپړ ارګانیزم په حیث نه بلکه د ګڼ شمیر ډول ډول ټولنیزو پدیدو د مجموعی په حیث ګنی اصلاً مغایرت لری. اکثراً «میکروسوسیالوجیستان» د ټولنیز ژوند ډیر نشتوکی او حتی دوهمه درجه نه بلکه «لسمه درجه» اړخونه د پلټنی د موضوع په حیث غوره کوی. تر ټولو مهمه خو دا ده چی د دغو اړخونو څیړنه چی د کل څخه په بیلتون کی تر سره کیږی غیرعلمی نتیجی ورکوی. د ډیرو بورژوایی ټولنه‌پیژندونکو په نزد د جزیی پدیدو مطالعه کول د معاصری ټولنی د پرمختګ د اساسی تمایلاتو او د هغی د طبقاتی تضادونو څخه د پام د اړولو او د هغو د غلی کولو وسیلی ته بدلیږی. د لېنین کلمات

چې د ستروویې پر ضد متوجه وې پوره په دغسې «پلټنو» پورې تعلق لري چې ویلې یې و چې «دا د علم څخه سر غړول، په هر ډول تعمیم باندې چورت نه خرابول د تاریخي پرمختګ د هر ډول «قوانینو» څخه پټېدل، ځنګل* په ونو باندې پټول دي...»**.

اوس د لویدیز زیاتره غیر مارکسیستي ټولنه‌پیژندونکي هم د بورژوازي اسپیریک سوسیالوژۍ په محدودیت باندې اعتراف کوي.

ټاکلې او مشخصې پلټنې چې د تاریخي ماتریالیزم له سوقف څخه د حقیقي موادو په تعمیم باندې ولاړې وې د تیورۍ شتمن کولو ته هم خدمت کوي. له تاریخي ماتریالیزم سره خلاق برخورد د دې غوښتنه کوي چې هغه د یوې جامدې نقشې په حیث نه بلکه د یوه ژوندي طرز په حیث چې د ټولنې د تر ټولو مختلفو پدیدو په مطالعه کې او د ټولنیز ژوند د تر ټولو مهمو مسئلو په حل کولو کې ترې استفاده کیږي وڅیړل شي. د دغسې مطالعې فوق‌العاده نمونه د «ستر ابتکار» تر عنوان لاندې د و. ای. لېنین اثر دی. د دې اثر لومړۍ پاڼې د کمونستي سبوتنیکونو (داوطلبانه کارونو) د پیدایښت د پروسې دقیق ترسیم ته وقف شویدې چې د هغې له تحلیل څخه وروسته د کار سره د خلکو په مناسباتو کې د اوښتون، د نوې ټولنیز دسپلین د ترتیبولو، د طبقاتو د له منځه وړلو د لارو او نورو مسئلو په باره کې تر ټولو ژور سوسیالوژیک استنتاجونه کیږي.

تاریخي ماتریالیزم چې بشري ټولنه، د هغې د پرمختګ قوانین د یوه مضمون په حیث مطالعه کوي نو باید د ټولنیز ژوند ډول ډول شکلونه، د ټولنیز ژوند عناصر (مثلاً طبقات، ملتونه او نور) هم عموماً د ټولنې په ژوند کې د هغوی د مقام او رول د نظره مطالعه کړي. په عین زمان کې ډېرې ټولنیزې پدیدې (مثلاً سیاسي او حقوقي مناسبات) چې د دې عمومي نظره د هغو څېړل د تاریخي ماتریالیزم د مسئلو په چوکاټ کې داخلیږي د خاصو ټولنیزو علومو د ځانته پلټنې مضمون تشکیلوي.

---

* د لېنین مطلب سروج روسي متل دی چې وایي «د ونو په منځ کې ځنګل نهویني». دا متل د هغه سړي په باره کې ویل کیږي کوم چې جزییاتو ته ځیر کیږي خو عمومي (کل) شي ته توجه نه کوي.

** و. ای. لېنین. کلیات، ۲۵ ټوک، ٤٤ مخ.

د ډلو علومو شمیر زیات دی او داسی ښکاری چی شمیر به یی نور هم زیات شی ځکه چی د ټولنیزو علومو د طبقه‌بندۍ پروسه لا نه ده بشپړه شوی. ځکه د نوو لا زیاتو تخصصی ټولنیزو علومو چی د ټولنی د ډلو یا هغو اړخونو په مطالعه کولو بوخت وی پیدایښت پوره ممکن دی.

همدغه‌رنګه د سوسیالوژۍ سره د تاریخی ماتریالیزم د مناسباتو په باره کی مسئله هم منځ ته راځی.

تاریخی ماتریالیزم پخپلو فلسفی اصولو کی له عمومی دیالکتیک او ماتریالیستیک نړۍ لید سرچینه اخلی په همدغه وخت کی د بشری ټولنی او د هغی د پرمختګ په باره کی هم خاص او هم تر ټولو عمومی علم او عمومی سوسیالوژیکه تیوری ده چی د ټولنی مشخص جوړښت، په ټولنیزو ډلو باندی د هغی ویش، د مولده قواو او تولیدی مناسباتو تر منځ د متقابل پیوند، د سیاسی نظام او د ټولنیز شعور تر منځ د متقابل پیوند او داسی نور مسایل تحلیلوی.

د ټولنی په څیر د داسی مغلق او ډیر ډلیز شی هراړخیزه مطالعه باید هم عمومی او هم خاصی مسئلی احتواء کړی. ځکه دا مصلحت‌آمیزه ده چی د عمومی سوسیالوژیکی تیورۍ په حیث د تاریخی ماتریالیزم تر څنګ خاصی سوسیالوژیکی تیورۍ هم چی د مشخصو ټولنیزو پروسو د توضیح کولو وظیفه لری ودرول شی. دا تیورۍ د ټولنیزو شیانو (مثلاً کورنۍ، کار او نور) د تحلیل او توضیح سره ارتباط لری. هغه زیاتره د امپیریکو موادو سره پیوند لری او د ټولنیز ژوند په بیلابیلو ساحو کی د عمومی تیورۍ او مشخصو پلټنو تر منځ منځنۍ او واسطه کړۍ شمیرل کیږی.

په وروستیو کلونو کی په شوروی سوسیالوژیکو ادبیاتو کی داسی نظریه تایید شوه چی د هغی مطابق د سوسیالوژیکی پوهنی ډول ډول سویی موجودی دی چی د ټولنیزو پدیدو زیات یا کم پراخی ساحی احتواء کوی. لکه څنګه چی مخکی وویل شول تاریخی ماتریالیزم د سوسیالوژیک استنتاج له مخی داسی علم دی چی په عمومی توګه د ټولنی د پرمختګ قانونمندی راسپړی.

په عین زمان کی لا زیاتی مشخصی سوسیالوژیکی تیورۍ هم ضروری دی چی د خلکو د جمعیتونو او ټولنیزو تاسیساتو (مثلاً د کورنۍ د

2*

شکلونو او وظیفو، د خلکو د میشتیدلو د شکلونو او نورو ) د ځانګړو شکلونو په مطالعه کولو بوختي وي. دا تیوري د ټولنیز ژوند د ځانګړو اړخونو او شکلونو په درک کولو کی د تاریخي ماتریالیزم له متود څخه استفاده کوي او په اصطلاح د سوسیالوژیکو پلټنو راتلونکی سویه تشکیلوي.

بالاخره سوسیالوژیک علم (د ټولنی پیژندنه) مشخصی اسپیریکی (تجربوی) پلټنی چی یا د تمامو هیوادونو په مقیاس او یا په ځانګړو سیمو، فابریکو او نورو حدودو کی ترسره کیږی احتواء کوی. دا پلټنی مستقیماً عملی وظیفو ته مثلاً د فابریکو یا سیمو د ټولنیز پرمختګ چاری ته خدمت کوی. مګر دغه ډول پلټنی هم بی له تیوري څخه په کامیابی سره په ژوند کی نه شی عملی کیدلی.

د قاعدی سره سم مشخصی ټولنیزی پلټنی د بیلا بیلو ټولنیزو علومو د نمایندګانو د ګډون غوښتنه کوی. مثلاً د کار د سوسیالستی شکلونو پرمختګ، د تولید د کارکوونکو کلتوری او تخنیکی رشد، د سوسیالستی ټولنی د تولیدی مناسباتو تکامل او نور عوامل باید هم د فیلسوفانو هم د اقتصادی پوهانو او هم د مؤرخینو له خوا د خپل نظر څخه مطالعه کړی شی. لکه چی تجربه ښیی د پوهنی د بیلا بیلو څانګو د متخصصینو همدغسی وحدت د مشخصو سوسیالوژیکو پلټنو په وخت کی تر ټولو ګټور ثابتیږی.

د ټولنی په باره کی د بیلابیلو علومو خصوصیتونه د هغو د مفاهیمو په سیستم کی هم خپل انعکاس موسی.

د ټولنی په باره کی علوم لکه د نورو علومو په شان ځانته د مفاهیمو تمام سیستم لری چی د ټولنیز ژوند تر ټولو مهم اړخونه او د هغه د پدیدو روابط څرګندوی. د ټولنیزو علومو مفاهیم د خپلو قوانینو په څیر د ورته علایمو له مخی سره بیلیږی او تصنیف کیږی. مثلاً عمومی تاریخی مفاهیم شته چی کار، سولده قواوی، تولیدی مناسبات او د تولید طرز په هغو پوری تعلق نیسی. هغه مفاهیم چی د یو لړ نظامونو خصوصیات څرګندوی عبارت دی له طبقی، ملت، دولت او نورو څخه. بالاخره داسی مفاهیم هم شته چی د یوه ځانګړی نظام (فرماسیون) خصوصیت ښیی، مثلاً اضافی ارزښت، پانګه او نور. دا مفاهیم

د ک. مارکس په قول د «موجود ژوند شکلونه، د موجودیت صفات او اکثراً یوازې د دې ټاکلې ټولنې ځانګړې اړخونه څرګندوي» *.

د دې تر څنګ د ټولنیزو علومو مفاهیم د یوې بلې علاسې له مخې هم په عمومي او خاصو مفاهیمو باندې ویشل کیږي. داسې مفاهیم شته چې د ټولنې ځانګړې اړخونه یا د ټولنیزو پدیدو ځانګړې ډلې څرګندوي. مثلاً په سیاسي اقتصاد کې د ارزښت، پانګې او نور مفاهیم، په حقوقي علومو کې د دولت، حق او نور مفاهیم. تاریخي ماتریالیزم د همدغسې مفاهیمو سره سروکار لري مګر د ذکر شوو علومو پرخلاف یې په بل ارتباط کې څیړي. تاریخي ماتریالیزم په عمومي ډول د ټولنې په ژوند کې د دغو علومو له خوا د منعکس شوو ټولنیزو پدیدو مقام څرګندوي، مثلاً د روبنا د عناصرو په حیث دولت او حق مطالعه کوي. تاریخي ماتریالیزم د زیاتو عمومي مفاهیمو سره چې د ټولنې د جوړښت اساسات څرګندوي د هغو پیوند راسپړي.

د تاریخي ماتریالیزم تر ټولو عمومي مفاهیم یو په بل پورې مربوط دي یعنې دا چې د تضادونو تر منځ چې یو له بل سره د وحدت په حال کې باطني رابطه څرګندوي. ټولنیز ژوند او ټولنیز شعور، مادي او ایدیالوژیک مناسبات، زیربنا او روبنا، عیني شرایط او ذاتي عامل او نور له دې جملې څخه دي. د «ټولنیز ژوند» مفهوم یوازې د «ټولنیز شعور» د مفهوم سره په ارتباط او د «عیني شرطونو» مفهوم د «ذاتي عامل» د مفهوم سره په ارتباط کې معنی لري. د دې ارتباط څخه بهر هغه اصلاً نه شي څیړل کیدلی. مثلاً زیربنا یوازې د روبنا سره یوځای څیړل کیږي. غیر له دې اقتصادي نظام د تاریخي ماتریالیزم نه بلکه د سیاسي اقتصاد د مطالعې موضوع ګرزي.

د هغو مفاهیمو تر څنګ چې د ټولنیز ژوند د بیلا بیلو اړخونو ارتباط څرګندوي په تاریخي ماتریالیزم کې داسې مفاهیم هم شته چې د ټولنې تمامیت (مثلاً ټولنیز اقتصادي فرماسیون) ښکاره کوي. د داسې مفاهیمو لکه د مولده قواو او تولیدي مناسباتو، د تولید د طرز، طبقاتو، دولت او نورو پرعکس چې د ټولنیز ژوند ځانګړې خواوې او

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ٤٦ ټوک، لومړی برخه، ٤٣ مخ.

شکلونه سره بیلوی، د ټولنیز او اقتصادی فرماسیون مفهوم په عمومی ډول د ټولنی چی ضمناً د تاریخی پرمختګ په دغه یا هغه مرحله کی واقع وی خصوصیت څرګندوی.

د ماتریالیستی دیالکتیک د علمی متود د غوښتنو سره سم تاریخی ماتریالیزم ټولنه نه یوازی د هغی په تمامیت او د ټولنیز ژوند د بیلا بیلو اړخونو د تعامل بلکه په دایمی خوځون او پرمختګ کی څیړی. ځکه په تاریخی ماتریالیزم کی داسی مفاهیم شته چی د ټولنی د پرمختګ د پروسو خصوصیتونه څرګندوی. مثلاً تاریخی انکشاف چی ټولنیز پرمختګ یعنی ترقی څرګندوی او معکوس مفهوم یعنی تاریخی په شاتګ یعنی ټهقری او همدغه‌رنګه ټولنیز انقلاب او ریفورم (اصلاح) چی د ټولنی د تغییراتو خصوصیتونه څرګندوی له دې جملی څخه دی.

د مفاهیمو تنوع تاریخی ماتریالیزم او نورو ټولنیزو علومو ته امکان ورکوی چی د ټولنی د ژوند ټول تغلیق او هرا ړخیزتوب ترسیم کړی.

په عمومی قوانینو او مفاهیمو باندی پوهه (پوهیدل) ټول ټولنیز علوم د درک کولو په سم او اطمینانی متود سره سمبالوی. په مارکسیستی مفهوم سره د متود مطلب یوازی د ادراک د طرزونو او ډولونو مجموعه نه ده. دا د عمومی قوانینو چی د خپل عمومیت په وجه د واقعیت د مطالعه کیدونکی ساحی د ځانته او خاصو پدیدو د درک کولو د پاره ترې استفاده کیدلی شی انعکاس دی. د ماتریالیستی دیالکتیک قوانین او مفاهیم ځکه د ادراک، د عمومی طرز حیثیت لری چی همدغه قوانین او مفاهیم په طبیعت، ټولنه او تفکر کی د پدیدو تر منځ عینی، مهم او ضروری پیوند ښکاره کوی. د تاریخی ماتریالیزم چی د ټولنی پیژندنی عمومی متودولوژی شمیرل کیږی او د خاصو علومو په نسبت (مثلاً سیاسی اقتصاد د صنعت، کرهنی، تجارت او نورو څانګو د اقتصاد په نسبت) د زیاتو عمومی ټولنیزو علومو قوانین او مفاهیم د ټولنیزو پدیدو په درک کولو کی همدغسی رول لوبوی. ضمناً خاص او عمومی علوم یوازی د خپل متقابل پیوند په شرط ډیر موفقانه او ګټور پرمختګ کولی شی. خاص علوم (مثلاً حقوقی، هنر پیژندنه او نور) د ټولنی د ژوند دغه یا هغه اړخونه او همدغه‌رنګه ځانګړی ټولنیزی پدیدی مطالعه کوی مګر هغه یوازی په هغه صورت کی د دغو پدیدو د پرمختګ قوانین کشفولی شی چی په عمومی توګه

د ټولنې په ژوند کې د هغو د مقام پېژندل او د بشري ټولنې د پرمختګ د عمومي قوانينو پېژندل چې تاريخي ماټرياليزم يې پوهولی شي په نظر کې ونيسي. هغه مورخ چې د تاريخي ماټرياليزم د متود پيروي نه کوي د حقايقو د کلکسيون په جوړولو محکوم وي. د هغه د پاره سخته ده چې په تاريخي پروسه کې د علت او معلول متقابل پيوند معلوم کړي او هغه مجبور دی چې د دې پروسې په ترسيم او توضيح باندې اکتفا وکړي. تاريخي ماټرياليزم ټولنيز علم د ادراک په علمي متود او د کارګري طبقې ګوند د انقلابي عمل په متود سره سنبالوي.

## ۳. د طبيعت له قوانينو څخه د ټولنيز ژوند د قوانينو کيفي توپير

په مارکسيستي توګه د ټولنيز ژوند د پوهېدلو سرچينه د طبيعت او د ټولنې د يووالي په پېژندلو او همدغه‌رنګه د ټولنيز ژوند د کيفي خصوصيت چې زموږ د ټولې چاپېريالي نړۍ څخه د ژوند د خاصې ساحې په حيث هغه بيلوي په پېژندلو کې پرته ده.

دا د هغو ځينو قوانينو چې هم د طبيعت په ساحه او هم د بشري تاريخ په ساحه کې د هر ډول خوځون او پرمختګ د پاره اعتبار لري د موجوديت موجب شميرل کيږي. دا د ماټرياليستي ديالکتيک قوانين دي، مثلاً د پرمختګ د پروسې د باطني مضمون په حيث د تضادونو د يووالي او مبارزې قانون، کيفيت ته د کميت د اوښتون قانون او داسې نور. مګر پخپله دغه عمومي قوانين د ژوند په بيلا بيلو ځانګو کې په مختلفو ډولونو تبارز موسي. مادي نړۍ د پرمختګ له يو لړ مرحلو څخه تيريږي او په ضمن کې په هره مرحله کې «نور قوانين مسلط وي يعنې دا چې د هماغه يوه عمومي خوځون د تبارز نور شکلونه تسلط لري...»*.

د دې خبرې معنی دا ده چې د نړۍ د وحدت د پېژندلو تر

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه ، ۲۰ ټوک، ۵۵۳ — ۵۵٤ مخ.

څنګ موږ د هغې تنوع هم پیژنو د کومې له مخې چې د ژوند په هره ساحه او د خوځون په هر شکل کې ځانته مشخص او خاص قوانین موجود دي. بشري ټولنه هم همدغسې قوانین لري.

په دې وجه د طبیعت قوانین او حتی هغه قوانین چې ډیره پراخه معنی لري (مثلاً په فزیک کې د انرژۍ د ساتلو او تبدیلولو یا په بیالوژۍ کې د طبیعي غوره کیدلو قانون) نه شي کولی چې ټولنیز ژوند توضیح کړي. ټولنیز ژوند خپل خاص قوانین لري او د هغو تابع وي.

په هغه جمله کې تر ټولو لومړی د ټولنې د پرمختګ اصلي قانون دی چې د ک. مارکس له خوا کشف شویدی. ف. انګلس دا قانون په لاندې ډول تعریف کړیدی: «لکه څنګه چې داروین د عضوي نړۍ د پرمختګ قانون کشف کړ، مارکس د بشري تاریخ د پرمختګ قانون کشف کړ. دا تر وروستي وخت پورې تر ایدیالوژیکو عواملو لاندې پټ شوی عادي حقیقت دی چې خلک پخوا تر دې چې د دې توان ولري چې په سیاست، علم، هنر، مذهب او نورو باندې بوخت شي په لومړۍ مرحله کې باید خوراک او څښاک، هستوګنځی ولري او په تن پټ وي. په دې بنیاد د ژوند د اصلي مادي وسایلو تولید او په دې وسیله د خلکو د اقتصادي پرمختګ هره ځانته مرحله یا عصر هغه اساس تشکیلوي چې له هغه څخه دولتي اداري، حقوقي نظریات، هنر او حتی د همدغو خلکو مذهبي تصورات تکامل موندې او ځکه د هغه له مخې باید دا ټول توضیح کړی شي او دا باید لکه څنګه چې تر اوسه پورې معمول و معکوس شکل و نه لري»*.

د ټولنې د پرمختګ دا اساسي قانون د ټولنیز ژوند د نورو ټولو ساحو په مقایسه د تولید فیصله کوونکی رول څرګندوي. د تولید په وسیله سره بالاخره د ټولنې «قیافه» او د هغې د نظام څرنګوالی څرګندیږي. په نورو سره د تولید د یو لړ طرزونو بدلون د ټولنې د پرمختګ د خوځون اساس تشکیلوي او د ټولنیزو او اقتصادي فرماسیونونو د تواتر د پوهیدلو برخورد شمیرل کیږي. دا هغه اساسي

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۱۹ ټوک، ۳۵۰ — ۳۵۱ مخونه.

قانون دی چې د بشری ټولنې د جوړښت له زمانی څخه (یعنی له هغه وخته څخه چې انسان د حیوانی نړۍ څخه بیل شو) یی په عمل پیل کړیدی او تر هغه وخته پورې به عمل کوی تر څو چې بشری ټولنه وجود ولری.

مارکسیزم او لینینیزم په ښکته شکلونو پورې د خوځون د پورته شکلونو د قوانینو د میخانیکی «مربوطولو» پرخلاف او په دې معنی د طبیعت له قوانینو سره د ټولنیز پرمختګ د قوانینو د برابرولو پر خلاف مبارزه کوی. څرګنده خبره ده چې د ورته پدیدو تحلیل او په عناصرو باندی د هغو تجزیه کول د ادراک ضروری برخه شمیرل کیږی. مګر ددې برخی حتمی او مطلق ګڼل د سیستم د تمامیت او د هغی د کیفی خصوصیت د له لاسه ورکولو او په دې باره کی د غلط تصور د پیدا کیدو موجب کیږی چې ګڼی د خوځون د اوچتو شکلونو کیفی خصوصیت ذاتی شی دی او صرف ددې خبری نتیجه ده چې موږ نه شو کولی دا اوچت شکلونه په ساده عناصرو باندی تجزیه کړو. ددې مسئلی په باره کی د مارکسیزم عمومی متودولوژیک موقف د «طبیعت په دیالکتیک» کی د ف. انګلس له خوا ټاکل شویدی: «هر خوځون پخپل ځان کی د مادی د لویو یا تر ټولو کوچنیو برخو میخانیکی خوځون لری. د دغو میخانیکی حرکتونو پیژندل د علم لومړۍ وظیفه ده خو دا د علم یوازی لومړۍ وظیفه ده. مګر دا میخانیکی حرکت عمومی حرکت نه احتواء کوی»*. په دې ترتیب د ف. انګلس په عقیده ۱) په عینی توګه په کیفی لحاظ د خوځون بیلا بیل شکلونه موجود دی، ۲) د خوځون اوچت شکلونه تل په ځان کی ښکته شکلونه د فرعی شکلونو په حیث احتواء کوی، ۳) په عین زمان کی دا اوچت شکلونه هیڅکله د خوځون ښکته شکلونو ته نه راګرزی او د داسی خاصو قوانینو تابع وی چې د خپل ماهیت له مخی د اوچپ کیفیت د تمامیت خاصه شمیرل کیږی. په دې کی د او. کونت پر خلاف د چا دپاره چې د خوځون اوچت شکلونه په ساده توګه په ښکته شکلونو پورې اضافه کیږی او

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۲۰ ټوک ۵۶۷ — ۵۶۸ مخونه.

ښکته شکلونه د اوچتو شکلونو دپاره حتمي پاته کیږي، دیالکتیک ماتریالیزم عقیده لري چي اوچت شکلونه ښکته شکلونه «ایسته کوي» یعني دا چي لغو کوي یې نه بلکه د خپل جز په حیث یې پخپل ځان کې ساتي.

ددې نظره به د خوځون د ټولنیز شکل او هغه ته د تر ټولو نژدې بیولوژیک شکل تر منځ ارتباط وڅیړو. د هغو تر منځ کیفي توپیر د بشري ټولنې په ځانته خصوصیت سره چي هغه د بیولوژیکي ډلو (د څارویو د ګلې یا رمې) څخه بیلوي او د انسان په خصوصیتونو سره چي هغه د لرغونو زمانو له حیواناتو څخه بیلوي ټاکل کیږي.

مارکسیزم ټولنې ته د بیولوژیکي قوانینو د انتقال کوششونه چي په تیره بیا په نولسمه پیړۍ کې یې ترویج درلود (د مخکینیو پیړیو د «ټولنیز میخانیک» او «ټولنیز فزیک» په ځای) ردوي. په ټولنه پیژندنه کې بیولوژیک جریان دوه تیورۍ درلودې یعني ارګانیک ښوونځی (سپینسر، شیفلې، لیلینفیلد، ورمس او نور) او ټولنیز داروینیزم (آمون، دیورینګ، ګومیلوویچ او نور). یوې ډلې په ټولنه باندې د بیولوژیکو انواعو پرمختګ او بلې ډلې د فرد پرمختګ انتقالاوه. ځکه د ارګانیک ښوونځي پلویانو د ټولنې تمامیت او د هغې مافوق انفرادي خصلت ته او د ټولنیز داروینیزم پیروانو بیلوالي ته لوړې ځای ورکاوه. د هغوی له نظره ټولنه په ډیرو افرادو باندې ویشل کیده چي دا ټولنه تشکیلوي.

د ارګانیک ښوونځي اساسي مفکورې چي په ابتدایي شکل لا د افلاطون او ګوبس په نزد پیدا شوي وې د ګ. سپینسر په نزد یې منظم انکشاف بیا موند. ګ. سپینسر د هغو اصولو چي په ارګانیزم او ټولنه کې د ترکیبي اجزاو موقعیت اداره کوي د سوازي‌توب د معلوسولو وظیفه پخپل وړاندې کښېښوده*. نوموړي قامت او د پیمانو د رشد سره یوځای د ساختمان د مغلق‌والي وده، د اجزاو تطبیق او داسې نور په دغسې اصولو پورې تړل. هغه د ټولنې او ارګانیزم تر منځ توپیر هم نه رداوه مګر عقیده یې درلوده چي د هغو دواړو د تشکل اصول یو ډول دي.

---

* ګ. سپینسر. «د ټولنې پیژندنې پیدایښت» ته مراجعه وکړئ. ۲ ټوک، ۱۸۷۱ کال، ۴۴۸ مخ.

د ټولنيز ژوند د مشخصو مسئلو د حل کولو په منظور د دغو عمومي اساساتو څخه د استفادې کوششونه د تر ټولو سطحي تشبيهاتو څخه پرته بله نتيجه نه شواى ورکولى. په دې ترتيب گ. سپينسر د طبقاتو پيدايښت په ارگانيزم کې په بهرنيو او باطني پوښښونو باندې د نسجونو د ويش په شان توضيح کول. لکه په ارگانيزم کې چې اکزوديرم (د سلولو بهرنى قشر — مترجم) پوستکى او د اعصابو سيستم خلقوي په ټولنه کې هم باندنى مناسبات اردو، حکومت او حاکم طبقات پيدا کوي. د گ. سپينسر په عقيده په ټولنه کې د کرهنې او صنعت د تابع کارکوونکو طبقه د ارگانيزم له داخلي نسجونو سره مطابقت لري. هغه طبقې چې په لاسي کار بوختې دي د ټولنې د ژوند په ساتلو کې هماغه وظيفه سرته رسوي کومه چې يې د هاضمې د جهاز ترکيبي برخې د ژوندي موجود د ژوند په ساتلو کې اجرا کوي. د سپينسر پيروان اکثراً لا زياتو نامعقولو نتيجو ته رسيدل. مثلاً فرانسوي ټولنه‌پيژندونکى ر. ورمس پوليس او زندانونه د پښتورګو او د خولو د غدو سره مقايسه کول ځکه چې دا او هغه دواړه گنې له بدنه نابوده عناصر وباسي. د دغسې نتيجو د ټولې سادگۍ سره سره هغه مشخص طبقاتي مفهوم لري. که چيرې ټولنيز طبقات د بيولوژيکي ارگانونو سره يو شى وي نو ددې معنى دا ده چې د ټولنې طبقاتي ويش «طبيعي» اعلاميږي چې نه بيرته کيدونکى دى او طبقاتي مبارزه په خپل وار «ناسموالى» اعلاميږي.

ټولنيز ژوند ته د بقا دپاره د مبارزې په هکله د داروين د قانون د اړولو په منظور د بورژوايي ټولنې پيژندونکو کوششونه هم ارتجاعي دي. ددې تيورۍ يو موسس آلماني ټولنه‌پيژندونکى او. آمون عقيده درلوده چې د بقا دپاره مبارزه د ټولنيز ژوند په ټولو ساحو کې عمل کوي. هغه نه يوازې د فردونو بلکه د ولسونو او نژادونو تر منځ متقابل مناسبات هم احتواء کوي. ځکه په طبقاتو او قشرونو باندې ويش په عين وخت کې د استعدادونو او د بيولوژيکي او سوسيالوژيکي ارزښت له مخې د انسانانو د ويش په حيث تلقي کيږي. په ټولنه کې «هر انسان خپل وړ ځاى لري او په هر ځاى کې د هغه مطابق انسان

وجود لري»*. په کاپیتالستي ټولنه کې د زیاراېستونکو فقر، د کوچنیو بزګرو او کسبګرو مفلس او سپېره کېدل او بیکاري د «طبیعت د قانون» په نامه او د وګړو، ملتونو او نژادونو تر منځ د بقا دپاره د مبارزې د حتمي نتیجې په حیث اعلان کېږي.

په معاصرو بورژوايي ادبیاتو کې هم د دغسې نظریاتو پیروان لیدل کېږي. مثلاً امریکایي ادیب او بیولوژي پوهاند ر. آردرې د انسانانو تر منځ نابرابري د بیولوژیکې نابرابرۍ مولود بولي. د امریکایي قانون دا مشهور اصل چې «ټول انسانان برابر خلق شویدي» د ده له خوا «د اشتباه ستاینه» بلل کېږي**. خلک په «الفو» یعني فطري لاربښوونکو باندي چې دی نه یوازې چرچل او کینډي بلکه هټلر هم په هغوی پورې تړي او د «اومیګو» په کتلو باندې چې د لومړیو کسانو تابع باید وي ویشل کېږي***. د ر. آردرې په عقیده د تیرې تمایل د ژوندیو موجوداتو د مسابقې څخه چې پرته له هغه طبیعي انتخاب وجود نه شي درلودلی سرچینه اخلي او د ژوندي د پاتې کېدو اصلي تضمین شمېرل کېږي.

د دغسې نظریاتو کمزورتیا او بې‌اساس‌توب د لومړیو متودولوژیکو مقدماتو څخه سرچینه اخلي. نه خو ارګانیک ښوونځی او نه ټولنیز داروینیزم ددې توان نه درلود چې د ټولنې په خصوصیت باندې پوه شي. ځکه خو نو دواړه جریانونه غیرتاریخي و. د بېلا بېلو ټولنیزو او اقتصادي فرماسیونونو تاریخي قوانین د هغوی له خوا په جاویداني طبیعي قوانینو بدلیږي. ددې نتیجه نه یوازې د ټولنیزو پدیدو تحریفول بلکه په تشو مجردو خبرو چې د مضمون څخه محرومې دي

---

* O. Ammon. Die Gesellschaftsordnung und ihre natürliche Grundlagen. Entwurf einer Sozialanthropologie. Jena, 1896, S. 38.

** R. Ardrey. The Social Contract. A Persona inquiry into the Evolutionary Sources of Order and Disorder. N.Y., 1970, p. 36.

*** الفه د یوناني الفبا لومړی حرف او اومیګه ئې وروستی حرف دی. د الفي او اومیګې د اصطلاح مطلب له پیل نه تر پایه پورې دی. د ځه شي الفه عموماً ددې شي د اصل او ماهیت معنی افاده کوي — مترجم.

پخپله د بیولوژیکی مفاهیمو او مقولو اړول دی. ک. مارکس ل. کوګیلمن ته پخپل لیک کی لیکلی و چی «ښاغلی لانګی ستر کشفیت وکړ. دا بوازینی ستر قانون په ټول تاریخ پوری تړل کیدای شی. دا طبیعی قانون د «struggle for life» یعنی «د ژوند دپاره مبارزه» په جمله کی (د داروین اصطلاح په دې طرز سره تشی جملی ته اوړی) محتوی دی او ددې جملی مضمون د خلکو د میشت کیدو یا که صحیح وویل شی د نفوسو د افراط په باره کی د مالتوس قانون تشکیلوی. ځکه ددې پر ځای چی د «ژوند دپاره دا مبارزه» تحلیل کړی شی او څرګنده شی چی هغه څنګه په تاریخی ډول په بیلا بیلو ټولنیزو شکلونو ښکاره شویده پرته له دی چی «د ژوند دپاره مبارزی» ته هر ډول مشخصه مبارزه واړول شی او دا جمله «د نفوسو د افراط» په باره کی د مالتوس «خیال» ته تبدیله شی بل هیڅ نه پاته کیږی. دا هم سمه ده چی دا ډیر قانع کوونکی متود دی خو د مغرورو او ناپوهو تش په نامه پوهانو او هغو کسانو دپاره چی په تفکر کی لټی کوی قانع کوونکی متود دی»*.

ټولنی ته د بیولوژیکی قوانینو د انتقال د کوششونو ناسموالی له دې څخه سرچینه اخلی چی انسان د طبیعت سره د حیواناتو په نسبت بل ډول موقف لری. حیوانات له طبیعت سره توافق موسی مګر انسان چاپیریال ته تغییر ورکوی او په هغه باندی د کار د آلاتو په وسیله سره اغیزه کوی. حیوانات په احسن صورت کی د بقا د وسایلو تر ټولولو پوری ځای رسوی مګر انسان د بقا وسایل تولیدوی. انسان په داسی حال کی چی طبیعی موجود پاته کیږی ټولنیز موجود هم ګرزی. د فرد او طبیعی چاپیریال تر منځ ټولنیز ماحول پروت دی چی خپل ځانته قوانین لری. دا وار دواره ددې مخه نیسی چی بشری ټولنی ته د حیواناتو د ژوند قوانین په هر ډول چی وی انتقال شی.

د طبیعی وسایلو یعنی د بدن د ارګانونو د سیستم په مقابل کی چی حیوانات ترې استفاده کوی په ټولنه کی د مصنوعی وسایلو یعنی د کار د

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۳۲ ټوک، ۵۷۱ مخ.

وسایلو سیستم ولاړ دی چې د پرمختګ خپل منطق لري. طبیعی ارګان د ارګانیزم سره نهشلیدونکی پیوند لري. د هغه د تغییر سره یوځای ارګانیزم هم بدلون مومی. مصنوعی ارګان په دوه ګونی خصلت سره تشخیص کیږی او په هغه کی د ذات او معمول (مورد) وحدت څرګندیږی. د ارګانیزم انکشاف د هغه د انفرادی ارګانونو د بدلون له لاری ترسره کیږی، د انسان انکشاف د هغه د ټولنیزو ارګانونو په بدلون باندی ښکاره کیږی ځکه چې د کار آلات د ټولنیز تولید آلات شمیرل کیږی. په دې بنیاد ټولنیز تحول د بیولوژیکی تحول څخه توپیر لري. لکه چې د بیولوژی علومو شوروی پوهاند ا. ن. سیویرځوف ویلی دی انسان «د ارګانیزم د بدلون څخه پرته د رفتار د بدلون په ذریعه» توافق مومی*. له معاصر اروپایی څخه د بدوی استرالیایی د ټولنیز لریوالی سره سره د هغوی تر منځ بیولوژیکی توپیر لوی نه دی. د طبقهبندۍ له مخی ټول بشر په یوه شکل جوړ شویدی. په دې ترتیب بیولوژیکی او ټولنیز تحول په بیلا بیلو ساحو کی پروت وی. بیولوژیکی تحول د طبیعی آلاتو د تغییر په منطق او ټولنیز تحول د مصنوعی آلاتو د تغییر په بېخی بل منطق سره ټاکل کیږی. په دې وجه د دواړو پروسو د ګرندیتوب اصولی توپیر منځ ته راځی.

د بیولوژیکی تحول او ټولنیز پرمختګ تر منځ کیفی توپیر د هغوی تر منځ متقابله اغیزه مستثنا نه ګڼی. بیولوژیکی عوامل پر ټولنیز پرمختګ باندی اغیزه کوی مګر هغه نه ټاکی. په دې ترتیب د اوسیدونکو د قوانینو په پلټلو کی د انسان د بدنی ساختمان خصوصیتونه، د هغه د تناسل بیولوژیکی عوامل په نظر کی نیول کیږی سره ددې چې دا قوانین د هر ټولنیز او اقتصادی فرماسیون دپاره ټولنیز او په تاریخی لحاظ خاص شمیرل کیږی. د انسان د بیولوژیکی تحول د پوهیدلو دپاره د بیولوژیکی قوانینو پیژندل کفایت نه کوی ځکه چې انسان د ټولنیز محیط په شرطونو کی ژوند کوی. د بیولوژیکی قوانینو د نفوذ ساحه د ټولنیزو قوانینو مطابق محدودیږی او تغییر

---

* ا. ن. سیویرځوف. تحول او روحیات. مسکو، ۱۹۲۲ کال، ۵۳ مخ.

موي. څرګنده خبره ده چې د ټولنيز ژوند شرطونه د انسان په وده، د ارګانونو په تکامل، روغتيا او نورو باندې فيصله کوونکې اغيزه کوي. هغه اکولوژيکه (د بيولوژۍ او ټولنيپېژندنې هغه څانګه ده چې د انسان او طبيعي محيط تر منځ د ارتباط او متقابلې اغيزې مسئلې مطالعه کوي — مترجم) مسئله چې د اوسېدونکو تندرستۍ او روغتيا ورپورې تعلق لري ټولنيزه مسئله ده چې په معاصر تاريخي دوران، د علمي او تخنيکي پرمختګ په شرايطو کې خاص شدت پيدا کوي.

د متفاوتو ساحو د قوانينو د متقابلې اغيزې د نتيجې په حيث د دغسې پرابلمونو او پروسو څېړل معقول کار دی. د طبيعت اشيا او محصولات چې ټولنيز ژوند ته راښکل شوي وي د خپل طبيعي شتهوالي تر څنګ ګوندې ټولنيز شتهوالی هم ترلاسه کوي او ټاکلې اجتماعي وظيفې سرته رسوي. د مثال په توګه که څه هم ماشين د ميخانيک، فزيک، کيميا او نورو علومو د قوانينو په استفاده جوړيږي بيا هم د تخنيک پرمختګ د ټولنيزو قوانينو تابع وي. ماشين چې د هغه فعاليت، کار د تخنيکي علومو په ذريعه پلټل کېږي په ټولنه کې د ملکيت د مورد په حيث تلقي کېږي چې د هغه په برخه کې ټاکلې توليدي مناسبات منځ ته راځي کوم چې د ټولنيز علم يعني سياسي اقتصاد له خوا مطالعه کېږي. ک. مارکس چې د ماشينونو (لکه عموماً د تخنيک) د پرمختګ ټولنيز عواقب په دقت سره مطالعه کړي و په عين زمان کې عقيده درلوده چې د کار د ويش، رقابت، کريديت او نورو مفاهيمو تر څنګ په اقتصادي مقوله باندې د ماشين د اړولو چاره بېمفهومه ده. «ماشين لکه د غويي په شان چې يوې کش کوي په لږ اساس اقتصادي مفهوم شميرل کيدای شي»*. د ماشين څخه ټاکلې استفاده اقتصادي مفهوم تشکيلوي.

هغه څه چې ټولنې ته د بيولوژيکې قوانينو د انتقال د ناجايزوالي په برخه کې پورته وويل شول د طبيعت د قوانينو په ذريعه د تاريخي پرمختګ د توضيح کولو د هر ډول کوششونه په باره کې تکراريدلی

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۲۷ ټوک، ۴۰۵ مخ.

شي. معلومه ده چې و. ای. لینین د «انرژیتیک بیلانس» د تیورۍ له موقف څخه د ټولنې د تفسیر کولو او د «ټولنیزې مجموعي د انرژۍ» د زیاتولو یا کمولو په باره کې په مجردو جملو سره د طبقاتي مناسباتو د تحلیل د تعویض کولو په هکله د ا. ا. بگدانوف هلې ځلې سختې غندلې دي. و. ای. لینین لیکلي و چې «ټول دا کوشش له سره تر پایه بې‌معنی دی ځکه چې د انرژۍ، انرژیتیک بیلانس او د داسې نورو شیانو د «تجمع»، «تشابه او تجزیې» (یعنی «غوره کولو»، «یوځای کیدلو او سره بیلیدلو») د مفاهیمو څخه د ټولنیزو علومو په برخه کې استفاده کول پوچه جمله ده. عملاً د دغو مفاهیمو په مرسته د ټولنیزو پدیدو هیڅ ډول پلټنه او د ټولنیزو علومو د متود او طرز هیڅ ډول توضیح نه شي کیدلی»*.

یوازې د ټولنې پیژندنې قوانین او مفاهیم چې پلټونکي د ټولنیزو پروسو د پیژندلو په سم متود او طرز سره سنبالوي د ټولنیزو پدیدو علمي پلټنې ته خدمت کولی شي.

---

* و. ای. لینین. کلیات، ۱۸ ټوک، ۳٤۸ مخ.

# ۲ فصل

# د ټولنيز ديټرمنيزم* عمومي مسئلې او ماهيت

د ټولنيز ديټرمنيزم د مسئلې په مطالعه کولو په يو ډول دا خبره مهمه ده چې د طبيعي او ټولنيزو پديدو هم وحدت او هم د ارتباط خصوصيت مطالعه کړی شي. د دغو ټکو څخه د هر يوه له نظره غوررزول او همغه رنګه د ديټرمنيزم د پخپله ماهيت په باره کې ساده تصور معمولاً په ټولنيز ژوند کې د هغه د ردولو موجب کيږي. مثلاً د پديدو سخت او يوه معنی لرونکې مشروطيت ته د ديټرمنيزم راښکته کول ځينې پلټونکي دې ته اړ باسي چې په دې باره کې غلط استنباط وکړي چې ديټرمنيزم هم په طبيعي پوهنه او هم په تيره بيا په ټولنيز علم کې سقوط کړيدی. مګر د ديټرمنيزم ردول په حقيقت کې پوهاند د علم څخه بهر وباسي ځکه چې علمي توضيح ناشونې کوي او په دې بنياد د پديدو علمي پيش ګويي ناممکنه کوي.

## ۱. په ټولنيز ژوند کې د علت موجوديت او د هدف ټاکل

ګڼ شمير آثار په عمومي فلسفي لحاظ د ديټرمنيزم د مفهوم او مضمون تحليل ته وقف شويدي. دلته به د بحث وړ ټولې مسئلې راونه‌خلو کوم چې د راتلونکې څيړنې غوښتنه کوي. يوازې په هغو عمومي نتيجو باندې به اکتفا وکړو چې د ټولنيز ديټرمنيزم د ماهيت د پوهيدو دپاره ضروري دي.

۱) د ديټرمنيزم اصلي اصل په نړۍ کې د عمومي روابطو د موجوديت

---

* ديټرمنيزم د طبيعت او ټولنې د ټولو پديدو د عيني قوانينو او علتي مشروطيت او ارتباط په باره کې فلسفي نظريه ده. — مترجم.

پیژندل دی چی له هغه څخه د ټولو پدیدو د مشروطیت په باره کی یعنی د شرطونو او عواملو په مجموعه پوری د هغو د پیوستون په باره کی اصل سرچینه اخلی.

۲) د دیترمنیزم اصل د علت د موجودیت د اصل سره ټینګ پیوند لری مګر له هغه سره یو شی نه شمېرل کېږی. د علتی ارتباط د عمومیت سره سره (په دی مفهوم چی بی‌علته پدیدی وجود نه لری) دا ارتباط د پدیدو د عمومی ارتباط یو جز شمېرل کېږی. ځکه دیترمنیزم د پدیدو صرف د علتی مشروطیت مفهوم نه لری. د دیترمنیزم نور شکلونه هم شته چی هغه د علت او معمول د رابطی څخه وتلی دی لکه وظیفوی، تناسبی او نور.

۳) دیترمنیزم هماغه رنګه په نورو پوری د یو شمېر پدیدو د یوه معنی لرونکی پیوستون د پېژندلو سره چی د دینامیک په قوانینو باندی څرګندېږی یو شی نه دی بلکه هغه احتمالی روابط هم چی په احصائیوی قوانینو سره ښودل کېږی په ځان کی شاملوی. ضمناً دا احتمال ذاتی مفهوم نه دی چی د حوادثو د پېښېدو د زیاتوالی په پوهیدلو یا نه پوهیدلو پوری تعلق ولری. احتمال د تصادف په شان عینی خصلت لری او د هغه منل د ژوند د تشخیص او مشروطیت د اصل په حیث د دیترمنیزم د دیالکتیک پوهیدلو سره ضدیت نه لری.

٤) په ټولنیز ژوند کی دیترمنیزم د دغو یا هغو اعمالو د انتخاب امکان یا ددی انتخاب له امله د هغوی مسئولیت نه مستثناء کوی. ځکه د انسان د اعمالو د ضرورت منل چی د و. ای. لېنین په قول «د ارادی د آزادۍ په باره کی واهی افسانه ردوی په هیڅ ډول نه د انسان عقل، نه وجدان او نه خو د هغه د اعمالو ارزیابی له منځه نه وړی»*. برعکس هغه د خلکو د اعمالو د سمی ارزیابۍ دپاره عینی اساس ږدی. په دی بنیاد دیترمنیزم په ریښه کی په تقدیر له اعتقاد څخه چی اصلاً د دیترمنیزم نه بلکه په میخانیکی ډول په هغه باندی د پوهیدو او یا د نړۍ په هکله د مذهبی نظر او یا نورو غلطیو محصول شمېرل کېږی توپیر لری.

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۱ ټوک، ۱۵۹ مخ.

د ټولنيز ديټرمنيزم عمده خصوصيت په دې کې پروت دی چې د خلکو چې په عين زمان کې د تاريخ عامل شمېرل کېږي فعاليت د هغه معمول تشکيلوي. ټولنيز قوانين د خلکو د عملي فعاليت قوانين دي چې د خلکو څخه پرته نه چې ټولنه تري تشکيل شوي وي بلکه د هغوي د اعمالو په ذريعه ترسره کېږي.

دا فعاليت البته په اوضاعو او شرطونو پوري چې خلک پکې ژوند کوي تړلې دي مګر په عين زمان کې پخپله خلک دغو اوضاعو او شرطونو ته تغيير ورکوي. په دې وجه کې د ک. مارکس په قول اوضاع او شرطونه په هماغه اندازه د انسان د فعاليت محصول شمېرل کېږي په څومره اندازه چې پخپله انسان د اوضاعو او شرطونو معمول دی.

د عمل عيني مشروطيت تر ټولو د مخه له دې حقيقت څخه سرچينه اخلي چې انسانان تل د ژوند د مشخصو شرطونو سره مخامخ کېږي چې د هغو په اراده او غوښتنه پوري تعلق نه لري. او سره ددې چې په دغو شرطونو کې پخپله د خلکو د فعاليت عيني نتيجې مجسمې شويدي مګر دا نتيجې د پخوانې پرمختګ او د يو لړ نسلونو د کار ثمر شمېرل کېږي. هغه تل د دوی د ژوند د هغو عيني شرطونو په کړۍ کې داخلېږي چې دوی ورسره چارناچار سروکار لري. مګر دا خبره اصلاً دا حقيقت نه نفي کوي چې پخپله خلک پخپل فعاليت سره دا شرطونه بدلوي او هغو ته تغيير ورکوي.

ديټرمنيزم قطعاً ددې معنی نه لري چې ګنې د ټولنيز ژوند ټول ضروري او قانوني بدلونونه د خلکو د ارادې او شعور څخه پرته تر سره کېږي. دغه ډول سوءتفاهمونه هغه وخت پيدا کېږي چې انسان د ټولنيزو عملياتو د عامل په حيث د علتونو او معلولونو له کړۍ څخه وايستل شي. په داسې حال کې انسان د حوادثو د قانوني پيوند څخه بهر دروول کېږي حال دا چې په حقيقت کې د هغه فعاليت ددې پيوند ضروري برخه تشکيلوي. دلته د ک. پوپير دريځ د يادولو وړ دی چې ويلي يې و «راتلونکې پخپله په موږ پوري تعلق لري مګر موږ په کوم تاريخي ضرورت پوري تړلي نه يو»*.

---

K. Popper. The Open Society and its Enemies, vol. 1. N.Y., * 1963, p. 3.

په دې کې چې راتلونکې پخپله په موږ پورې تعلق لري هيڅ شک نشته. انسان پخپله د خپلې راتلونکې جوړونکی دی. د ک. مارکس په اصطلاح انسان د خپلې ډرامې ليکونکی او اداکوونکی دی. مګر انسان دا راتلونکې په مشخصو شرطونو کې چې د ده په غوښتنه پورې تعلق نه لري جوړوي.

په دې باره کې تيزس چې آينده پخپله په موږ پورې تعلق لري په هيڅ صورت دا حقيقت نه ردوي چې موږ پخپله په عينې شرطونو پورې چې موږ په هغو کې ستر شوي او پر موږ باندې يې تاکلې اغيزه کړيده تعلق لرو. دا چې څنګه بايد عمل وکړي ددې انتخاب پخپله خلک کوي. مګر خلک دا انتخاب ددې تر تاثير لاندې کوي څنګه په موجودو اوضاعو پوهيږي او د څه شي خوا ته هلې ځلې کوي. په عين حال کې اوضاع نه يوازې د خپلو هدفونو د ترلاسه کولو دپاره د خلکو امکانات ټاکي بلکه د خلکو تمايلات هم جوړوي.

پر هغه څه چې انسان يې کولی شي او پر هغه څه چې غواړي ترسره يې کړي پوهيدل د ده د ژوند د ريښتونو شرطونو د سنجش څخه پرته ناممکن دي. دا په اوضاعو پورې تعلق لري چې ولې کله کله نه يوازې ځانګړي کسان بلکه تمامي ټولنيزې ډلې د ځان په وړاندې ناشونې مقاصد ټاکي. په ځينو مواردو کې هغوی تلاش کوي چې تر ژوند مخکې شي او هغه مقاصد ترسره کړي چې تاريخي شرطونه د هغو دپاره لا نه دي برابر شوي. په نورو مواردو کې بې ځايه هلې ځلې کوي چې هغه څه ته نجات ورکړي چې د تاريخ له خوا په نابودۍ محکوم شوي وي. په مشخص مفهوم سره حتی خيالونه او تصورات هم د ريښتونې ژوند مولود شمېرل کيږي.

په ټولنيز ژوند کې د علت يو مهم خصوصيت دا دی چې هغه مقاصد چې انسان يې په ارادي ډول پخپل وړاندې ټاکي د علت او معلول په ځنځير کې د ضروري غيرمستقيمې کړۍ په حيث تبارز کوي. د کار د تر ټولو ساده اعمالو څخه نيولې د انسان ټول فعاليت آګاهانه او هدف تعقيبوونکې پروسه ده. طبيعي خبره ده چې د مقاصدو او د هغو د ترسره کولو د وسايلو انتخاب په فيصله کوونکي ډول سره د انسان د فعاليت په نتيجو باندې اغيزه کوي. مګر د هدف ټاکلو عامل د انسان د فعاليت ديټرمنيزم نه مستثنا کوي

د ټولنيز ديټرمنيزم عمده خصوصيت په دې کې پروت دی چې د خلکو چې په عين زمان کې د تاريخ عامل شمېرل کېږي فعاليت د هغه معمول تشکيلوي. ټولنيز قوانين د خلکو د عملي فعاليت قوانين دي چې د خلکو څخه پرته نه چې ټولنه ترې تشکيل شوې وي بلکه د هغوی د اعمالو په ذريعه ترسره کېږي.

دا فعاليت البته په اوضاعو او شرطونو پورې چې خلک پکې ژوند کوي تړلي دي مگر په عين زمان کې پخپله خلک دغو اوضاعو او شرطونو ته تغيير ورکوي. په دې وجه کې د ک. مارکس په قول اوضاع او شرطونه په هماغه اندازه د انسان د فعاليت محصول شمېرل کېږي په څومره اندازه چې پخپله انسان د اوضاعو او شرطونو معمول دی.

د عمل عيني مشروطيت تر ټولو د مخه له دې حقيقت څخه سرچينه اخلي چې انسانان تل د ژوند د مشخصو شرطونو سره مخامخ کېږي چې د هغو په اراده او غوښتنه پورې تعلق نه لري. او سره ددې چې په دغو شرطونو کې پخپله د خلکو د فعاليت عيني نتيجې مجسمې شويدي مگر دا نتيجې د پخوانی پرمختگ او د يو لړ نسلونو د کار ثمر شمېرل کېږي. هغه تل د دوی د ژوند د هغو عيني شرطونو په کړۍ کې داخلېږي چې دوی ورسره چارناچار سروکار لري. مگر دا خبره اصلاً دا حقيقت نه نفي کوي چې پخپله خلک پخپل فعاليت سره دا شرطونه بدلوي او هغو ته تغيير ورکوي.

ديټرمنيزم قطعاً ددې معنی نه لري چې گنې د ټولنيز ژوند ټول ضروري او قانوني بدلونونه د خلکو د ارادې او شعور څخه پرته ترسره کېږي. دغه ډول سوءتفاهمونه هغه وخت پيدا کېږي چې انسان د ټولنيزو عملياتو د عامل په حيث د علتونو او معلولونو له کړۍ څخه وايستل شي. په داسې حال کې انسان د حوادثو د قانوني پيوند څخه بهر درول کېږي حال دا چې په حقيقت کې د هغه فعاليت ددې پيوند ضروري برخه تشکيلوي. دلته د ک. پوپير دريځ د يادولو وړ دی چې ويلي يې و «راتلونکې پخپله په موږ پورې تعلق لري مگر موږ په کوم تاريخي ضرورت پورې تړلي نه يو»*.

---

* K. Popper. The Open Society and its Enemies, vol. 1. N.Y., 1963, p. 3.

په دې کې چې راتلونکې پخپله په موږ پورې تعلق لري هيڅ شک نشته. انسان پخپله د خپلې راتلونکې جوړونکې دی. د ک. مارکس په اصطلاح انسان د خپلې ډرامې ليکونکی او اداکوونکی دی. مګر انسان دا راتلونکې په مشخصو شرطونو کې چې د ده په غوښتنه پورې تعلق نه لري جوړوي.

په دې باره کې تيزس چې آينده پخپله په موږ پورې تعلق لري په هيڅ صورت دا حقيقت نه ردوي چې موږ پخپله په عينې شرطونو پورې چې موږ په هغو کې ستر شوي او پر موږ باندې يې ټاکلې اغيزه کړيده تعلق لرو. دا چې څنګه بايد عمل وکړی ددې انتخاب پخپله خلک کوي. مګر خلک دا انتخاب ددې تر تاثير لاندې کوي څنګه په موجودو اوضاعو پوهېږي او د څه شي خوا ته هلې ځلې کوي. په عين حال کې اوضاع نه يوازې د خپلو هدفونو د ترلاسه کولو دپاره د خلکو امکانات ټاکي بلکه د خلکو تمايلات هم جوړوي.

پر هغه څه چې انسان يې کولی شي او پر هغه څه چې غواړي ترسره يې کړي پوهيدل د ده د ژوند د ريښتونو شرطونو د سنجش څخه پرته ناممکن دی. دا په اوضاعو پورې تعلق لري چې ولې کله کله نه يوازې ځانګړي کسان بلکه تمامې ټولنيزې ډلې د ځان په وړاندې ناشونې مقاصد ټاکي. په ځينو مواردو کې هغوی تلاش کوي چې تر ژوند مخکې شي او هغه مقاصد ترسره کړي چې تاريخې شرطونه د هغو دپاره لا نه دي برابر شوي. په نورو مواردو کې بې ځايه هلې ځلې کوي چې هغه څه ته نجات ورکړي چې د تاريخ له خوا په نابودۍ محکوم شوي وي. په مشخص مفهوم سره حتی خيالونه او تصورات هم د ريښتونې ژوند سولود شمېرل کېږي.

په ټولنيز ژوند کې د علت يو مهم خصوصيت دا دی چې هغه مقاصد چې انسان يې په ارادی ډول پخپل وړاندې ټاکي د علت او معلول په ځنځير کې د ضروري غيرمستقيمي کړۍ په حيث تبارز کوي. د کار د تر ټولو ساده اعمالو څخه نيولې د انسان ټول فعاليت آګاهانه او هدف تعقيبوونکې پروسه ده. طبيعي خبره ده چې د مقاصدو او د هغو د ترسره کولو د وسايلو انتخاب په فيصله کوونکې ډول سره د انسان د فعاليت په نتيجو باندې اغيزه کوي. مګر د هدف ټاکلو عامل د انسان د فعاليت ديترمنيزم نه مستثناء کوي

ځکه چې لکه څنګ چې ویل شویدی مقاصد د انسان د ژوند د شرطونو، د هغه د غوښتنو او ګټو مولود شمېرل کېږي. او هغه محرک علتونه چې د دغو عواملو له خوا سنځ ته راځي د انسان د فعالیت خوځوونکي قوتونه ګرزي.

د مقاصدو د اهمیت او د حوادثو په جریان او انجام باندي د هغو د اغیزي نفي کول نامعقول کار دی. په عین زمان کی دا څرګنده ده چې مقصد د آینده تجسم دی. په دی مناسبت ځیني وخت پوښتنه کېږي چې آیا ددی نفی دا ده چې په تاریخ کی آینده په اوسني دوران کی د حوادثو جریان ټاکی او په دی ترتیب د پدیدو علتي پیوند ردېږي؟ آیا د دی څخه دا استنباط نه شی کیدلی چې ایدیالی د مادی په نسبت تعیینوونکي رول لري؟

تر ټولو د مخه به ووایو چې په اوسني وخت کی د کیبرنتیک د موفقیتونو په نتیجه کی د هدف تعقیبوونکی فعالیت مفهوم نه یوازي د انسان د آګاهانه فعالیت د تشخیص بلکه د ټولو پخپله اداره کیدونکو سیستمونو او حتی د هغو چې شعور نه لري (مثلاً په ژوندیو موجوداتو کی او د انسان له خوا په جوړو شوو خودکارو سیستمونو کی) د تنظیم د پروسی د توضیح کولو دپاره په کارول کېږي.

خو د دی مفهوم دغسی استعمال ددی دلیل نه شی کیدای څو چې هدف د انسان د فعالیت د نتیجو د مکملی نمونی په حیث د حیواناتو له غریزوی ګټور فعالیت او د ماشینونو د اتوماتیکي تنظیم له پروسو سره ګډ وګڼ شی. د «مقصد (هدف)» د فلسفی مفهوم څرګند خصوصیت په دی کی پروت دی چې هغه آګاهانه فعالیت ښیي. په ټولنیزه ساحه کی موږ د هغو مقاصدو سره سروکار لرو چې په آګاهانه ډول د خلکو له خوا ټاکل کېږي. تاریخ ته ماټریالستیک نظر د تاریخ په جریان باندی د خلکو د مقاصدو د اغیزي ردول نه بلکه د هغو علمي توضیح غواړي. ولی د تاریخ په ټاکلو مرحلو کی یوازي یو ډول مقاصد سنځ ته راځي نه بل ډول؟ څه شی هغه خلک چې د مشخصو ټولنیزو قواو ښکارندوی شمېرل کېږي دی ته تحریکوی چې د هغو د عملی کولو په طرفدارۍ یا پر ضد مبارزه وکړي؟ د دی پوښتنو ځواب امکان ورکوی چې په تاریخ کی قانونمندي پیدا شی.

د تاریخي پروسې علمي تحلیل د دې غوښتنه کوي چې لومړی باید پخپله د مقاصدو د پیدایښت عیني مشروطیت، دوهم د مقاصدو د ترسره کولو ریښتوني شرطونه (د تاریخي حوادثو د توضیح کولو دپاره د مقاصدو یوازې موجودیت کفایت نه کوي. باید د هغو د ترسره کولو شرطونه هم تحلیل کړی شي)، دریم دا خبره وسنجوله شي چې د انسان د انفرادي فعالیت آګاهانه هدف د ټولې ټولنې په پرمختګ کې د منظم‌والي معنی نه لري. سره د دې چې د انسان انفرادي فعالیت د قاعدې سره سم هدف تعقیبونکی دی تاریخ په هر حال چې څنګه د سوسیالیزم څخه په مخکې فرماسیونونو کې پرمخ ته قطعاً منظم او په آګاهانه توګه سوق او لارښودل شوي پروسه نه وه.

د ټولنیزو قوانینو خصوصیت په دې کې پروت دی چې دا د خلکو د سترو پرګنو د عمل قوانین دي. د ډېرو خلکو د عملیاتو د تعامل په نتیجه کې دا قوانین معمولاً د مسلطو تمایلاتو په څیر تبارز کوي. ځکه د خلکو د عملیاتو د تعامل وروستۍ نتیجه یعنې تاریخي پېښه د ډېرو تمایلاتو د مجموعي قوت په حیث رابرسېره کېږي چې له هغو څخه ځینې په یوه لوري او نور یې په بیلا بیلو لورو یا اصلاً په مخالفو لورو تللی شي. د دغو تمایلاتو د مطابقت یا برعکس مغایرت اندازه تر ټولو د مخه د ټولنې د پرمختګ په مرحله، په طبقاتو باندې د ټولنې د ویش، د هغو په متقابلو مناسباتو، مبارزې او په نورو عواملو پورې تعلق لري. او په دې مناسبت د خلکو د عملیاتو ټولنیزې نتیجې د دوی د هدفونو او تمایلاتو سره یا مطابقت او یا مغایرت پیدا کولی شي. دغسې مغایرت چې د سوسیالیزم څخه د پخوا ټولنو د تاریخ مشخص خصوصیت دی یو ځل بیا ښیي چې د خلکو په مقاصدو کې د تاریخي پرمختګ د وروستي علت لیدل ناممکن دي. د دغو هدفونو او مقاصدو پخپله ترسره کول یا نه‌ترسره کول په زیاتو درندو علتونو پورې چې د تاریخ جریان ټاکي تعلق لري.

په عین زمان کې د عیني تاریخي ضرورت پېژندل اصلاً د ذات د فعالیت ارزښت نه کموي. د مارکسیزم د منتقدینو تر ټولو په زړه پورې طرز د تقدیر سره د قانون‌مندۍ یو شی شمېرل دي. هغوی کله کله د تقدیري پروسې په حیث د تاریخ په باره کې د هیګل

تصورات په مارکسیزم پوری تړی. د «پرانیستی» ټولنی د پیروانو دریځ چی خودسرانه عملیات چی د فعالو خلکو په آزاد تمایل پوری تړلی وی مجاز شمیری د دغسی نظریی په مقابل کی وړاندی کیږی. په دی ترتیب د ذات فعالیت د خودسرانه استبداد په حیث تبارز کوی چی هر ډول تاریخی ضرورت ردوی. په حقیقت کی په دی ذریعه د تاریخی حوادثو او د هغو د علتونو د علمی توضیح امکان له منځه وړل کیږی. که چیری د انسان اعمال کاملاً باطنی ارتباط ولری او یوازی د انسان په آزاده اراده پوری متعلق وی نو دا د خلکو د اعمالو، د هغوی د پرګنه‌ییزو نهضتونو د نتیجو هر ډول سنجش او تنظیم ناممکن کوی.

مګر د مخالف دریځ سره چی دا کوشش کوی چی د ټولنیز ژوند د توضیح کولو او تنظیمولو څخه د آګاهانه عنصر رول اصلاً ایسته کړی هم موافقت کول ناشونی کار دی. د بی‌هیویریزم (behaviourism د امریکائی سایکولوجۍ یو جریان دی چی له دی علم څخه ئی د شعور او ذهنیت مفاهیم ایسته کړل. — مترجم) موقف همدغسی دی چی د انسان رویه د بهرنیو عواملو په نسبت د یو لړ عکس‌العملونو د مجموعی په حیث تفسیروی.

د بی‌هیویریزم د پیروانو د توقف خصوصیتونه د میخانیک د قوانینو پیروی او د هغو خاصو ممیزاتو په نظر کی نه نیول دی چی انسان له حیواناتو او ټولنه له بیولوژیکی نړۍ څخه بیلوی. پر انسان باندی د باندنیو عواملو د تعیینوونکی اغېزی د منلو پر خلاف بحث ته ضرورت نشته. مګر دا اغېزه تل د انسانی شعور له لاری بدلیږی. دا اغېزه د خپلو اعمالو د طرز د ټاکلو دپاره د انسان امکانات له منځه نه وړی ځکه چی دا انتخاب په ډېرو عواملو پوری لکه تر ټولو د مخه (او دا فیصله کوونکی اهمیت لری) د ټولنی په ربښتونو ګټو او د هغی طبقی په ګټو چی دا انسان ورپوری تعلق لری، دده په شخصی ګټو او وړاندی دده له خوا د په دغو ګټو د پوهیدلو په اندازه (دا فهم ښایی چی سم وی ښایی چی غلط وی) او بالاخره د بیلا بیلو ګټو د سرته رسولو د اهمیت او اولیت په ارزیابۍ (چی اکثراً یو د بل سره تضاد لری او کولی شی چی انسان

په مختلفو لورو فعالیت ته تشویق کړی) او په داسی نورو عواملو پوری تعلق نیسی.

د خلکو گټی د ټولنیزو پدیدو د علتونو په تشخیص کی ډېر مهم رول لوبوی. مگر په ټولنه کی د خلکو په رویه باندی د گټو د اغېزی ترتیب مسلاً د شرطی عکس‌العمل د جوړېدو د ترتیب په نسبت په کراتو کراتو مغلق دی.

د دیترمیناسیون مبدا د خلکو د ژوند عینی شرایط دی چی په هغو کی مشخصی غوښتنی او گټی تولیدوی. دا گټی پخپل وار په خلکو کی د فعالیت دپاره دا یا هغه عوامل پیدا کوی. دلته عینی دیترمیناسیون ذاتی دیترمیناسیون ته بدلېږی. په هغه کی دا لاندنی برخی شاملی دی: ۱) په گټو پوهیدل، ۲) د وروستیو او نژدی مقاصدو ټاکل، ۳) د عمل د پروگرام جوړول، ٤) د دی پروگرام د عملی کولو د وسایلو ټاکل، ٥) د هغو ټولنیزو قواو تشکیل چی د دی قدرت ولری چی د گټو د پوره کولو دپاره مبارزه وکړی، ٦) د بیلا بیلو ټولنیزو قواو د مبارزی او تصادم یا د هغو د گډ فعالیت د نهائی نتیجی په حیث د یو لړ گټو (پوره یا قسماً) تحقق او برعکس د نورو گټو نه ترسره کیدل.

اوس به د دی ځنځیر د ټولو کړیو هم وحدت او هم د هغو تر منځ د فاصلو د پیدایښت امکانات څرگند کړو. مثلاً ښایی چی د گټو درک د هغو له پیدایښت څخه د زمان په ډېره یا لږه زیاته فاصله سره جلا شی (او کله کله حتی اصلی گټی ناپیژندل شوی پاته کېږی). د طبقی او ټولنی د مترقی برخی له خوا او وروسته د ټولی طبقی یا ټولنی له خوا په گټو باندی له پوهیدلو څخه د گټو تحقق په لا زیات ډېر وخت سره جلا کیدلی شی. کله چی گټی د ډېرو پراخو پرگنو له خوا وپېژندل شی نو د دی معنی دا ده چی هغه عوامل پیدا کېږی چی هغوی د گټو د تحقق دپاره مبارزی ته تشویقوی. دا د ذاتی عامل چی د مبارزی د موفقیت دپاره ضروری دی یو مهم عنصر شمېرل کېږی. مگر د موفقیت ترلاسه کول له بله پلوه د مربوطو عینی شرطونو غوښتنه کوی. په دی بنیاد عینی شرطونه ذاتی عوامل باید سره یوځای شی تر څو چی د گټو په لاره کی مبارزه سوفقیت ته ورسېږی.

د تاریخی پروسې دغسې ادراک هم د ټولنې او هم د هغو خلکو چې ټولنه ترې تشکیل شوې وي د بدلون د شرطونو د علمي تحلیل دپاره امکانات منځ ته راولي. د ټولنیزو پدیدو په دیټرمنیزم باندې علمي درک د دې امکانات برابروي چې پخپله په ټولنه کې د هغې د بدلون رښتوني قواوې وموندل شي، په انقلابي پراکتیک کې د اوضاعو د تغییر او پخپله د خلکو د تغییر مطابقت ادراک کړی شي. په دې واحده پروسه کې مترقي شعور فعالانه رول لوبوي ځکه چې هغه د ټولنیز پرمختګ غوښتنې او ګټې په سمه توګه ښکاره کوي. ځکه نو طبیعي ده چې مارکسیزم او لېنینیزم د مترقي شعور پاللو او ودې او د پرګنو د روزنې چارې ته ډېر اهمیت ورکوي.

## ۲. ټولنیز یا تکنولوژیك دیټرمنیزم؟

د اندیټرمنیزم یعنې د ټولنیز پرمختګ د قوانینو د ردولو تر څنګ په بورژوايي فلسفه او سوسیولوژۍ کې د بازاري میخانیسیزم* له نظریو څخه ډېره استفاده کېږي. د علمي او تخنیکي انقلاب په شرطونو کې دا نظریې اکثراً په اصطلاح د تکنولوژیک دیټرمنیزم شکل غوره کوي. تکنولوژیک دیټرمنیزم د دیټرمنیزم د نورو ډول ډول شکلونو ځای ونیو لکه: «د جغرافیوي»، «نژادي»، «دموګرافیک» او «مورفولوژیک». دا نوښونه «د ټولنیزو علولو د متودونو» تر عنوان لاندې د فرانسوي پوهانو ر. پنتو او م. ګراویڅ په کتاب کې یاد شویدي.

د تکنولوژیک دیټرمنیزم اساسي مفکوره په تخنیک پورې د ټولنې، د هغې د ټولنیز جوړښت، نظریاتو او مفکورو د یو اړخیز پیوستون په منلو کې پرته ده.

په تکنولوژیک دیټرمنیزم کې د ټولنې په ژوند کې د کار د آلاتو او تکنولوژۍ د اهمیت په باره کې د ک. مارکس نظریاتو یو اړخیز او ښخې سرچپه تعریف پیدا کړی دی.

لوړې دا چې د تکنولوژیک دیټرمنیزم د طرفدارانو په عقیده تخنیک

---

* میخانیسیزم هغه نړۍ‌لید دی چې د طبیعت او ټولنې پرمختګ د میخانیک په قوانینو سره توضیح کوي. — مترجم.

له انسان څخه بېخي جلا کېږي او حتی د هغه پر ضد درول کېږي. تخنیک اکثراً تعبید کېږي او د یوه اهریمنی قوی په حیث چې په انسان باندی باداری کوی ښودل کېږي. دغسی برخورد په ریښه کی له مارکسیزم سره مغایر دی. مارکسیزم د تخنیک د ستر اهمیت په پېژندلو سره انسان اصلی مولده قوه بولی او تخنیک جلا نه بلکه د «انسان او د کار د آلاتو» (یا نن «انسان او ماشین») د سیستم د یوی برخی په حیث څېړی.

دوهم دا چې تکنولوژیک دیترمنیزم تخنیک غټه مستقله قوه گڼی او د اقتصادی مناسباتو څخه د هغه پرمختګ بیلوی. دیترمنیزم په دی بنیاد ټولنیز اقتصادی شرطونه او پخپله د تخنیک د انکشاف محرکی قواوی په نظر کی نه نیسی، حال دا چې په حقیقت کی د تخنیک او مولده قواو پرمختګ عموماً د تولید د ټاکلو طرزونو په چوکاټ کی ترسره کېږی او د هغو د مخصوصو قوانینو تابع دی. ځکه په هغه ځای کی چې د تکنولوژیک دیترمنیزم پلویان په تخنیک پوری د ټولنیز سیستم یوا ړخیزه وابستګی وینی په حقیقت کی د هغو دوا ړو دیالکتیک متقابل تاثیر موجود وی. نه یوازی په مستقیم ډول اقتصادی مناسبات او د اقتصادی اداری سیستم بلکه «په غیرمستقیم ډول» ډېر سیاسی او معنوی عوامل هم د تخنیک پر پرمختګ باندی اغیزه کوی.

دریم تکنولوژیک دیترمنیزم د تخنیکی او ټولنیز پرمختګ تر منځ توپیر په نظر کی نه نیسی او اکثراً هغه حتی سره یو شی بولی. دا مطلب د هغه ډېر پیروان دی عقیدی ته راولی چې د تخنیک پرمختګ د ټولنیز انقلاب «ضرورت له منځه وړی» او ګڼی علمی او تخنیکی انقلاب په معاصر دوران کی د ټولنیز انقلاب «ځای نیسی». نور کسان د تکنولوژیک دیترمنیزم له مفکورو څخه د دوو مخالفو ټولنیزو او اقتصادی سیستمونو د «ورته‌والی» او «یوځای کیدلو» چې ګڼی د دی دوا ړو سیستمونو دپاره د کوم یوه واحد معاصر تخنیک تر فشار لاندی ترسره کېږی د تبلیغ دپاره استفاده کوی.

په معاصرو بورژوایی سوسیولوژیکو ادبیاتو کی د علمی، تخنیکی او ټولنیز پرمختګ متقابل روابط یو ډوله تعریف نه لری. ډول ډول نظریی څرګندېږی چې اساساً په دوو مخالفو دریځونو کی څرګندېږی.

۱) د ټولنيز پرمختګ سره د علمي او تخنيکي پرمختګ يو شی ګڼل
۲) يو بل ته د هغو سره مقابله کول او يو له بله د هغو سره شلول.

د هغو څخه لومړی تعريف معمولاً په مستقيمه توګه د پانګوالۍ دفاع کوی او په خوش‌بينانه طرز سره د هغه د سرنوشت ارزيابی کوی. په دی ضمن کی د قاعدی سره سم بورژوايی مفکوره‌جوړوونکی د پانګوالۍ او عموماً د بشری ټولنی د نوشتونو تر منځ توپير نه راولی. هغوی چی ټولنيز او علمی او تخنيکی پرمختګ يو شی ګڼی د پانګوالۍ يعنی د هغی ټولنی چی په حقيقت کی آينده نه لری ربښتونی تضادونه په نظر کی نه نيسی.

دغسی دفاع په تيره بيا د هغو تيوريو خصوصيت شمېرل کېږی چی په ۵۰ــ۶۰ کلونو کی يی زياته پراختيا موندلی ده.

د پانګوالۍ د عمومی بحران د زياتيدو تر تاثير لاندی د بورژوايی خوش‌بينۍ تيوری په مړه کيدو پيل وکړ او په تيره بيا يی د ۷۰ کلونو څخه خپل ځای بدبينانه پيشګويۍ ته پريښود. مثلاً د روم د کلوب په لومړی راپور کی (د ۱۹۷۲ کال) چی «د رشد حدود» تر عنوان لاندی خپور شو دا مفکوره وړاندی شوی وه چی په نړۍ کی د موجودو طبيعی ذخيرو د محدوديت په اثر او د دی دپاره چی د «جهانی بحران» څخه خلاص شو په کار دی چی د مولده قواو د رشد پيمانه اقلی حد يا حتی صفر ته ورسول شی. د توليد د کميتی رشد د کمولو يا اقل‌حد ته د هغه د رسولو په حساب د «ژوند د کيفيت» د ښه کولو په غرض د کوششونو د سره يوځای کولو د ضرورت په باره کی مفکوری هم چی په پراخه اندازه خپری شوی د بدبينانه نظرياتو ځانته ډول شمېرل کېږی.

د پانګوالۍ د دفاع د ايديالوژيکی حربی په حيث د ټولنيزی بدبينۍ تيوری لکه د هغو څخه مخکی «د عمومی سوکالۍ د ټولنی» د تيوری په شان بداساسه ثابتی شوی. دا ډول تيوری په پرمخ‌تلونکو هيوادونو باندی د ايديالوژيکی اغېزی او ددی په غرض چی د سوسيالستی لاری په ځای چی د دغو ډېرو هيوادونو دپاره زړه راښکوونکی ده د يوه‌قسم معاوضی رول ولوبوی لا زياتی بی‌ثمری شوی. که چيری په پرمختللو کاپېتالستی هيوادونو کی «د رشد د حدودو» د ټاکلو خبره ضروری شوه نو هغه هيوادونه چی په خپل انکشاف کی وروسته‌پاتی دی د څه

شي خوا ته هلې ځلې وکړي؟ هغوی باید ددې دپاره مخ په وړاندې لاړشي چې د «رشد د حدودو» سره مخامخ شي؟ په رښتیا سره دا دومره په زړه پورې آینده نه ده!

د حیرانتیا ځای نه دی چې په وروستیو وختونو کې د بورژوایي تفکر په دننه کې د خوش‌بینۍ د مفکورو د ژوندي کولو کوششونه شويدي. د «رشد د حدودو» د مفکورې پرخلاف د تر ټولو مرغوب کتاب په حیث د «راتلونکو ۲۰۰ کلونو» تر عنوان لاندې د فوتورولوژۍ* د مشهور امریکایي پوه هـ. کان اثر چې د فزیک د پوهاند و. براون او د سیاست پیژندونکي ل. مارتیل په ګډه تالیف شوی دی وړاندې شو. دا اثر چې د امریکا د متحدو ایالوتونو ۲۰۰مې کالیزې ته وقف شوی په ډېرو ژبو ترجمه شویدی. په هغه کې ډېر رښتوني مواد شته چې د اومو موادو، انرژۍ او خوراکي موادو د طاقتي ذخیرو د محدودیت په باره کې نظریه پکې رد شویده. د هغو ګواښونو چې د نفوس د زیاتیدو مولود شمېرل کېږي په باره کې د مالتوس د معاصرو پیروانو پر تصور باندې مستند انتقاد لګول شویدی. د کان په عقیده به د نفوسو وده د سوکالۍ د اوچتیدو سره سم ورو ورو شي. کان خپل ټول دلایل د هغه تیزس پر ضد اړم کړیدي چې وايي «د بې‌نظمۍ خوا ته په پراخه پیمانه مروج شعارونه، د ځوانانو، ښځو او ملي اقلیتونو په منځ کې د تش په نامه آزادي‌بښونکي نهضت تبلیغ او پیدایښت» «د احتمالي انقلاب مهیب خبر» ښکاري. هـ. کان راتلونکي زمانه بېخي په بل ډولویني. په تر ټولو پرمختللو هیوادونو کې به مافوق صنعتي او وروسته مابعد صنعتي اقتصادي ساختمانونه سرونه پورته کړي. دی عقیده لري چې د پرمختلونکو هیوادونو او په صنعتي لحاظ د پرمختللو هیوادونو تر منځ ننني فاصله د نړۍ د راتلونکي ګړندي پرمختګ په لاره کې مانع نه ده. برسېره پر دې هـ. کان د راتلونکي زیات پرمختګ د شرط په حیث پرمختلونکو هیوادونو ته د هغو تولیدي موسسو انتقال پیشبیني

---

* فوتورولوژي هغه علم دی چې د ټولنیزو او طبیعي علومو په معلوماتو باندې بنا کېږي او مطلب یې د بشر او د ټولنې د ژوند د بېلو برخو د راتلونکي پرمختګ پیشبیني ده. — مترجم.

کوی کومی چی طبیعت، فضا او اوبه خچنوی. «خوار او بی‌تعلیمه خلک تل مجبور وو چی کرغیړن کارونه ترسره کړی. دا خبره په برابره اندازه هم په دولتونو او هم د هغو په اوسیدونکو پوری تعلق لری. په دی ترتیب د خوارانو او بی‌تعلیمه خلکو په وړاندی ډېره ښه آینده پیدا کېږی یعنی هغوی به په هغو کارونو لاس پوری کړی چی بډای او تعلیم کړی خلک بی له غواړی نور په هغو بوخت شی...»* دا هم نه شی ویل کیدلی چی هـ. کان به د خپل پروگرام نوی ښکیلاک غوښتونکی (نوی استعماری) خصلت نه وی لیدلی. دی په دی اعتراف کوی چی ډېر خلک به ووایی چی دا «د دریمی نړۍ» د زبېښاک (استثمار) تر ټولو منحوس شکل دی. مگر هغه په دی خبره نه شرمېږی او لیکی چی «د دریمی نړۍ» په ډېرو سیمو کی غربت د هر ډول ککړوالی څخه لا بد دی او څکه د دی مصیبت ژر او په مؤثره توگه له منځه وړل قربانۍ غوړای». په عوض کی به تر ۲۰۰۰ م کال پوری د بشریت تقریباً څلورمه برخه په جوړیدونکو مابعدصنعتی ټولنو کی ژوند وکړی. په هغوی کی به د دریو څخه څه د پاسه دوه برخی د اوسیدونکو د سړی په سر د کلنیو ملی مجموعی محصولاتو له یو زر ډالرو څخه واوړی.

په دی ترتیب پرېږدئ چی سپین پوستکی سپین کار او تور پوستکی تور کار وکړی! مگر هـ. کان دا په نظر کی نه نیسی چی زموږ په عصر کی حال بدل شوی دی. تاریخ د اقتصادی بیرته‌والی، بی‌تعلیمۍ او فقر د ژر تر ژره او مؤثرانه له منځه وړلو دپاره نوی لاری پرانیستی دی. دا سوسیالیزم او د پرمخگ غیرکاپتالستی لاره ده. دا لاره په عمل کی آزمویل شوی او د اکتوبر د ستر سوسیالستی انقلاب په پنځه شپیته کلنه تجربه، د ملی آزادی بخښونکو انقلابونو چی د سوسیالستی انقلابونو او د پرمختللو کاپتالستی هیوادونو د کارگری طبقی له مبارزی سره په واحد انقلابی بهیر کی یوځای کیږی په تجربه باندی آزمویل شویده. د ولسونو متقابله مرسته د وروسته‌پاتی‌والی

---

* H. Kahn, W. Brown, L. Martel. The next 200 Years. A Scenario for America and the World. Associated Business Programmes. L., 1977, p. 43-44.

د له منځه وړلو او د ولسونو نه یوازې د حقوقي بلکه حقیقي برابرۍ چې د ۱۹۷۷ کال په اساسي قانون کې په شوروي اتحاد کې تثبیت شویده عملي کولو رښتوني وسیله شمېرل کېږي.

په تیوریتک لحاظ د ه. کان د قضاوت اصلي عیب په دې کې پروت دی چې دی کوشش کوي چې د تاریخي پروسې عمده محرکه قوه په ټولنیزو بدلونونو کې چې نوي سوسیالستي نړۍ او د تولید د پرمختګ نوي عوامل تولیدوي نه بلکه په عمومي صورت په «بشپړه تکنولوژۍ» او د کارفرمایۍ په روحیه کې چې د پانګوالۍ مولود شمېرل کېږي ولټوي. د هغه ټولنیزه محافظه کارۍ د «مافوق صنعتي» او وروسته د «مابعد صنعتي» ټولنې د پیدایښت په مفکورو سره یوازې پوښل کېږي مګر ددې نقاب لاندې زموږ د پخوانۍ آشنا یعني پانګوالۍ خط و خال ښکارې. ولې د انقلابي ټولنیز اوښتون څخه پرته هیڅ ډول تکنولوژیک اوښتون نړۍ نه شي بدلولی. دا اوښتون یوازې هغه وخت خپل رول لوبولی شي چې کله په اقتصادي او تولیدي مناسباتو کې د بدلون موجب شي او د نوو انقلابي ټولنیزو طبقاتو د عملیاتو اتکاء شي. او دا کار خودبخوده نه کېږي.

ناممکنه ده چې د هغو مفکوره جوړوونکو سره چې د بشریت راتکونکې یوازې په علمي او تخنیکي پرمختګ پورې تړي او د هغو ټولنیزو عواملو رول چې په پانګوالۍ او سوسیالیزم کې د نوي تخنیک څخه د استفادې په برخه کې مخالف ټولنیز شرطونه ټاکي له نظره غورزوي موافقه وشي. البته د معاصرو تولیدي قواو پرمختګ یو لړ عمومي پدیدې پیدا کوي چې هغه د تولید د پروسې د اشتراکي کولو زیاتوالی، د مولده قواو بین‌المللي کیدل، د تش په نامه «دریمې» ساحې (یعنې د خدماتو د ساحې) د برخې وده او د دماغي کار د اهمیت زیاتیدل او نور دي. مګر دا به اشتباه وي چې سړی داسې فکر وکړي چې ګنې دا عمومي پروسې د دوو ټولنیزو سیستمونو اختلاف لرې کوي. برعکس هغه پخپله د ټولنیزو مناسباتو اغیزه ګالي او پخپل نوبت په هغو باندې مربوطه اغیزه کوي.

کافي به وي که د مثال په توګه په پانګوالۍ او سوسیالستي ټولنه کې د تولید د اتوماتیکي کولو نتیجې وکتل شي. اتوماتیکي کول د دې قدرت لري چې د کار تولیدي قوه په لسګونو واره زیاته کړي،

وظیفه لری چی خلکو ته د کار سهولت له ځانه سره واوړي او د وفور رښتونی عصر پرانیزي. مګر په کاپیټالستي ټولنه کې بیکاري او د کوچنیو مؤلدینو افلاس د هغه حتمي ملګرې دی. یوازې سوسیالیزم هغه حیاتي پوښتنه چې د کاپیټالستي هیوادونو زیارایستونکي یې کوي یعنی «د تولید اتوماتیکي کول نیکمرغي ده که مصیبت» بیرته کوي.

مګر موږ به دا مسئله دومره ساده ځرګندوو نه. په سوسیالستي ټولنه کې هم د علمي او تخنیکي پرمختګ منفي اړخونه شته. په تیره بیا که د اتوماتیکي کولو کارونه بشپړ شوي نه وي کله کله د کارګرو دپاره د کار د دلچسپۍ په اندازه باندي اغیزه کوي، کار بورنګه او ستومانوونکې کوي. دا شی نه یوازې د تخنیکي پرمختګ د اقتصادي موثریت بلکه پر کارکوونکي باندي د هغه د اغیزي ځرنګوالی ته هم خاصه توجه غواړي. او دا خبره یوازي په سوسیالستي ټولنه کې په نظر کې نیول کیږي. لا د ماشینونو د جوړولو په وخت کې مخترعین کوشش کوي چي د هغه کارکوونکي ګټي په نظر کې ونیسي چي ماشین اداره کوي یا پر هغه باندي کار کوي.

د خپلو برتریو په وجه یعنی د تولید پر وسایلو (په هغه جمله کې پر ځمکه باندي) د ټولنیز مالکیت د تسلط، د اقتصاد د پلاني شوي پرمختګ، د ټولنې د اړتیاو د لري کولو د غوښتنو په نسبت د تولید د تابع کولو له فیضه سوسیالیزم د طبیعي ذخیرو د موثري او ګټوري استفادي دپاره مساعد شرطونه برابروي. مګر داسي هم کیږي، چي هغه وخت په پوره اندازه د دغو امکاناتو ځخه استفاده نه کیږي چي کله د لنډنظرۍ یا لټۍ، اداري او شخصي ګټو په وجه د طبیعي شتمنیو د اسراف او د اقتصادي توازن د اخلال موجبات پیدا کیږي. د دی مسئلي د نړیوال اهمیت سره په ټینګ ارتباط په شوروی اتحاد کې یعنی په هغه هیواد کې چي د خپلو طبیعي ذخیرو له حیثه ډیر شتمن دی په ۱۹۷۲ کال کې «د طبیعت د خوندي کولو د بشپړتیا او د طبیعي ذخیرو ځخه د استفادي د ښه کولو په باره کې» د شوروی اتحاد د کمونست ګوند د مرکزي کمیټې او د شوروی اتحاد د وزیرانو د شورا پریکړه‌لیک تصویب شو او په ۱۹۷۳ کال کې د ځمکې د ذخیرو په باره کې د شوروی اتحاد او متحدو شوروی جمهوریتونو د قوانینو اساسات منظور شول. په

۱۹۷۷ کال کی د شوروی اتحاد او د متحدو شوروی جمهوریتونو د ټولګټې په باره کی د قوانینو اساسات ترتیب شول. په دغو قوانینو کی نه یوازی د ننیو بلکه د راتلونکو نسلونو د ګټو په سنجش پر طبیعت باندی د ټولنی د اغیزی سره د دسته‌جمعی برخورد مفکوره ځای کړی شوی ده.

د علمی او تخنیکی انقلاب په دوران کی چی کله عملاً ټوله نړی د بشری فعالیت هدف ته اوښتی ده او چی کله پر طبیعت باندی د انسان د اغیزی نتیجی د جیولوژیکی قواو د فعالیت سره مقایسه کیدلی شی په دی ساحه کی د نظم او ترتیب نشتوالی د بشری ټولنی دپاره تر ټولو جدی خطر ته واوښتل.

سوسیالیزم د ټولنیز پرمختګ د نوی ډول خوا ته لاره پرانیسته چی د هغه له برکته خلک نه یوازی په ټولنیز ژوند کی د هغو تغییراتو سره چی د تخنیکی پرمختګ مولود شمېرل کیږی په اصطلاح د ترسره شوی کار څخه وروسته توافق پیدا کوی بلکه پخوا تر پخوا د دغو تغییراتو اټکل کوی او په دی کی د خپل ټولنیز ژوند د نظم او نسق په غرض د علمی او تخنیکی انقلاب له موفقیتونو څخه استفاده کوی.

په دی کی موږ د مارکسیزم د فلسفی د واقعیت نوی دلایل وینو چی د تاریخ په جریان باندی د موثری اغیزی په مقصد د خپل ټولنیز پرمختګ د قوانینو د زده‌کولو دپاره یی امکانات اعلام کړیدی. دا مفکوره یوازی د مارکسیستی ټولنیز دیترمنیزم له موقف څخه چی په تاریخی ضرورت باندی پوهیدل یی د میتافزیک له یوا ړخیزتوب چی د میخانیسیزم د نړۍ‌لید خصوصیت شمېرل کیږی آزاد کړل په تیورتیک لحاظ مبتنی کیدلی او پرمختللی شی.

خلک پخپله خوښه د خپلو اعمالو امکانات نه جوړوی. دا امکانات په عینی شرطونو، د ټولنی د پرمختګ په درجه او نورو عواملو باندی تاکل کیږی. مګر د دغو امکاناتو تحقق تر ډیری اندازی پوری د خلکو په موثر فعالیت او د هغی مبارزی په جریان پوری تعلق لری چی په هغی کی د حوادثو د ګډون کوونکو آګاهی، انرژی او اراده د مهم عامل په حیث رابرسیره کیږی.

د تاریخ په هره مرحله کی ډول ډول او حتی یو له بله سره مخالف امکانات موجود وی. دا چی مثلاً د اقتصاد زیات اوچت ډول

ته انتقال به په کومو شکلونو ترسره شي او آیا یو مشخص انقلاب به بریالی شي که ماتي به خوري؟ ددې پوښتنې ځواب په یورنګه ډول له پخوا څخه نه دی ټاکل شوی. دا ځواب د بیلا بیلو ټولنیزو قواو چې د خپلو ګټو دفاع کوي د مبارزي په جریان او انجام پوري تعلق لري.

په دې ترتیب تاریخ په عیني توګه مشروط او د ټاکلو قوانینو تابع دی او دا قوانین د خلکو په اراده او شعور پوري تعلق نه لري. تاریخ د پرمختګ طبیعي تاریخي پروسه ده او په عین زمان کې د خلکو له خوا د خپلې راتلونکې د موثرو جوړولو پروسه ده چې په هغې کې د خلکو شعور ، اراده، نظم او د ذاتي عامل نور عناصر ستر رول لوبوي. د دې دپاره چې په هره ستره تاریخي پېښه سرې سم پوه شي په کار دی لکه څنګه چې و. ای. لېنین ویلي وو چې نوموړې پېښه «د ژوندیو ټولنیزو قواو چې په کومو مشخصو عیني شرطونو کې په کوم ټاکلي طرز فعالیت کوي او په زیات یا لږ موفقیت سره د مبارزي له کومو مشخصو شکلونو څخه استفاده کوي»* د مبارزې د نتیجې په حیث تلقي شي. یوازې د تاریخ دغسې درک کول امکان برابروي چې په هغه کې د ټولنې او هغو خلکو چې د اوسنۍ زمانې د فعالو شخصیتونو او د راتلونکې د جوړوونکو په حیث فعالیت کوي د پرمختګ اساسي پروسه ولیدل شي.

ته انتقال به په کومو شکلونو ترسره شي او آیا یو مشخص انقلاب به بریالی شي که ماتي به خوري؟ ددې پوښتنې ځواب په پورنګه رول له پخوا څخه نه دی ټاکل شوی. دا ځواب د بېلا بېلو ټولنیزو قواو چې د خپلو ګټو دفاع کوي د مبارزې په جریان او انجام پورې تعلق لري.

په دې ترتیب تاریخ په عیني توګه مشروط او د ټاکلو قوانینو تابع دی او دا قوانین د خلکو په اراده او شعور پورې تعلق نه لري. تاریخ د پرمختګ طبیعي تاریخي پروسه ده او په عین زمان کې د خلکو له خوا د خپلې راتلونکې د موثرو جوړولو پروسه ده چې په هغې کې د خلکو شعور ، اراده، نظم او د ذاتي عامل نور عناصر ستر رول لوبوي. د دې دپاره چې په هره ستره تاریخي پېښه سړی سم پوه شي په کار دی لکه څنګه چې و. ای. لېنین ویلي وو چې نوموړې پېښه «د ژوندیو ټولنیزو قواو چې په کومو مشخصو عیني شرطونو کې په کوم ټاکلي طرز فعالیت کوي او په زیات یا لږ موفقیت سره د مبارزې له کومو مشخصو شکلونو څخه استفاده کوي»* د مبارزې د نتیجې په حیث تلقي شي. یوازې د تاریخ دغسې درک کول امکان برابروي چې په هغه کې د ټولنې او هغو خلکو چې د اوسنۍ زمانې د فعالو شخصیتونو او د راتلونکې د جوړوونکو په حیث فعالیت کوي د پرمختګ اساسي پروسه ولیدل شي.

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۱۷ ټوک، ۴۳ مخ.

## ۳ فصل

# د ټولنیز پرمختګ د قوانینو د پیژندنی په باره کی

د هر علم هدف د خپلی مطالعی لاندی ساحی د پدیدو د قوانینو پیژندل او په عملی فعالیت کی ددی پیژندنی څخه استفاده کول دی. په دی مورد کی د ټولنی علوم د طبیعت پیژندنی سره ورته‌والی لری. مګر د طبیعت پیژندنی پرخلاف د ټولنیز ژوند پیژندنه ډیر وروسته او یوازی د تاریخی ماټریالیزم د تیوری په پیدایښت سره چی د ک. مارکس او ف. انګلس له خوا د تیری پیړی په څلویښتمو کلونو کی ایجاد شو علم ته واوښته.

زیاتره معاصر بورژوایی فیلسوفان او مورخین چی کله طبیعت پیژندنه د ټولنی د علومو سره مقایسه کوی نو عقیده لری چی د ټولنی علوم اصلاً د «دقیقو» علومو سویی ته نه شی جګیدلی. هغوی اکثراً وایی چی د ټولنیز علم قوانین چی د بیلا بیلو جهتونو د ټولنی پیژندونکو د هغو د کشفولو ادعا درلوده تر اوسه پوری د طبیعت پیژندنی د اساسی قوانینو په شان دومره عمومی محبوبیت نه لری. په دی اساس د ټولنیز علم د امکاناتو په برخه کی ډیر بدبینانه استنتاجونه کیږی.

د دغو فیلسوفانو او مورخینو بدبینی د پوهیدلو وړ ده. دوی خو د زوال موندونکی طبقی مفکوره جوړوونکی دی. مګر مارکسیستان په هیڅ صورت نه شی کولی چی له دی بدبینی سره موافقه وکړی. د څه د پاسه سلو کلونو په موده کی چی له هغه وخته تیر شویدی چی ک. مارکس او ف. انګلس د ټولنی د پرمختګ تر ټولو مهم قوانین کشف کړل، د هغوی له خوا جوړه شوی تیوری د ستر تاریخی ازمایښت څخه تیره شوه. هغه لوی بدلونونه چی په دی موده کی په ټوله نړۍ کی پیښ شویدی او تر ټولو لوړی په شوروی اتحاد کی د سوسیالیزم بری او په نورو هیوادونو کی د سوسیالستی ټولنی د

جوړولو موفقیتونو ښیی چې انقلابی پرولتاریا چې په سر کې یې کمونستی او کارګری ګوندونه ولاړ دی د ټولنیز پرمختګ د هغو قوانینو چې د مارکسیزم او لېنینیزم له خوا کشف شویدی له پوهنې څخه د ټولنې د بدلونونو په مقصد موفقانه استفاده کوی. دا ثابتوی چې د ټولنیز ژوند قوانین لکه د طبیعت د قوانینو په شان موفقانه پېژندل کېدلی او د عمل په میدان کې ځنی استفاده کېدلی شی.

## ۱. د «طبیعی قانون» مفکوره او د ټولنې په پېژندلو کې له هغه څخه استفاده

د علم قوانین لکه چې مخکې وویل شول پخپله د عینی نړۍ د قوانینو زیات یا کم دقیق انعکاس بلل کېږی. د علم د هر ډول قانون عمومی خصوصیتونه مختصراً په لاندی ډول ټاکل کېدلی شی.

لومړی دا چې هغه د پدیدو تر منځ مهم ارتباط څرګندوی. په ژوند کې بیشمېره زیات ارتباطونه موجود دی. ځینی دا ارتباطونه ژور او باطنی دی، نور سطحی او باندنی دی. د قانون د کشفولو دپاره په کار دی چې د پدیدی ماهیت راوسپړل شی او د دوهمی درجې او غیرمهمو روابطو ترشا اساسی او مهم روابط پیدا کړی شی. و. ای. لېنین لیکلی وو چې «قانون مناسبات دی... د ماهیت یا د ماهیتونو تر منځ مناسبات دی»*.

دوهم دا چې قانون واحد نه بلکه عمومی روابط څرګیدوی. لکه څنګه چې ف. انګلس «د طبیعت په دیالکتیک» نومی اثر کې ویلی وو قانون په طبیعت کې د عمومیت شکل دی. د قانون په درک کولو سره موږ په واحدو او خصوصی شیانو کې عمومی پدیده کشفوو.

دریم دا چې قانون ضروری یعنی داسی ارتباط څرګندوی چې د ټاکلو پدیدو د ماهیت څخه سرچینه اخلی. د دی دپاره چې قانون کشف کړو باید د تصادفی رابطو څخه لری شو، د بیشمېره پدیدو د ظاهری بې‌نظمۍ تر شا چې په سطحه کې ښکارېږی باطنی ضروری رابطه پیدا کړو چې پرمختګ یې د هغې تابع وی.

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۲۹ ټوک، ۱۳۸ مخ.

۵*

بالاخره د قانون څلورم خصوصیت دا دی چې هغه د پدیدو دایمی او پایدار اتباط څرګندوی. د بشر نه چاپیره عینی نړۍ، طبیعت او ټولنه بلا وقفه تغییر موبی مګر په همدغه وخت کی د پدیدو تر منځ ټاکلی، نسبتاً پایدار او دایمی روابط ساتل کیږی. و. ای. لېنین په «فلسفی کتابچو» کی ویلی وو چې قانون په پدیده کی استوار او پاییدونکی شی دی.

البته دا ارتباط هروسرو بی‌بدلونه نه پاته کیږی. نه یوازی پدیدی بلکه پخپله قوانین هم تغییر موبی. ټول قوانین د لازیاتو عموبی قوانینو څخه پرته چې په ټوله نړۍ کی اعتبار لری په ټاکلی مفهوم تاریخی دی ځکه چې یوازی په مشخصو شرطونو کی عمل کوی. مثلاً د بیولوژیکی پرمختګ قوانین هغه وخت چې کله ژوند پیدا کیږی یعنی دا چې د مادی نړۍ د پرمختګ په ټاکلی مرحله کی په عمل پیل کوی.

د قانون مفکوره له اوله په طبیعت‌پیژندنه کی طرح شوی وه که څه هم اکثراً په میتافزیک طرز سره تعبیر کیدله. د ټولنیز ژوند په برخه کی د طبیعت د پیژندنی په نسبت ډیره موده وروسته له هغی څخه استفاده وشوه.

د «طبیعی قانون» مفهوم چې فیلسوفانو او مورخینو تری پراخه استفاده کوله په هغه وخت کی زیاتره پخپله د خلکو له خوا د مقررو قوانینو په حیث له ذاتی تعبیر سره ګډیده. مګر ځینی فیلسوفان او اقتصادی پوهان دا مفهوم په بله معنی تفسیر کوی. هغوی کوشش کوی چې له قانون سره د پدیدو د مطابقت مفکوره چې د خلکو په اراده پوری تعلق نه لری په ټولنیز ژوند کی تطبیق کړی.

مثلاً د انګریزی کلاسیک سیاسی اقتصاد د موسس و. پیتی په عقیده طبیعی قوانین دومره غښتلی دی چې د مدنی ژوند قوانین د هغو سره مقابله نه شی کولی. ځکه خو نو د طبیعی قوانینو سره د مدنی قوانینو مقابله کول بی‌ګټی او خوشی کار دی. په اقتصادی ژوند باندی د حکومتونو د اغیزی په باره کی و. پیتی ویل چې «لکه څنګه چې معقول ډاکتران خپل ناروغ بی‌اندازی په دواګانو باندی نه موروی او په دی کار کی تر ټولو د مخه د طبیعت پروسی په نظر کی نیسی خو په خپلو جبری عملیاتو سره د دی پروسو سره مخالفت

نه کوی په همدی ترتیب په سیاست او اقتصاد کی ضروری دی چی همغسی عمل وشی»*.

فزیوکراتانو یعنی د اتلسمی پېړۍ د دوهمی نیمایۍ فرانسوی اقتصادی پوهانو هم په همدی ترتیب قضاوت کاوه. مثلاً ف. کینی د اداری قوانین چی د حاکمه قدرت له خوا جوړېدل او طبیعی قوانین چی د هغه په عقیده د انسان له خوا نه بلکه د طبیعت د جوړوونکی یعنی خدای له خوا د ابد دپاره جوړ شویدی سره بیلول. خلک چی په ټولنه کی سره متحد شویدی د هغه نظم تابع دی چی طبیعی قوانین یی ورته مقرروی. هغه عقیده لری چی انسان اصلاً د دغو قوانینو جوړوونکی نه دی. قوانین د طبیعت پروسی او د انسان کار تنظیموی کوم چی د طبیعت له قواو سره باید د خلکو د ضروری نعمتونو د تولید له چاری سره مرسته وکړی.

د ف. کینی په نظریاتو کی د فزیوکراتانو قوی او کمزوری اړخونه ښه لیدل کېږی. کله به چی هغوی د خلکو د ذاتی سنجش سره د پدیدو طبیعی نظم مقابله کاوه او ویل به یی چی طبیعی قوانین عینی خصلت لری نو هغوی هروسرو حق په جانب وو. مگر چی کله به هغوی په غیرتاریخی ډول دا قوانین څېړل نو څرگنده محدودیت به یی ښکاره کاوه. دغو اقتصادی پوهانو د پانگوالۍ تاریخی مشروط قوانین دایمی بلل او هغه یی په ټولو فرماسیونونو تطبیقول.

ک. مارکس ویل چی فزیوکراتانو د تولید بورژوایی شکلونه د «ټولنی د فزیولوژیکو شکلونو په حیث یعنی د هغو شکلونو چی پخپله د تولید د طبیعی ضرورت څخه سرچینه اخلی او په اراده، سیاست او نورو عواملو پوری تعلق نه لری څېړل. دا مادی قوانین دی. اشتباه دلته یوازی په دی کی ده چی د ټولنی د یوی ټاکلی مرحلی مادی قانون د مجرد قانون په حیث څېړل کېږی کوم چی د ټولنی په ټولو شکلونو باندی یورنگه چلېږی»**.

---

* و. پیتی. اقتصادی او احصاییوی آثار. مسکو، ۱۹٤۰، ٤۸ مخ.

** ک. مارکس او ف. انگلس. د آثارو مجموعه، ۲٦ ټوک، لومړۍ برخه، ۱۲ مخ.

د بورژوازۍ د کلاسیک سیاسي اقتصاد تر ټولو وتلو نمایندګانو د و. ای. لېنین په قول د پانګوالۍ یو لړ «طبیعي قوانین» احساس کول خو د هغې په موقتي خصلت نه پوهېدل او په هغې کې یې د طبقاتي مبارزې خصلت نه لیده.

مارکسیزم د ټولنې پرمختګ د طبیعي تاریخي پروسې په حیث پېژني. ددې خبرې معنی لوړې دا ده چې دا پرمختګ د عیني قوانینو له مخې چې د خلکو په اراده او غوښتنه پورې تعلق نه لري ترسره کېږي او دوهم دا چې دا پرمختګ هغه تاریخي پروسه ده چې د هغې په نتیجه کې ټولنه دایماً تغییر موسي او د خپل پرمختګ ډول ډول سرحلې تیروي.

په بورژوایي فلسفه کې د بشري ټولنې د پېژندلو په برخه کې د «طبیعي قانون» مفکوره ډېر ځله د طبیعت او ټولنې د پرمختګ د قوانینو د یو شي ګڼلو سره یوځای کېږي. مثلاً د اوه‌لسمې او اتلسمې پېړۍ فیلسوفان ماټریالستان چې کوشش کاوه ځانته ډول «ټولنیز فزیک» جوړ کړي کوم چې د هماغسې دقیقو ریاضي قوانینو په ذریعه چې د مادي اجسامو فزیک ترې استفاده کوي ټولنیز ژوند توضیح کړی شي.

د ټولنې د ژوند کیفي خصوصیت د طبیعت پېژندنې د مفاهیمو په مرسته د هغې د پرمختګ د قوانینو درک کول ناممکن کوي. د ټولنیز ژوند په درک کولو کې د ماټریالیزم تطبیقول یوازې د بشري ټولنې د خاصو قوانینو په کشفولو سره تر سره کېدلی شي.

مثلاً د بیولوژۍ د مفاهیمو په مرسته په هیڅ ډول سره ټولنیزې پدیدې نه توضیح کېږي. البته د خلکو تر منځ بیولوژیکي مناسبات یعنې هغه مناسبات موجود دي چې د بشري نسل د تولید سره ارتباط لري مګر دا مناسبات د ټولنې جوړښت او د هغې شکلونه ټاکي. دا خبره په تیره بیا هغه وخت څرګندېږي چې محض موږ د ابتدایي ټولنې له چوکاټ څخه ووځو او د خلکو د جمعیتونو ټول نور اشکال چې په راوروسته تاریخ منځ ته راغلي دي څېړو. خلک په ټولنه کې د تولیدي مناسباتو په وسیله سره یوځای کېږي. هماغه تولید انسان د حیواناتو له جهان څخه بیل کړ او په کیفي لحاظ د نوی تشکیل شوی واحد یعنې بشري ټولنې پیدایښت یې وټاکه. هغه څه چې د خلکو تر منځ په بیولوژیکي مناسباتو پورې تعلق لري نو لکه څنګه چې وویل شول دا مناسبات د

هغو د ټولنيزو روابطو تر اغيزې لاندې او له هغو سره د پيوستون په نتيجه کې بدلون موږي.

اکثراً په دې خبره باندې يوازې د حيرانتيا ځاى پاته کېږي چې ځينې معاصر بورژوايي مفکوره جوړوونکي تلاش کوي چې په تاريخي ماترياليزم پورې د داسې پروسې په حيث چې ټول ټال د طبيعت د قانون تابع وي په ټولنيز پرمختګ پورې ناتورليستي نظر وروتړي.

په هر صورت چې وي د ټولنيزو پديدو د خصوصيتونو په نظر کې نه نيول قطعاً د مارکسيزم سره مغايرت لري. مارکسيزم عقيده لري چې د ټولنې ژوند د خپلو قوانينو تابع دى او د هغو درک کول د ټولنيزو علومو د مخصوصو مفاهيمو څخه چې د طبيعت پيژندنې د مفاهيمو څخه توپير لري استفاده غواړي.

## ۲. د ټولنيز پرمختګ د قوانينو د عمل او پيژندنې خصوصيتونه

د ټولنيز پرمختګ قوانين نه يوازې د خپل مضمون بلکه د عمل د ځرنګوالي له حيثه هم د طبيعت له قوانينو څخه توپير لري.

د ټولنيز پرمختګ د قوانينو خصوصيت تر ټولو لومړى د هغه حقيقت څخه سرچينه اخلي چې د ټولنيز پرمختګ قوانين د انسانانو د فعاليت قوانين دي او د انسان د عمل څخه پرته په بل ډول نه ترسره کېږي. په دې کې مطلب د خلکو د پرګنو په فعاليت باندې دى. ځکه نو د ټولنيز پرمختګ د قوانينو د درک کولو دپاره په کار وو چې ټولنيز ته (يعنې د خلکو د لويو ډلو، طبقاتو، ولسونو ته) د انفرادي (يعنې د ځانګړو اشخاصو د بې‌نهايته مختلفو اعمالو چې ظاهراً نه شي ترتيبيدلى) د رسولو طرزونه طرح کړى شي. لکه څنګه چې و. اى. لېنين ويلي وو دا د بشري ادراک له عمومي جريان سره مطابقت لري. «ټول مطلب په دې کې دى چې د عمومي ټاکلو قوانينو په نامه «د انفرادي پديدو» څخه استنتاج کول د جسماني نړۍ دپاره ډېره موده پخوا بشپړ شويدي مګر په ټولنيزه ساحه کې هغه يوازې د مارکس په تيورۍ سره برقرار شويدي» *.

---

* و. اى. لېنين. کليات، ۱ ټوک، ٤۳۰ مخ.

د جسمانی نړۍ دپاره ددی مسئلی حل کول آسان وو ځکه چی د هغې قوانین د طبیعت د ړندو او بی‌شعوره قواو روابط او متقابله اغیزه څرګندوی. د ټولنیزی نړۍ دپاره دا وظیفه ډېره مغلقه وه ځکه چی د ټولنیزو قوانینو عمل د خلکو د هدف تعقیبوونکو او آګاهانه عمل د ضروری شرط په حیث په ځان کی شاملول. ځکه خو نو د ټولنیز پرمختګ قوانین د خلکو د ټولنیزو اعمالو قوانین شمېرل کېږی.

په کوم ترتیب سره د خلکو د سترو پرګنو چی پخپل ځانګړتوب سره توپیر لری اعمال له ټاکلو عمومی قوانینو سره یو شی شمېرل کېږی، د هغو تابع کېږی او په هغو کی ورننوځی؟ داسی معلومېږی چی دا پروسه پخپله په ټولنیز ژوند کی په عینی توګه ترسره کېږی او په بل صورت کی د ټولنیزو درک کولو په پروسه کی ټولنیز ته د انفرادی راوستل په بل ډول ناممکن دی.

د دی پوښتنی د ځواب دپاره په کار دی چی موږ د خوځوونکی قوی، د خلکو د تحریک او تمایلاتو د سرچینی په حیث د ګټو په هکله مفکوری ته راوګرزو چی په تیر فصل کی څرګنده شوه. په حقه ویل شویدی چی ګټی د خلکو د ژوند محرک عامل شمېرل کېږی. ځکه خو نو د ګټو مطالعه کول د ټولنیز پرمختګ د محرکو قواو او د قوانینو د درک کولو امکانات پیدا کوی. لکه څنګه چی ف. انګلس ویلی وو «د هغو خوځوونکو علتونو چی په څرګنده یا ناڅرګنده توګه مستقیماً یا په ایدیولوژیکی او ښایی چی په تخیلی شکل د فعالیت کوونکو پرګنو او د هغوی د لارښوونکو په اصطلاح د سترو خلکو په ماغزو کی د شعوری تحریکاتو په شکل ښکاره کېږی مطالعه کول یوازنۍ لاره ده چی د هغو قوانینو درک کولو ته چی عموماً په تاریخ کی او د هغه په ځانګړو دورو یا په ځانګړو هیوادونو کی تسلط لری لارښوونه کوی» *.

ګټی د ټولنیزو قوانینو د عمل د ضروری کړۍ حیثیت لری. دلته ګټی د کلمی په پراخه معنی سره استمالېږی. تر ټولو د مخه دا اقتصادی ګټی دی (ځکه چی مطلب په اقتصادی قوانینو باندی دی). مګر دا

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۲۱ ټوک، ۳۰۸ مخ.

نه یوازی اقتصادی بلکه سیاسی او نوری گټی هم دی لکه د شخصیت، ډلی، طبقی، ټولنی او نورو ګټی د دغو ګټو ادغام او سره ګډیدل او د هغو تر منځ یووالی او تناقض مغلقه او هر اړخیزه نتیجه تعیینوی چی هغه تاریخی پیښه ده.

په هغه څه سره چی موږ وویل د ټولنیزو او طبیعی قوانینو تر منځ توپیر نه خلاصیږی. د ټولنیزو قوانینو د عمل د شکلونو په باره کی مسئله او په دی باره کی چی آیا دا قوانین په مقداری یا دینامیکو قوانینو پوری تعلق لری، آیا هغه د ټولو واحدو پیښو قوانین دی که تمایلاتی قوانین دی، آیا د ستاتیک او دینامیک په قوانینو باندی، د عمل او پرمختګ په قوانینو باندی ویشل کیږی — دا مسایل خاصه څیړنه غواړی. دا ټولی مسئلی به موږ په تفصیل سره وڅیړو.

اوس د ټولنیزو قوانینو په عمل کی د ګټو د رول په باره کی د پورته ذکر شوی قضیی په څیړلو کی دی ته پام کوو چی دا ګټی د ټولنی د درک کولو په پروسه باندی اغیزه کوی. د ګټو په ذریعه نه یوازی د قوانینو عینی عمل بلکه لکه څنګه چی لاندی به یی وښیو د هغو د پیژندلو چاره هم اوړی.

پورته مو وویل چی انسانانو د طبیعت چی ورنه چاپیر موجود دی قوانین د خپل ټولنیز ژوند د قوانینو په نسبت ډیر مخکی کشف کړل. داسی ښکاریدلی شی چی ددی سبب یوازی د ټولنی د ژوند زیات پیچلتوب دی. دی کی شک نشته چی د ټولنی ژوند د پدیدو زیاته مغلقه ساحه ده او مثلاً د بیالوژیکی ژوند په نسبت نه انډول کیدونکی دی. مګر مطلب یوازی په دی کی نه دی. په کار دی چی د ټولنیز پرمختګ په قوانینو او د هغو په تاریخی شرطونو باندی د پوهیدلو خصوصیتونه په نظر کی ونیول شی په کومو کی چی د دغو قوانینو کشفول ممکن وی.

په هر قانون باندی پوهیدل تعمیم غواړی. دا پخپله د قانون د ماهیت څخه سرچینه اخلی چی یو تر ټولو مهم خصوصیت یی عمومیت دی. د چاپیریالی نړۍ احساسی ادراک د خپل ماهیت له مخی ددی قدرت لری چی د اشیاو او پدیدو او د هغو د خصوصیتونو په باره کی انسان ته په عینی توګه سم تصور ورکړی. مګر دا تصور د حقیقت د درک کولو یوازی لومړۍ مرحله تشکیلوی او هغه ددی دپاره

کفایت نه کوی چی د طبیعت او ټولنې د پرمختګ قوانین کشف کړی شی. انسانی ادراک په احساسی برداشت چی ددی دپاره امکان نه برابروی چی په تمام ډول سره پدیده احتواء شی او د هغه ماهیت وسپړل شی نه ختمېږی. دا برداشت د ژوندی او مستقیمی مشاهدی څخه تر مجرد تفکر پوری اوچتېږی او یو لړ عمومی مفاهیم، تجریدونه تولیدوی چی د ساده مشاهدی په نسبت په لا ژوره، بشپړه توګه عینی نړۍ منعکسوی. و. ای. لېنین عمومی مفاهیم، مقولې او د علم قوانین د هغې پروسې د اصلی نقطو او مرحلو په حیث ځیرل چی انسان ته د چاپیریالی نړۍ په ماهیت کی لا په ژوره توګه ورننوزی. که چیری د هر قانون ادراک د تجرید او تفکر او د احساسی غریزو د نتیجو د تعمیم څخه پرته ناممکن دی نو د ټولنیزو پدیدو په تحلیل کی د ټولنې د پرمختګ د قوانینو په درک کولو کی تجرید خاص رول لوبوی.

پدیدی په هغه ځای کی چیری چی هغه په ډېر څرګند ډول روانی دی ښایی چی په سیاسی اقتصاد کی هم رابرسېره شی. معلومه ده چی مثلاً کله چی ک. مارکس د پانګوالۍ قوانین مطالعه کول نو تر ټولو د مخه یی هغه د انګلستان په مثال سره توضیح کول یعنی د مفصلی پلټنې د موضوع په حیث یی داسی هیواد غوره کړ چیری چی د پانګوالۍ قوانین په زیات خالص ډول منځ ته راغلی وو او کاپټالستی مناسبات په تیره بیا پرمختللی وو. هغه څه چی په هغو شرطونو کی چی په خالص ډول د پروسې جریان تامینوی د تجربې په ترسره کولو پوری تعلق لری نو دا د قاعدی سره سم یوازی په محدوده پیمانه په سیاسی اقتصاد او په نورو ټولنیزو علومو کی امکان درلودلی شی. په دی مناسبات مارکس ویلی وو چی «د اقتصادی شکلونو په تحلیل کی ناممکنه ده چی د میکروسکوپ یا کیمیاوی ریاکتیفونو او موادو څخه استفاده وشی. دا دواړه شیان باید د تجرید په قوی تعویض شی»*. د تجربې محدود امکان باید دلته د تجریدی تفکر په ذریعه جبیره شی. هغه تر ټولو زیات ښتونی مواد او مدارک چی د مارکس له خوا مطالعه شوی وو د هغه له خوا په

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۲۳ ټوک، ۶ مخ.

تیورتیک لحاظ تعمیم شوی او تحلیل شوی وو. ددی نتیجه د تولید د کاپتالستی طرز د عمومی قوانینو کشفول وو.

د ټولنیز پرمختګ د قوانینو درک کول یوازی په هغو تاریخی شرطونو کی ممکن ګرزی په کومو کی چی دا قوانین په زیات څرګند شکل کی تبارز کوی. او دا شرطونه د ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو د پرمختګ په جریان کی هغه وخت منځ ته راځی چی کله د هغو خاص ټولنیز مناسبات لازمی پخوالی ته ورسیږی.

د طبیعت په علومو کی د کومی نوی څانګی د پیدایښت په ترڅ کی د قاعدی سره سم سړی نه مجبوریږی چی د مطالعی له ناپرمختللی مورد سره مخامخ شی*. معمولاً هغه د علم د مربوطی ساحی د پیدایښت څخه ډیره موده پخوا په پرمختللی شکل کی وجود لری. په ټولنیز ژوند کی کار بیخی بل ډول وی. نوی سوسیالوژیکی او اقتصادی تیوری د مربوطو ټولنیزو ناپرمختللو مناسباتو په شرطونو کی پیدا کیږی او د هغو د ناپخوالی تر اغیزی لاندی وی.

دا تر ډیری اندازی پوری هم ددی حقیقت سبب دی چی په ټولنیز ژوند باندی د پوهیدلو او د هغه د بدلولو په کوششونو کی تخیل تر علم مخکی پیدا شو. البته په تخیلی تیوریو کی زیات شمیر معقول اټکلونه هم پراته وو. ولی ددی تر څنګ په هغو کی ګڼ شمیر داسی تخیلی تصورات موجود وو چی د ټولنیزو مناسباتو کم انکشاف یی څرګنداوه. ک. مارکس او ف. انګلس لیکلی وو «لکه څنګه چی په طب کی معجزه ښودونکی طبیبان او معجزه کوونکی دارو د طبیعت د قوانینو سره د آشنایی له اساس څخه محروم دی کټ مټ په همدی ډول په ټولنیز ژوند کی ټوټکه ماران او د ټولو مصیبتونو د له منځه وړلو وسیله د ټولنیزی نړی د قوانینو سره د آشنایی اساس نه لری...» **.

---

* البته دلته هم د ناممکنه موضوع د درک کولو دپاره باید پرمختللی موضوع مطالعه شی. په دی کی د مارکس ددی مفکوری مفهوم پروت دی چی د انسان اناتومی (د تشریح علم) د بیزو د اناتومی د پیژندلو وسیله ده.

** ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۳ ټوک، ۵۳۷ مخ.

کم تر کمه د ارزښت د قانون د کشفولو تاریخ په صراحت سره د ټولنیزی نړۍ د قوانینو د ادراک تاریخی مشروطیت څرګندوی. د ډېرو پېړیو په اوږدو کی دی قانون چی انسانانو لا درک کړی نه وو عمل کاوه.

ک. مارکس «پر سیاسی اقتصاد د انتقاد» په مقدمه» کی لیکلی وو چی «کار پخپل ذات کی» بسیط تجرید دی. مګر په سیاسی اقتصاد ددی مفهوم د روی‌کار کیدلو دپاره مشخص تاریخی شرطونه په کار وو. د کار د ټاکلی ډول په نسبت عملی بی‌تفاوتی چی د کار د رښتونو اشکالو له کومو څخه چی یو هم د نورو په نسبت حاکمیت نه لری ډیره پرمختللی مجموعه پیش‌بینی کوی ددی مفهوم زمینه تشکیلوی. په دی بنیاد دغسی تجرید یوازی په هغو ټولنیزو مناسباتو کی تشکل موندلی شی چی په هغو کی اشخاص په آسانۍ سره د کار له یوه ډول څخه بل ته انتقال کولی شی. کار نه یوازی په مفهوم بلکه په رښتیا سره هم عموماً د شتمنۍ د ایجادولو وسیله ګرزی او د ټاکلی فرد سره خپل خاص ارتباط له لاسه ورکوی. دغسی مناسبات د تولید د کاپتالستی طرز په اساس منځ ته راځی. ځکه خو نو لکه څنګه چی مارکس لیکی یوازی د کاپتالیزم په دوران کی د «کار پخپل ذات کی» تجریدی مفهوم چی د معاصر اقتصادی علم مبداء شمیرل کیږی عملی واقعیت ته اوړی*.

ک. مارکس د ارزښت په خپل تحلیل کی د پخوانیو تیوریو په مقایسه د تعمیم زیاتی اوچتی مرحلی ته پورته شو. ده د لومړی ځل له پاره مشخص کار کوم چی استهلاکی ارزښت جوړوی او مجرد کار سره بیل کړل. مارکس وښودله چی همدغه مجرد کار دی چی د ارزښت منبع شمېرل کیږی. ددی له فیضه هغه وکولی شول چی د ارزښت د مفهوم تاریخی خصلت معلوم کړی چی د انسانانو تر منځ هغه مناسبات ښیی چی د مالونو د تولید په اساس باندی منځ ته راځی.

په دی ترتیب د مالونو د تولید د قوانینو درک کول په مشخصو تاریخی شرطونو کی یعنی یوازی هغه وخت ممکن شول چی کله د مالونو شکل د کار د محصول عمومی شکل ته واوښت.

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۴۶ ټوک، لومړۍ برخه، ۴۱ مخ.

د ټولنې د پرمختګ په تاریخي مرحله پورې د ټولنیزو پدیدو پیوستون د طبقاتو د تیورۍ د طرح کیدو د مثال له مخې هم لیدل کیدلی شي. لا تر ک. مارکس ډېره موده پخوا خلکو ته د ټولنې طبقاتي ویش معلوم وو مګر لا د هغه ماهیت ورته نه وو څرګند شوی. د پانګوالۍ څخه په مخکې فرماسیونونو کې دا ویش په ممتازو ډلو، کاستونو او طبقاتي قشرونو باندې په ویش او په مذهبي پرده سره پټیده چې طبعاً یې د هغه درک کول سختول. یوازې د ټولنې د نور پرمختګ په جریان کې طبقاتي مناسبات رابرسېره شول او ساده شکل یې بیا موند. پانګوالۍ ته د انتقال سره سم په اقتصادي مناسباتو پورې د ټولنې د طبقاتي جوړښت پیوستون نور هم په څرګندتیا سره رابرسېره شو. لکه څنګه چې ف. انګلس ویلي وو «یوازې په همدې وخت کې بالاخره د کیسې حل کول ممکن شول. د لوی صنعت د ترویج له زماني یعنې اقلاً د ۱۸۱۵ کال د اروپایي سولې له زماني څخه په انګلستان کې له هیچا څخه دا خبره پټه نه وه چې په دې هیواد کې د ټولې سیاسي مبارزې اصل د دوو طبقو یعنې له یوې خوا د ځمکې د خاوندو اشرافیانو او له بله پلوه د بورژوازۍ د باداریې خوا ته هلې ځلې وې. په فرانسه کې د بوربون د شاهي سلالې د بېرته راتګ سره یوځای خلک په همدې حقیقت باندې پوه شول. د شاهي رژیم د تجدید د دورې مورخین له تئیري څخه نیولې تر ګیزو، مینیې او تئیر پورې دایماً دې حقیقت ته له منځنیو پیړیو څخه نیولې په فرانسوي تاریخ باندې د پوهیدلو د اصلي وسیلې په حیث اشاره کوي. مګر د ۱۸۳۰ کال څخه را په دې خوا په دواړو دغو هیوادونو کې کارګري طبقه، پرولتاریا د باداریې د لارې د دریمې مبارزې په حیث وپیژندل شوه. مناسبات دومره ساده شول چې یوازې هغو خلکو چې قصداً یې خپلې سترګې پټولې کولی شول چې ونه ګوري چې د دغو دریو سترو طبقو په مبارزه او د هغوی د ګټو په ټکیدو کې د ټول نوي تاریخ خوځوونکې قوه پرته ده» *.

د طبقاتي مبارزې مفکوره د شاهي رژیم د تجدید د دورې د فرانسوي مورخینو د پاره د تاریخي پېښو د پلټنو د کلي حیثیت درلود. هغوی دا

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۲۱ ټوک، ۳۰۸ مخ.

مفکوره څرګنده کړه چې د طبقاتو موجودیت د مدنی ټولنی د ژوند په شرطونو کی ریښه لری. مګر دغو مورخینو نه شول کولی چې د طبقاتو د پیدایښت علت په علمی طرز سره توضیح کړی او د هغو سرچینه یی اکثراً د یوی ډلی ولسونو له خوا د بلی ډلی په لاندی کولو کی لټوله.
د طبقاتی مبارزی په پوهیدلو کی هم بورژوایی محدودیت د هغوی خاصه شمیرل کیده. هغوی د انګلستان او فرانسی د بورژوایی انقلابونو په تحلیلولو کی په حقه ثابته کړی ده چې د دغو حوادثو په اساس کی د «دریم قشر» او په تیره بیا د بورژوازۍ هغه مبارزه پرته ده چې د فیودالو زمیندارانو پر ضد ده. مګر وروسته چې کله پرولتاریا د یوی خپلواکی قوی په حیث تاریخی صحنی ته راووته نو هغوی د طبقاتی مبارزی له نظریی څخه منکر شول. هماغه ګیزو چې په بورژوایی انقلابونو کی یی د طبقاتو مبارزه ستایلی ده دا مبارزه د بدبختۍ او د ټولنی موجودیت ته د خطر په حیث وګڼله.
د پرولتاریا په دریځ کی دریدل په کار وو تر څو چې د طبقاتو له موجودیت څخه ټولی نتیجی واخستل شی او د طبقاتی مبارزی قانون کشف کړی شی.
لنډه یی دا چې د ټولنیز پرمختګ په قوانینو باندی پوهیدل دا خصوصیت لری چې هغه پخپله د ټولنیزو او اقتصادی مناسباتو د پرمختګ په درجه پوری تعلق لری او ځکه خو نو یوازی په مشخصو تاریخی شرطونو کی د هغو کشفول امکان لری. دا شرطونه په قبل کاپیتالستی فرماسیونونو کی نه وو موجود او په پوره توګه یوازی د پانګوالۍ په دوره کی منځ ته راغلل.
د ټولنیز علم د قوانینو د ادراک خصوصیت په طبقاتی ګټو پوری د هغه ټینګ پیوستون هم دی.
لکه څنګه چې سوړ مخکی وویل د ټولنیز پرمختګ قوانین عینی قوانین دی. مګر څنګه چې هغه د طبقاتو په ګټو پوری تعلق نیسی نو طبقات په مختلفو طرزونو د دغو قوانینو له نفوذ او په دی بنیاد د هغو له پوهیدلو سره برخورد کوی.
البته د دی خبری معنی دا نه ده چې په سیاسی اقتصاد کی قوانین پخپله طبقاتی دی. دا قوانین٭ چې د پدیدو عینی ارتباط څرګندوی نه شی کیدلی چې بورژوایی یا پرولتاری وی. په دی اساس د ټولنیزو

علومو پخپله قوانین نه بلکه د هغو ادراک او په‌کارول طبقاتی خصلت پیدا کوی.

د قاعدی سره سم طبیعی علوم په مستقیمه توگه له طبقاتی گټو سره ارتباط نه لری. البته په طبیعی پوهنه کی هم داسی عمومی تیوری شته چی د طبقاتو گټی ورباندی اغیزه کوی (یا یی اغیزه کوله). له هغه جملی څخه مثلاً د کایناتو د لایتناهی‌توب په باره کی د گالیلی او جوردانو برونو تیوری دی چی د مذهب تسلط ته یی گوزار ورکړ، د انسان د پیدایښت په باره کی د داروین تیوری او داسی نوری تیوری یادیدلی شی. په استثماری ټولنو کی د دغو تعلیماتو په شاوخوا کی سخته ایدیولوژیکی مبارزه روانه وه (او اکثراً اوس هم دا مبارزه روانه ده). مگر که چیری د طبیعی علومو څخه د نړی‌لید د نتیجو سره تماس ونه‌نیسو نو ویلی شو چی د هغو مضمون د طبقاتو په گټو پوری مستقیم تاثیر نه کوی.

خو په ټولنیزو علومو کی پخپله د مطالعی مضمون که اقتصادی که دولتی او یا حقوقی مناسبات وی د طبقاتی گټو سره کلک پیوند لری. په دی علت و. ای. لینین د «دولت په باره کی» پخپل لکچر کی ویلی وو چی مشکله ده چی داسی مسئله پیدا شی چی مثلاً لکه د دولت د ماهیت په باره کی د مسئلی په شان د بورژوایی مفکوره جوړوونکو له خوا گډوډه شوی وی. د ټولنیزو علومو پرمختگ او د ټولنیز ژوند د قوانینو د کشفولو پخپله امکان تر ډیری اندازی پوری د ټاکلو طبقو په گټو پوری تعلق لری.

د ارزښت د قانون د کشفولو تاریخ چی مخکی مو د هغه یادونه وکړه هم ددی خبری موید شمېرل کېږی. د کار د ارزښت د تیوری جوړولو پخپل وخت کی د هغی زمانی د مترقی بورژوازی له گټو سره کلک پیوند درلود. له دی تیوری څخه د پانگوالانو د طبقی مفکوره جوړوونکو چی ځانونه یی د تولید کارکوونکی شمېرل د فیوډالانو او د هغوی د مفت خورو نوکرانو د رسوا کولو دپاره استفاده کوله. ا. سمیت د تولیدی کار په باره کی د علم په پرمخ بیولو کی لیکلی وو چی «د ټولنی د ځینو تر ټولو محترمو قشرونو کار د کور د مزدورانو په شان هیڅ ډول ارزښت نه تولیدوی. مثلاً پادشاه د خپلو عدلی مامورینو او نظامی منصبدارانو سره، ټول اردو او بحریه غیرتولید کارکوونکی شمېرل کېږی. هم ځینی تر ټولو جدی او مهم او هم ځینی ساده

مسلکونه یعنی کشیشان، حقوق پوهان، د طب ډاکتران، هر ډول لیکوال، هنرمندان، مداریان، موسیقي غږوونکي، د اوپرا سندرغاړي، نڅاکوونکي او نور باید په یوه طبقه پوري ارتباط ولري» *. لکه څنګه چې ګورو ا. سمیت پادشاه او د هغه مامورین د مداریانو او نڅاکوونکو سره په یوه درجه کې شماري او هغوی ټول غیرتولیدي کارکوونکي بولي.

په هغه زمانه کې د پورته کېدونکي بورژوازۍ مفکوره جوړوونکو د ارزښت د قانون د کشفولو او اثبات سره علاقه درلوده چې البته ددې قانون د جوړولو له کار سره یې مرسته وکړه.

د اضافي ارزښت د قانون چې ډېره موده وروسته کشف شو خبره بیخي بل ډول وه.

د دې ارزښت د کشفولو ویاړ کاملاً په ک. مارکس پوري تعلق لري. د اضافي ارزښت قانون د پانګوالۍ د استثمار اسرار فاشوي. او د بورژوازۍ مفکوره جوړوونکي حتی په هغه دوران کې چې ویاړلې طبقه وه د دې شي سره علاقه نه درلوده. بر عکس هغوی تلوسه درلوده چې د استثمار سرچیني پټې کړي. ځکه نو د اضافي ارزښت قانون یوازې هغو مفکورینو کشفولی شو چې د انقلابي پرولتاریا په دریځ کې ولاړ و.

د دې مثال څخه معلومیږي چې د ټولنیزو پدیدو د ادراک داسي ټاکلي مشروط تاریخي حدود شته چې د طبقاتي مناسباتو په پرمختګ او د هر دوران د مفکورینو په طبقاتي موقفونو پوري تعلق لري. د دې خبرې چې د ټولنیز پرمختګ قوانین د طبیعت د قوانینو په نسبت ډېره موده وروسته کشف شول یو علت په دې کې پروت دی. حاکمو طبقو چې د دماغي فعالیت ټول وسایل یې پخپل لاس کې اخیستي و په ځینو مواردو کې د طبیعي علومو د پرمختګ سره علاقه درلوده چې مستقیماً یې مادي تولیداتو ته خدمت کاوه. او برعکس هغوی د ټولنیز ژوند په ماهیت باندې له پوهیدلو سره علاقه نه درلوده ځکه چې په ټولو قواو سره یې هلې ځلې کولې څو چې د خپلې باداري اساس له زیاراېستونکو څخه پټ وساتي. په عین وخت کې ستمګالونکي طبقې ډېرې بیرته پاته وې او اوهامو لاره ځني ورکه کړې وه چې د خپلې آزادۍ

---

* ا. سمیت. د طبیعت او د ولسونو د شتمن کیدو د علتونو په باره کې پلټنې. ۱ ټوک، مسکو — لېنینګراد. ۱۹۳۵ کال، ۲۷۹ مخ.

په شرطونو باندې پوه شي. یوازې د پرولتاریا په څېره کې هغه طبقه تاریخي میدان ته راووته چې د دې توان یې درلود چې هر ډول طبقاتي ستم له منځه یوسي او په دې ترتیب د ټولنیز پرمختګ په تمایلاتو باندې له زیاتو دقیقو او پوره عیني پوهیدلو سره علاقمنده وه. د پرولتاریا د پاره د ټولنې د پرمختګ د قوانینو زده کول عیني ضرورت دی ځکه چې پرته له دې سوسیالستي ټولنې ته د پانګوالۍ د ټولنې انقلابي بدلون ناشونی کار او په منظم ډول د کمونستي ټولنې جوړول ناممکن دی. سوسیالیزم خو د پخوانیو فرماسیونونو پر خلاف د اقتصاد د یوه خاص نظم په حیث د پخوانۍ ټولنې په ژورو کې په طبیعي توګه نه زیږیږي. سوسیالستي ټولنه د زیارایستونکو د پرګنو له خوا چې کارګري طبقه یې په سر کې وي د پانګوالۍ د رانسکورولو څخه وروسته په آګاهانه طرز جوړیږي. د هغې مفکوره‌جوړوونکو ک. مارکس او ف. انګلس د ټولنې د پرمختګ تر ټولو مهم قوانین کشف کړل او د دغو قوانینو په پوهنه سره یې پرولتاري ګوند چې هغوی جوړ کړې و سنبال کړ.

د ټولنیز پرمختګ د قوانینو د کشفولو د پاره نه یوازې تاریخي بلکه نظري شرطونه هم په کار و. دا شرطونه معقول نړۍ ته او د ټولنیز ژوند د پدیدو له تحلیل سره معقول برخورد دی.

د ټولنې د پرمختګ په قوانینو باندې د پوهیدلو خوا ته د لارې د پرانیستلو په منظور د ټولنیزو پدیدو په ساحه کې د ماتریالیزم تطبیقول په کار و. او دا د هغه نوي نړۍ‌لید له فیضه ممکن شول چې ک. مارکس او ف. انګلس جوړ کړ. همدغه نړۍ‌لید مارکس ته امکان ورکړ چې د مالونو د فیتیشیزم (تعبید کولو) پرده ایسته کړي او د پانګوالۍ د تولید د طرز قوانین راوسپړي. په پرمختللې مالي تولید کې د خلکو تر منځ مناسبات مادي شکل غوره کوي. د دې د پاره چې د اشیاو د مناسباتو تر شا د انسانانو مناسبات راوسپړل شي دیالکتیکي، ماتریالستي برخورد په کار و. مارکس دا وظیفه په کامیابۍ سره ځکه حل کړې شوه چې د پانګوالۍ اقتصادي مفاهیم یې د دیالکتیک او تاریخي ماتریالیزم له موقف څخه تحلیل کړل.

په همدې ترتیب په عملي طرز په طبقاتو باندې د پوهیدلو د پاره تیا کلې نظري زمینې په کار وې. که څه هم د «طبقاتو» مفهوم په تاریخي علم کې تر ک. مارکس او ف. انګلس پخوا پیدا شوی و ولې د هغه

علمي تعریف یوازې هغه وخت ممکن شو چې کله دې مفهوم «د تولید د طرز»، «تولیدي مناسباتو» د مفاهیمو سره چې د لوړې ځل له پاره د مارکس او انګلس له خوا ترویج شوې ارتباط پیدا کړ.

مفاهیم د نوي تاریخي تجربې د راټولیدو مطابق او د تیوریتیکي تفکر د ودې سره سم بدلون مومي او پرمختګ کوي. مثلاً د «طبقې» مفهوم په هغه وخت کې چې کله کارګرې طبقې په شوروي هیواد کې سیاسي واک ترلاسه کړ او د سوسیالستي ټولنې په جوړولو یې پیل وکړ د و. ای. لېنین له خوا د هغه په «ستر ابتکار» نومي اثر کې په معروف تشخیص سره په ډېره بشپړه او هراړخیزه توګه تعریف شویدی. دا خبره ښیي چې د مترقي طبقې د انقلابي مبارزې پراکتیک د ټولنیز علم د مفاهیمو د پرمختګ د پاره څومره ستر اهمیت لري.

## ۳. د ټولنیزو قوانینو د ادراك او منلو د مسئلو په باره کې په بورژوایي مفکوره جوړوونکو باندې انتقاد

د ټولنیزې قانونمندۍ مسئله د معاصرې بورژوایي سوسیولوژۍ سره د مارکسیزم او لېنینیزم د مبارزې میدان ته اوښتې ده.

هغه زمانه ډېره موده پخوا تیره شویده چې کله بورژوازي په اروپا او امریکا کې انقلابي طبقه وه او د هغې مفکوره جوړوونکو کوشش کاوه چې په ټولنیز ژوند کې د «طبیعي قانون» مفکوره تطبیق کړي. ګڼ شمېر معاصرې بورژوایي تیورۍ د ټولنې د پرمختګ عیني قوانین ردوي. ځیني وایي چې دا قوانین نه شي درک کیدلی، نور اصلاً د هغو موجودیت نه مني.

ولې د بورژوازۍ د مفکوره جوړوونکو موقف بدل شو؟ تر ټولو دمخه ځکه چې د طبقې په حیث د بورژوازۍ وضعیت تغییر وموند. تر هغه وخته پورې چې بورژوازۍ انقلابي جنبه درلوده بورژوایي مفکرینو هلې ځلې کولې چې د تاریخ قوانین کشف کړي. په هغه زمانه کې د بورژوازۍ ګټې تر ټاکلې اندازې پورې د ټولنیز پرمختګ د ګټو سره مطابقت درلود. کله چې بورژوازي ارتجاعي طبقې ته واوښته نو د

همی گټی د ټولنیز پرمختګ د غوښتنو سره په نه پخلا کیدونکی نقاضت کی کښیوتی. بورژوازی زړی طبقی ته واوښتله چی غواړی تاریخ ودروی، هغه په شا وګرزوی او کوشش کوی چی د تاریخ د قوانینو پر خلاف عمل وکړی. دغسی موقف طبعاً چی د ټولنیز پرمختګ د عینی قوانینو ردولو ته راولی. دا خبره و. ای. لېنین پخپله مقاله کی چی «د سوسیالیزم یوه بله نابودی»[1] نومیږی او د «اقتصاد او نرخ» په نامه د پ. ستروو ی د کتاب پر ضد لیکل شوی ده په ټینګار څرګنده کړیده. ستروو ی عقیده درلوده چی په سیاسی اقتصاد کی د «طبیعی قانون» مفکوره له ماتی سره مخامخ شویده او دا چی د ارزښت قانون تر «خپسی» بل زیات شی نه دی. د علمی سوسیالیزم د له منځه وړلو د پاره نوموړی اصلاً د ټولنیز علم د ردولو لاره غوره کړه. د هغه په بادارانه شکاکیت کی، د لېنین په اصطلاح لکه د ټولو زړو طبقو په شان «له علم څخه ډار» اغیزه وکړه چی د بورژوازی خاصه شمیرل کیږی *.

دغسی شکاکی په ګڼ شمیر شکلونو سره په معاصره بورژوایی سوسیولوژۍ کی صورت موسی. د بورژوایی ټولنه پیژندونکو تیورتیکی موقفونه مختلف دی مګر په دی باره کی چی تاریخ د ټاکلو قوانینو تابع دی کوم چی د پوهیدلو وړ دی او د بشر په خیر ځنی استفاده کیدلی شی د زیاراېستونکو د ایمان د تخریبولو په هکله د هغوی د اکثریت تلاش ورته دی.

اوس به د ځینو ټولنه پیژندونکو چی د ټولنیز پرمختګ قانونی خصلت ردوی استنتاجونه وڅیړو.

څرګنده ده چی یوه تر ټولو مهمه مسئله چی د ټولنیز ژوند د قوانینو سنل ورپوری تړلی دی په تاریخ کی د تکراریدو مسئله ده. ډیر بورژوازی ټولنه پیژندونکی عقیده لری چی ټولنیز علوم په اساسی توګه د طبیعی علومو څخه توپیر لری ځکه چی د هغو نه تکراریدونکو ځانګړو حوادثو سره سروکار لری چی د یوه عمومی قانون لاندی راتللی شی.

مثلاً د نولسمی پیړۍ په پای او د شلمی پیړۍ په سر کی د کانت د نوو پیروانو د فریبورګ د ښوونځی نمایندګانو (و. ویندیلباند، ګ. ریکرت او نورو) دغسی نظریه وړاندی کړیده. د هغوی د اصلی مفکوری

---

* و. ای. لېنین. کلیات. ۲۵ ټوک، ۴۲ مخ ته رجوع وکړی.

5*

مطلب په دې کې و چې طبیعي پوهنه او تاریخ سخت مناقضت سره لري. د طبیعي پوهنې مقصد د تکراریدونکو پدیدو مطالعه کول او د نتیجې اخیستل دي. په دې بنیاد هغه انفرادي خصوصیات چې په مطالعه کیدونکو موضوعګانو کې وي له نظره غورځوي او عمومي قوانین رابرسیره کوي. د تاریخ وظیفه برعکس د خپلو ټولو خصوصیاتو سره د انفرادي پیښو مطالعه کول دي او په همدې اساس ګني تاریخي قوانین وجود نه شي درلودلی.

ځینو مورخینو مثلاً مشهور آلماني پوهاند ای. میېر په تاریخ کې د تکراریدو ردول د شخصیت له رول څخه د ایدیالیستیک برداشت سره پیوندول. د هغوی په عقیده په تاریخ کې د وتلي انسان آزاده اراده حکومت چلوي چې تاریخي پیښو ته ځانګړې خصوصیت وربخښي.

دلته دې ته ضرورت نشته چې په تفصیل سره د ویندیلباند او ریکرت د تاریخ په نظریه باندې بحث وکړو. یوازې د دې نظریې اساسي خصوصیت به څرګند کړو چې هغه د ټولنې په باره کې علومو ته د طبیعت په باره کې د علم بمقابله کول او د ټولنې او طبیعت تر منځ د کندې کیندل دي. دغسې نظر په حقیقت کې د تاریخي قانونمندۍ ردول دي. ځکه خو نو هغه د تاریخي پرمختګ علمي پیشګویي هم ناممکنه کوي. که چیرې په بشري تاریخ کې د حوادثو هیڅ ډول تکرار او هیڅ ډول قانونمندي وجود ونه لري نو د آینده خوا ته د نظر اچولو هر ډول کوششونه بې‌ثمره او بې ګټې دي. د حیرانتیا خبره نه ده چې د ریکرت د پیروانو طریقه د ارتجاعي بورژوازۍ په لاسونو کې د علمي سوسیالیزم د مفکورو سره د مبارزې د پاره ښه وسله شوه.

که څه هم په معاصره بورژوایي فلسفه او ټولنه‌پیژندنه کې د کانت د نوو پیروانو طریقه دومره زیات نفوذ نه لري لکه چې پخوا یې درلود مګر بیا هم د تاریخي پدیدو د نه‌تکراریدو او د طبیعي پوهنې او تاریخ تر منځ مناقضت په باره کې د هغه مفکورې تر اوسه پورې پراخ ترویج لري او په مختلفو طرزونو ښودل کیږي. مثلاً امریکایي تاریخ پوهاند ک. ریځلر وایي چې «تاریخ علم دی. دا علم «حقیقت» لټوي. مګر علم د قوانینو په لټون کې وي. تاریخ د خاصې حادثې په ترسیمولو

سره بسیا کیږی». نوموړی وایی چې د مورخ د پاره یوازی خاص شی واقعاً رښتیا دی *.

بورژوازی ټولنه‌پیژندنه په میتافزیکی طریقه سره عمومی د ځانګړی او خاص په مقابل کی دروی. د دی پر خلاف تاریخی ماتریالیزم هغه دواړه په دیالکتیک وحدت کی څیړی. په دی باره کی عقیده چې تاریخ د ځانګړو، اصلاً نه تکراریدونکو او قطعاً انفرادی پیښو څخه جوړ شویدی هماغومره له درواغو ډکه ده لکه څنګه چې په مخالفه نظریه کی یی ویل کیږی چې په تاریخ کی ټول شیان تکراریږی**. په حقیقت کی هره تاریخی پیښه د تکراریدونکو او نه‌تکراریدونکو ټکو له یووالی او توحید څخه جوړه شویده. که چیری دا پیښه د ټولو ځانګړو او مشخصو خصوصیاتو سره وڅیړل شی نو هغه به ځانته خصلت پیدا کړی او نه‌تکراریدونکی به ښکاره شی.

د تاریخی پرمختګ د قانون د کشفولو د پاره باید په دی پرمختګ کی عمومی جنبه پیدا شی او باید ټولنیزو مناسباتو نه هغه «د تکراریدو عمومی علمی محک ورزیات شی چې په ټولنه‌پیژندنه کی تری استفاده سبجکتویستانو ردوله» ***.

لکه د طبیعی پوهنی په شان په ټولنیزو علومو کی هم پوهاند چې د پدیدو د تکراریدو محک ټاکی نو د عمومی قوانینو لاندی بیشمیره زیات انفرادی حوادث راولی. د دی کار له فیضه دی کولی شی چې په مطالعه کیدونکی پدیدی باندی د تصادفونو د مجموعی په حیث نه بلکه د قانونی پروسی په حیث پوه شی.

البته په دی کی باید دا په نظر کی ونیول شی چې د پدیدو د تکراریدو اندازه د ژوند په مختلفو ساحو کی یوشانته نه شی کیدلی. هر

---

K. Riezler. The Historian and Truth. — «The Journal of Philo -* sophy», 1948, № 14, p. 378, 382.

** داسی نظریه د یو لړ بورژوازی مورخینو او ټولنه‌پیژندونکو له خوا هم څرګندیږی کوم چې تاریخ د دایمی جریان په شان تعریف کوی، موږ به د دی نظریی په باره کی چې د بشر په انکشاف کی د ترقی د ردولو مفهوم لری لاندی (۷ فصل ته رجوع وکړئ) تشریحات درکړو.

*** و. ای. لېنین. کلیات. ۱ ټوک، ۱۳۷ مخ.

څومره چې مطالعه کیدونکې پدیدې ساده وي په هماغومره اندازه د هغو د ممیزاتو او خصوصیتونو تکراریدل زیات ښکاره وي. د کیفي حالتونو په پوړیو کې د پورته کیدو سره، له ښکته څخه پورته ته (مثلاً له فزیک یا کیمیا څخه بیولوژۍ ته یا له بیولوژۍ څخه ټولنیزو پدیدو ته) په انتقال سره موږ وینو چې د مطالعه کیدونکو پدیدو تکراریدونکې خصلت په ډول ډول، ځانګړو او نه‌تکراریدونکو خصوصیتونو سره لا زیات پیچلې کیږي.

په ټولنیز ژوند کې د تکراریدونکې خصلت محک د مارکسیزم په ذریعه تر ټولو دمخه د دې له فیضه پیدا شو چې مارکسیزم د ټولنیز ژوند مادي اساس کشف کړ او د مناسباتو د ټولې پیچلې شبکې څخه یې تولیدي مناسبات چې د ټولنې جوړښت ټاکي بیل کړل.

د مارکسیزم له خوا د ټولنیز او اقتصادي فرماسیون د مفهوم ایجادولو چې د بیلا بیلو هیوادونو په ټولنیزو نظمونو کې یې د تکراریدونکې خصلت د لیدلو امکان برابر کړ لوی اهمیت درلود. او د و . ای. لېنین په اصطلاح ددې شي له فیضه ممکنه شوه چې د ټولنیزو پدیدو له ترسیم څخه د هغو اساسي علمي تحلیل ته انتقال تر سره شي، هغه تحلیل ته چې هغه څه پلټي کوم چې مثلاً د ټولو کاپټالستي هیوادونو خاصه شمیرل کیږي، هغه تحلیل ته چې هغه څه سره بیلوي کوم چې یو کاپټالستي هیواد له بل کاپټالستي هیواد څخه تفریق کوي.

بالاخره د ټولنیز ژوند د قانون د کشفولو تر ټولو مهم شرط د طبقاتو او طبقاتي مبارزې په هکله د مارکسیستي تیورۍ منځ ته راوړل و. د دې تیورۍ له فیضه هغه لارښوونکې مزې تر لاسه شو چې امکان برابروي چې د ځانګړو کسانو ظاهراً د بې نهایته ګڼ شمیر اعمالو څخه نتیجه واخیستل شي. د دې مقصد د پاره په کار و چې نه یوازې هغه اعمال د خلکو د سترو ډلو له اعمالو سره انډول شي بلکه په ماتریالیستیک لحاظ سره د ټولنیزې ډلې مفهوم وټاکل شي. و . ای. لېنین لیکلي و چې «پخپله دا مفهوم لا ټاکل شوی نه دی او آزاد حیثیت لري. د «ډلو» د توپیر محک هم په مذهبي، هم په اتنوګرافۍ (قوم‌پیژندنه)، هم په سیاسي او هم په حقوقي او نورو پدیدو کې لیدل کیدلی

شي»*. د طبقاتو او طبقاتي مبارزې تيورۍ د ټولنيزو ډلو د سره يېلولو د پاره عيني محک جوړ کړ او له «ځانګړو پديدو څخه يې د ټولنيزو پديدو خوا ته د انتقال»** طرزونه په بشپړ علمي دقت سره وټاکل. دې تيورۍ وښودله چې د خلکو د سترو پرګنو چې په تاريخ کې فعاليت کوي د ضد او نقيضو تمايلاتو سرچينه د هغو طبقاتو چې مربوطه ټولنه ورباندې ويشل کيږي د وضعيت په توپير کې پرته ده او په طبقاتو باندې د ټولنې ويش د ټولنيز توليد په مشخص او په تاريخي لحاظ په جوړ شوي سيستم کې د هغوی د توپير مولود شميرل کيږي.

مارکسيزم د طبقاتو د فعاليت او مبارزې د نتيجې په حيث د طبقاتي ټولنې د تاريخ په څېړلو کې د ايدياليستيکي تيوريو بې‌اساسي ثابته کړه. نوموړې تيورۍ د طبقاتي ټولنې تاريخ د وتلو شخصيتونو چې ګنې په بشپړه توګه د تاريخي حوادثو جريان ټاکي او هغه بې‌نظيره کوي د اعمالو په څير څرګندوي. په عين زمان کې مارکسيزم اصلاً په تاريخ کې د وتلو شخصيتونو رول او د هغوی نفوذ چې تر ډيرې اندازې پورې د تاريخي پيښو په ځانګړې څيره او په ځانته خصوصيت کې ښکاره کيږي نه ردوي. په دې رول باندې سترګې پټول او په يوازې عمومي علتونو سره د ټولنيز پرمختګ توضيح کول بې‌ژونده «سوسيولوژيکې» نقشې ته د مشخصې او ژوندۍ تاريخي پروسې د اړولو په معنی دی.

په دې ترتيب تاريخي پروسه بايد د عمومي، خصوصي او انفرادي د وحدت په حيث وڅيړل شي. د تاريخ په هره پيښه کې دا اړخونه سره مدغم کيږي. مګر دا د دې معنی نه لري چې هغه يورنګه دي. د تاريخي پروسې اساسي لورې د عمومي علتونو په تاثير سره ټاکل کيږي چې هغه د مولده قواو او توليدي مناسباتو انکشاف دی او په دې انکشاف پورې د ټولنيزو او اقتصادي فرماسيونونو د بدلون تسلسل تړلی دی.

د هغو عمومي علتونو سره چې د تاريخ لورې ټاکي نور علتونه هم چې د ځانګړو هيوادونو او ولسونو د پرمختګ خصوصيت پيدا کوي يوځای کيږي. په تاريخي پروسه کې په خاصو پديدو پورې د هر

---

* و. ای. لېنين. کليات، ۱ ټوک، ۴۲۸ مخ.

** و. ای. لېنين. کليات، ۱ ټوک، ۴۲۸ مخ.

هیواد د پرمختګ ځانته شرطونه تعلق لري چې د نوموړي هیواد په تیره زمانه، د اقتصادي پرمختګ په سطح، په ټولنیز او ملي ترکیب، جغرافیوي موقعیت، بین‌المللي اوضاعو او نورو عواملو پورې ارتباط پیدا کوي.

د هر ولس تاریخ د ځانګړو تاریخي حوادثو څخه جوړ شویدی په کومو کې چې ځانګړي حادثې په صراحت سره ښکاریږي. ځانګړي علتونه او په هغه جمله کې د وتلو شخصیتونو چې د دغو یا هغو ټولنیزو نهضتونو په سر کې ولاړ وي انفرادي خصلتونه هم د تاریخي پیښو په جریان باندې خپله اغیزه کوي.

ټول دغه علتونه یو له بله څخه نه‌بیلیدونکي دي مګر یورنګه نه دي. تاریخي ضرورت تر ټولو دمخه په عمومي او خاص اړخ کې ځرګندیږي، په داسې حال کې چې په ځانګړي اړخ کې تل د تصادف اړخ ځرګندیږي. ځانګړي اړخ عمومي او خاص اړخ نه تعویضوي. لکه څنګه چې ګ. و. پلیخانوف* په معقوله توګه ویلي و ځانګړي علتونه نه شي کولی چې د عمومي او خاصو علتونو په عمل کې چې د ځانګړو علتونو د نفوذ لوري او حدود په هغو پورې مشروط دي بدلون پیښ کړي**. پر عمومي اړخ باندې سترګې پټول او لوړي ځای ته د انفرادي او نه تکراریدونکي اړخ ټیل وهل په تاریخ کې د قانون‌مندۍ د ردولو، د تاریخي ضرورت د ردولو او په تصادف باندې د دې ضرورت د بدلولو چارې ته منتج کیږي. د دې تصور هم چې ګڼي په تاریخ کې ټول شیان ضروري دي او اصلاً تاریخي تصادف وجود نه لري بې اساسه دي. په حقیقت کې تاریخ د عمومي او انفرادي، ضروري او تصادفي پیښو د پیچلي ادغام څخه جوړ شویدی خو په دې کې تاریخي ضرورت فیصله کوونکي رول لوبوي.

---

* پلیخانوف ګیورګي والنتینویچ (۱۸۵۶ — ۱۹۱۸) د روسي او بین‌المللي سوسیالستي او کارګري نهضت شخصیت، فیلسوف، مارکسیست او په روسیه کې د علمي سوسیالیزم یو تن مخکښ او د روسیې د سوسیال‌ـدموکراسۍ یو تن بنسټ ایښودونکي و.

** ګ. و پلیخانوف. ه ټوکیز منتخب فلسفي آثار. مسکو، ۱۹۵۶ کال، دوهم ټوک، ۳۳۲ مخ.

دلته سړی دوهمی مسئلې ته نژدې شوو چې د هغې په حل کولو پورې د ټولنې د پرمختګ د قانون‌مندۍ مثل یا ردول مربوط دی. دا د تاریخي ضرورت مسئله ده. زیاتره بورژوایي فیلسوفان، ټولنه پیژندونکي او اقتصادي پوهان عقیده لري چې په تاریخي پرمختګ کې ضرورت نشته او بوازې تصادف وجود لري او دا چې په تاریخ کې هیڅ یوه پیښه ضروري نه شي بلل کیدلی. له هغوی څخه ځینې کسان په ټولنیز ژوند کې د دیترمنیزم د مفکورې په ردولو کې په دې باندې اتکاء کوي چې ګنې د دیترمنیزم مفکوري په طبیعي پوهنه کې هم ماتې خوړلې ده. مثلاً فرانسوی اقتصادي پوهاند ا. مارشال لیکي چې «که چیرې په تش په نامه دقیقو علومو کې د دیترمنیزم جدیت له منځه ځي نو په کوم ترتیب سره کیدلی شي چې هغه په داسې علومو کې چې هیڅکله یې د دقیق‌والي ادعا نه ده کړې وساتل شي؟» . او نوموړی پیشنهاد کوي چې دیترمنیزم په «پوسیبلیزم» (امکانیت) باندې تعویض شي چې له هغه څخه مطلب د اقتصادي شکلونو او د اقتصادي پرمختګ د لورې په ټاکلو کې د ټولنې آزادي ده.

البته په طبیعي پوهنه کې د دیترمنیزم د زوال په مسئله باندې اتکاء کول بیخي بې اساسه دي ځکه د کوانت د میخانیک پرمختګ د علت‌والي اصل نه بلکه په میتافزیک طرز د هغه پوهیدل رد کړیدی. مګر د دغو دلایلو په مرسته د دې اصل او په ټولنیز ژوند کې د قانون‌مندۍ د پخپله مفکورې ردولو ته ظاهري علمي رنګ ورکول کیږي.

ښرګنده خبره ده چې په ټولنیز پرمختګ کې تاریخي پیښې مخکې له مخکې نه شي ټاکل کیدلی. معمولاً په تاریخ کې ډول ډول امکانات شته او له هغو څخه د هر یوه امکان تحقق تر ټولو لومړۍ د بیلا بیلو طبقو د مبارزې په ټول جریان پورې تعلق لري. مګر د دې خبرې معنی اصلاً دا نه ده چې د تاریخي پیښې هر ډول تحقق موندلی شي او دا چې دلته د امکاناتو بې نهایته زیات مقدار وجود لري او تصادف برقرار دی. که چیرې د سیاسي شخصیتونو د شخصي نقشو او فرضیتونو په باره کې نه بلکه د ریښتونو امکاناتو په باره کې خبرې وکړو نو هغه کاملاً ټاکل شویدي او اصلاً د هغه یا دغه شخصیت په اراده سره نه جوړیږي. دا امکانات د ټولنې د پرمختګ د عیني شرطونو د بدلیدو سره سم پیدا کیږي یا له منځه ځي.

باید زیاته کړی شی نه ښایی چې امکان د یوه داسی شی په حیث وځیږل شی چې ضرورت باطلوی او قطعاً له هغه مخالف وی. تاریخی ضرورت د بیلا بیلو امکاناتو له لاری تحقق پیدا کولی شی خو دا هغه له منځه نه وړی. مثلاً سوسیالستی انقلاب په دغه یا هغه هیواد کی هغه وخت بریالی کیدلی شی چې د دی د پاره عینی او ذاتی شرطونه موجود وی. دا انقلاب په هغه صورت کی چې اوضاع نامساعد وی ماتی هم خوړلی شی. ولی د دی سره سره د سوسیالیزم د بری تاریخی ضرورت په دی باندی له منځه نه ځی. په تاریخ کی ځانګړی پیښی په ډول ډول صورتونو منځ ته راځی مګر عمومی تاریخی تمایل بالاخره د ځان د پاره لاره اواروی.

هغه دریمه مسئله چې د ټولنیز پرمختګ د قوانینو د موجودیت او د هغو د ادراک د امکان د منلو یا ردولو په برخه کی پری مبارزه روانه ده هغه په ټولنیز علم کی د عینی حقیقت مسئله ده.

زیاتره بورژوایی مورخین او فیلسوفان نه یوازی د ټولنیز پرمختګ د عینی قوانینو بلکه د عینی تاریخی حقایقو موجودیت هم ردوی. د امریکا د تاریخی ټولنی رئیس ک. بیکیر پوښتنه کوله چې «تاریخی حقایق څه شی دی؟» او پخپله یی ځواب ورکاوه چې زما په عقیده تاریخی حقیقت په ژوند کی وجود نه لری بلکه د کوم چا په شعور کی یوازی سمبول دی او هغه علامه ده چې هغه حقیقت یا درواغ شمیرل خطرناک کار دی. د همدی ټولنی بل رئیس چ. بیرد د «تاریخ د عقیدی د سند په حیث» تر عنوان لاندی وینا وکړه او په هغی کی یی دا ثابتوله چې تاریخ د انسان د شعور څخه بهر عیناً وجود نه لری او پیشنهاد یی کاوه چې د علت‌والی مفهوم د تاریخی علم څخه وایستل شی.

په دغو خبرو کی نه شی کیدلی چې سړی د بورژوایی فلسفی تاریخی تفکر چې ډیره موده پخوا د انسانی عقل په قوت او د تاریخ د جریان په قوانینو باندی د پوهیدلو د هغه په استعداد باندی له کلک ایمان څخه بیله شویده زوال ونه‌وینی.

په معاصر تاریخی علم کی سبجکتویزم (ذاتیت) اکثراً په اصطلاح د پریزنتیزم (د انګریزی کلمی present یعنی اوسنۍ زمانه، معاصر دوران څخه) په شکل رابرسیره کیږی. د پریزنتیزم اساسی مفکوره په دی کی

پرته ده چې تاریخ د مورخ د شعور محصول دی کوم چې پخپله د معاصر دوران د غوښتنو مطابق تاریخي واقعیت ایجادوي.

د پریزنتیزم پیروان تاریخ د اوسنۍ زماني د مفکورو او کټو تصویر بولي. فرانسوي بورژوايي پوهاند ل. الکین لیکي چې عیني تاریخي واقعیت وجود نه لري او «ځکه د واقعیت مسئله د مورخ په نزد لکه د نقاش په وړاندې پرته وي. لکه څنګه چې یوه منظره نشته همدغسې یو تاریخ هم وجود نه لري» *.

آیا د پخوانۍ زماني په تصویر باندې چې مورخ یې جوړوي د مورخ نقطه نظر په حقیقت کې کومه مشخصه اغیزه کوي؟ آیا پر هغه باندې د ده د پیړۍ غوښتنې او د معاصر دوران غوښتنې کوم تاثیر لري؟ البته چې تاثیر لري. په دې اساس د مختلفو دورو د مورخینو په ذهن کې پخوانۍ زمانه تر یوې اندازې پورې تغییر مومي. مګر د دې معنی اصلاً دا نه ده چې عیني حقیقت وجود نه لري او د تیرې زمانې تصویر یوازې د مورخ د ذهني تخلیق محصول شمیرل کیږي. که چیرې مورخ د ټولنې په پرمختګ کې پخوانۍ دورانونه داسې ترسیموي څو چې هرومرو د خپلې پیړۍ د زړې طبقې حکومت تبرئه کړي نو د ده ایدیولوژي به د تیرې تاریخي زمانې عیني تصویر تحریف کړي. مګر که چیرې مورخ د ترقي طبقاتو چې ځانونه د خپل ولس د تر ټولو ښو عنعناتو وارثان ګڼي له موقف څخه د تیرې زمانې په نسبت برخورد وکړي نو دی به وکولی شي چې په تاریخي پرمختګ کې د ولسي پرګنو رښتونی رول وښیي او مترقي قواوې په سمه توګه ارزیابي کړي او دغسې موقف به د تاریخ د زیات ژور ادراک سره مرسته وکړي. د پریزنتیزم اساسي عیب په دې کې پروت دی چې هغه هر ډول ایدیولوژي ذاتي بولي.

د پریزنتیزم پیروان د راتلونکو اعصارو (دورانونو) د مورخینو په ذهن کې د تیرې زمانې د تصویر بدلون د ریلتویزم او سبجکتویزم (نسبیت او ذاتیت) په روحیه کې تعبیروي. البته په ځینو مواردو کې

---

* ای. س. کون. د تاریخ د معاصرې بورژوايي فلسفې له کتاب څخه اقتباس. لېنینګراد، ۱۹۵۷ کال، ۲۹ مخ.

معاصر انسان په تیرو تاریخي حوادثو کې هغه څه نه ویني چې د دغو حوادثو شریکانو لیدلي وي، مګر دا اصلاً د دې معنی نه لري چې دلته د انسان موقف بیخي ذاتي دی. معاصر انسان ته د تاریخي پیښو عواقب ښکاره دي چې د هغو د شریکانو له خوا نه وي لیدل شوي او که چیرې مورخ له علمي موقفونو څخه د دغو عواقبو په توضیح کولو پیل کوي نو د دې له برکته هغه کولی شي چې د ټولنیز پرمختګ جریان په لا ژوره توګه راوسپړي. مترقي فرانسوي مورخ م. بلاک پخپل کتاب یعني علمي وصیت کې چې «د تاریخ دفاع» نومیږي د لومړي فصل یو پراګراف «د ماضي په مرسته د حال ادراک» او وروسته پراګراف «د حال په مرسته د ماضي ادراک» بللی دی*. د تیرې زمانې او اوسنۍ زمانې د ادراک تر منځ (په دې باندې د راتلونکې زمانې کلمه هم ورزیاته کړو) دغسې متقابل تاثیر ښتوني علم ته چې د ذاتي نیت څخه آزاد وي لاره پرانیزي.

د ټولنې په باره کې په علومو کې لکه د طبیعي پوهنې په شان ټول هغه شیان چې د پخوانیو خلکو له خوا ایجاد شویدي نه ردیږي. هغه څه چې د تیرې زمانې په تصویر کې چې د پخوانیو دورانونو د مورخینو له خوا ایجاد شویدي په عیني توګه سم وي د راتلونکو زمانو د مترقي پوهانو له خوا ترې کار اخیستل کیږي او د تاریخي پروسې د هغوی په ادراک کې شاملیږي. په دې ډول د بشر په انکشاف کې د تیرو زمانو د عیني پوهیدلو امکان لاس ته راځي. په ماضي او حال باندې پوهیدل د راتلونکي د پیشګویۍ شرط شمیرل کیږي.

د زیاترو بورژوایي فیلسوفانو، مورخینو، ټولنه‌پیژندونکو د مایوسۍ، بدبینۍ او لاادریت پر خلاف مارکسیزم د ټولنیز پرمختګ د قوانینو د پوهیدلو او په عمل کې د هغو څخه د استفادې د امکان دفاع کوي. دا د ټولنې د پرمختګ د جریان په علمي پیشګویۍ کې په ښکاره ثابتیږي.

---

* م. بلاک. د تاریخ دفاع یا د مورخ حرفه. مسکو، ۱۹۷۳ کال، ۲۵ — ۲۹ مخونه.

## ٤. د سوسیالستی ټولنې د پرمختګ د قوانینو ادراک

د سوسیالستي ټولنې د قوانینو ادراک د ټولنیزو پدیدو د ادراک د عمومي قوانینو تابع دی مګر یو لړ خصوصیتونه لري.

د دغو خصوصیتونو څخه لومړی خصوصیت په ژوند کې د نوی ټولنې د استقرار د پروسې او په تیورۍ کې د هغې د ادراک په بل ارتباط کې پروت دی.

که څېرې د پانګوالۍ «اناتومي» د هغې تر پیدایښت ډېره موده وروسته جوړه شوه نو د سوسیالیزم اساسي خصوصیتونه (مطلب یوازې په عمومي خصوصیتونو باندې دی) د مارکسیستي او لېنیني تیورۍ له خوا لا هغه وخت پوهیدل شوي و چې په هیڅ یوه هیواد کې په عملي توګه له پانګوالۍ څخه سوسیالیزم ته انتقال لا نه و ترسره شوی. د دغو قوانینو پوهې د هغه رهنما حیثیت درلود چې د شوروي اتحاد کمونستي ګوند تری د پانګوالۍ د ټولنې په له منځه وړلو او د سوسیالستي ټولنې په جوړولو کې په مبارزه کې استفاده وکړه. مګر د قوانینو د هراړخیزو راسپړلو او د نوی ټولنې د خصوصیتونو د کشفولو د پاره دلته هم عملي تجربه په کار وه. دا تجربه د لومړي ځل له پاره په شوروي اتحاد کې د اکتوبر ستر سوسیالستي انقلاب ورکړه.

د شوروي اتحاد تجربه به چې د سوسیالیزم خوا ته یې لاره اواره کړه او نن د کمونستي ټولنې په جوړولو بوخت دی د ټل د پاره د نورو هیوادونو تر ټولو شتمنه ګنجینه وي. لکه څنګه چې په نولسمه پیړۍ کې د انګلستان چې په هغه زمانه کې د پانګوالۍ نمونوي هیواد شمیرل کیده پرمختګ کارل مارکس ته د پانګوالۍ د عمومي قوانینو د کشفولو د پاره مواد ورکړل همدغسې زموږ په زمانه کې د شوروي اتحاد او د نورو سوسیالستي هیوادونو د تاریخي پرمختګ مثال د کمونستي ټولنې د جوړیدو لاره ښیي.

په سوسیالستي ټولنه کې د ټولنیز پرمختګ د پوهیدلو د پاره زیات مساعد عیني شرطونه برابریږي. دلته د مالونو فیتیشیزم چې د پانګوالۍ خاصه شمیرل کیږي وجود نه لري. د خلکو تر منځ ربښتوني مناسبات تخیلي شکل نه لري. دا مناسبات څرګند او روښان دي. دا شی د پراخو پرګنو له

خوا د ټولنې د پرمختګ د قوانينو چې د انقلابي تيورۍ له خوا کشف شوېدي له درک کولو سره مرسته کوي.

مګر د سوسياليزم په شرطونو کې هم د ټولنيز پرمختګ قوانين د پديدو په مخ باندې نه ښکاري. د هغو درک کول مشکله پروسه ده چې په هغې کې اکثراً بايد جعلي نظريې له منځه يووړل شي.

د دې د پاره چې د ټولنيزو پديدو په پيچلې متقابل تاثير کې د سوسيالستي ټولنې د پرمختګ قوانين کشف کړی شي ژوره تيورتيکه مفکوره او د علمي تجريدي تفکر قوه په کار ده. د ټولنيزو مناسباتو او د ټولنيزو پروسو د علمي تحليل وظيفه هيڅکله له منځه نه ځي ځکه چې د ټولنيز پرمختګ په هيڅ يوه مرحله کې پديدې مستقيماً د ماهيت سره مطابقت نه پيدا کوي. لکه څنګه چې ک. مارکس پيشګويي کړې وه د سوسيالستي ټولنې ټولنيز مناسبات چې د مالونو د فيتيشيزم، له فريب څخه چې د پانګوالۍ د مناسباتو خصلت شميرل کيږي خلاصيږي او «روښان او څرګند» کيږي. مګر دا اصلاً د دې معنی نه لري چې ګنې په سوسياليزم کې د ټولنيزو پروسو قوانين علمي تحليل نه غواړي. د شوروي اتحاد کمونست ګوند مجبور و چې څو ځله د دغسې ساده تصوراتو پر ضد آواز اوچت کړي. دلته به اقلاً د و. ای. لېنين هغه تذکر ياد کړو چې د ن. ای. بوخارين په نامه يې کړی و. ن. ای. بوخارين ويل چې په تنظيم شوې ټولنيز اقتصاد کې د سياسي اقتصاد ټول اساسي پرابلمونه له منځه ځي او دا چې د پانګوالۍ د ټولنې د پای ته رسيدو سره سياسي اقتصاد هم خاتمه مومي. لېنين دغسې قضاوت د انګلس په نزد د سياسي اقتصاد د موضوع د تشخيص څخه يو ګام شاته ايښودل بللی و. د لېنين په عقيده په کمونستي ټولنه کې هم د اقتصادي علم داسې پرابلمونه لکه د مثال په توګه د ټولنيز توليد د لوړې او دوهمې برخې تر منځ، د ذخيرو کولو او استهلاک او نورو عواملو تر منځ د تناسب ټاکل پاته کيږي. د لېنين د قول له مخې حتی په خالصه کمونستي ټولنه کې هم د پديدو دا قانوني رابطه له منځه نه ځي.

لا د روسيې د سوسيال دموکرات کارګري ګوند د پروګرام د هغې مسودې په نسبت چې د پليخانوف له خوا تدوين شوې وه د و. ای. لېنين په تذکراتو کې د سوسيالستي توليد هدف چې د ټولنې د ټولو غړو د پوره سوکالۍ او هراړخيز پرمختګ په تامينولو کې پروت دی په علمي

توګه ټاکل شوی و. ګوند د سوسیالستی ټولنی په جوړولو کی پخپل عملی کار کی د دی هدف څخه پیروی وکړه سره د دی چی د سوسیالستی ټولنی د جوړولو په لومړیو کلونو کی د یو لړ نامساعدو شرطونو په اثر (افلاس چی د جګړی، د خارجی مداخله ګرو او د سپین ګارد د عسکرو د یرغل مولود و، د هیواد د مولده قواو بیرته پاته والی او نور) دا هدف د پوره تر سره کیدو څخه ډیر لری پاته و. طبیعی خبره ده چی د سوسیالیزم د هدف او د دی هدف د تر سره کولو د وسیلو تر منځ د رابطی نظری فورمول بندی د نوی فرمانسیون د اساسی اقتصادی قانون په حیث ډیره موده وروسته، یوازی هغه وخت ټاکل کیدلی شوه چی کله پخپله ټولنه د پخوالی ټاکلی درجی ته ورسیده.

د علمی سوسیالیزم په تیوری کی د ژوند سبقت موندونکی انعکاس د پراکتیک په وسیله د تیوری له شتمن کیدو سره هم‌آهنګ کیږی. د سوسیالیزم زیاتره خصلتونه چی د هغو څخه پرته اوس سړی هغه تصور کولی نه شی د پراکتیکی تجربی د تعمیم په اساس منځ ته راغلل. معلومه ده چی ک. مارکس او ف. انګلس د کمونیزم په لومړی مرحله کی د کار له مخی د نعمتونو د ویش د ضرورت له ټاکلو سره په عین وخت کی د ټولنی د پرمختګ په همدی مرحله کی د مالونو د تدویر او پیسو د ساتلو او په دی بنیاد د ارزښت د قانون د نفوذ ضرورت نه و پیش بینی کړی. یوازی په شوروی اتحاد کی د سوسیالستی ټولنی د جوړولو د لومړیو کلونو د تجربی د تحلیل په اساس و. ای. لینین د سوسیالیزم د پاره د محاسبی، کریدیت، پیسو او داسی نورو شیانو ضرورت وښود. او لا د څو راوروسته کلونو په موده کی ځینو تیوریشنانو او عملی کار کوونکو د ارزښتی مفاهیمو لږه اندازه ولګوله چی د دیرشمو کلونو په پیل کی په تیره بیا په اولسمه ګوندی کنګره کی تر انتقاد لاندی ونیول شول. په سوسیالستی ټولنه کی د ارزښت د قانون د نفوذ د حدودو او ساحو ټاکل او د پلان له مخی د ملی اقتصاد د اداره کولو په شرطونو کی د اقتصاد په تنظیم کی د هغه په رول کی تغییر — دا ټولی او ډیری نوری مسئلی په را وروسته کلونو کی او په تیره بیا د شپږمی لسیزی په کلونو کی په شوروی اتحاد او د سوسیالستی اتحادیی په نورو هیوادونو کی د اقتصادی ریفورمونو او اصلاحاتو د عملی ایجاباتو په مناسبت په تیورتیک لحاظ وڅیړل شولی.

د شوروی اتحاد د کمونست گوند او د وروڼو گوندونو په د ګډو کوششونو سره د کمونستي فرماسیون او په تیره بیا د هغه د لومړۍ مرحلې په جوړولو کې د قانوني پوړۍ په حیث د پرمختللي سوسیالستي ټولنې واحده نظریه ایجاد شوه. په دې کې د شوروی اتحاد کمونست گوند او وروڼه گوندونه په ځانګړو هیوادونو کې د هغو د پرمختګ د سویې او د ملي خصوصیاتو او نورو عواملو مطابق د پرمختللي سوسیالستي ټولنې د جوړولو د عمومي قوانینو د مظاهرو خصوصیات هم په نظر کې نیسي.

د سوسیالستي هیوادونو د تجربې په استفاده امکان برابر شو چې د پرمختللي سوسیالستي ټولنې د جوړولو اساسي قوانین تدوین شي. م. ا. سوسلوف لیکلي دي چې «دا قوانین په لاندې ډول دي:

— د علمي او تخنیکي انقلاب د تر ټولو مهمو موفقیتونو په استفاده د مولده قواو د پرمختګ د اوچتې سویې تامینول.

— د ټولنې په اقتصادي بنسټ کې د سوسیالستي مالکیت په دوو اساسي شکلونو یعنې دولتي او کلخوزي تعاوني شکلونو راټلونکی پرمختګ او د دې دوو شکلونو تدریجي نژدیکت.

— د خلکو د سوکالۍ دایمي زیاتوالی چې د سوسیالستي ملي اقتصاد عمده هدف شمیرل کیږي.

— د اوږدې مودې د پاره د نعمتونو د ویش د اساسي طرز په حیث د کار له مخې د ویش د سوسیالستي اصل ساتل او بشپړول.

— د کارګري طبقې د لارښوونکي رول د زیاتولو، د زیارایستونکو د نورو قشرونو سره د کارګري طبقې د وحدت د تقویه کولو، د ټولې ټولنې د یووالي او د هغې د ټولنیزې هماهنګۍ د تحکیم په لوري په ټولنیز جوړښت کې مترقي تغییرات.

— د ټولو ملتونو او قومونو د حقوقو د برابرۍ او د کمونستي ایډیالونو د عمومیت په اساس د هغو زیاتیدونکی مفکوروي او سیاسي وحدت او د هغو د اقتصاد او کلتور ګړندی پرمختګ.

— عمومي ولسي سوسیالستي دولت ته د پرولتاریا د دیکتاتورۍ د دولت اوښتل او د سوسیالستي دموکراسۍ تقویه او هراړخیز تکامل.

— د پراخو پرګنو د پوهنې او کلتور د سویې نور اوچتول، د هغوی د سیاسي آګاهۍ، مفکوروي پخوالي رشد، په زیارایستونکو کې د

علمي مارکسیستي او لېنیني نړۍ‌لید تشکل.

— د ورونو سوسیالستي هیوادونو سره د هراړخیزې همکارۍ تقویه کول.

— د سوسیالیزم او کمونیزم د برې د اصلي شرط په حیث د ټولنیز ژوند په ټولو ساحو کې د کمونستي او کارگري گوندونو د لارښوونکي رول اوچتول.

د دغو قوانینو ترسره کول د سوسیالستي ټولنې د ټولو حیاتي څانگو یعنې اقتصادي، ټولنیزې‌سیاسي او معنوي څانگو د متوازن او همآهنگ پرمختگ د گړندیتوب د پاره مساعد شرطونه برابروي»*.

په عمل سره د تیورۍ غنې کول په حقیقت کې هغه بلاوقفه پروسه ده چې هیڅکله نه بشپړیږي. په دې بنیاد باید داسې تصور و نه شي چې د سوسیالیزم قوانین د ابد دپاره درک او راسپړل شویدي.

د دې خبرې په سنجش چې سوسیالیزم هغه هم په لا نوو او نوو هیوادونو کې جوړیږي دا حقیقت لا نور هم روښانیږي چې سوسیالستي ټولنه د ډول ډول اقتصادي او نورو ټولنیزو مناسباتو ډیر شتمن او هراړخیز سیستم لري او دا مناسبات د عمل او پرمختگ ځانته قوانین لري. د دغو مناسباتو زده کول او په عمل کې د ټولنیز پرمختگ د قوانینو ترسره کول تر ټولو مشکله وظیفه ده.

د شوروي اتحاد د کمونست گوند د تجربې له مخې لیدل کیدلې شي چې څنگه گوند په مارکسیستي طرز سره د هیواد د اقتصادي ژوند د پرمختگ ژور تحلیل کوي، د دغو پروسو ماهیت راسپړي او د خپل عملي فعالیت پروگرام جوړوي. گوند د ملي اقتصاد د اداره کولو د عملي تجربې څخه د مارکسیستي او لېنیني تیورۍ د نور تکامل د پاره استفاده کوي. دا تجربه د ټولنیز پرمختگ د قوانینو له مکمل درک سره هم مرسته کوي.

---

* م. ا. سوسلوف. مارکسیزم او لېنینیزم او د نړۍ انقلابي نوې کیدل. — د «کمونست» مجله، ۱۹۷۷ کال، ۱٤ گڼه، ۱۵ مخ.

## ٤ فصل

# د ټولنیزو پدیدو علمي مخکی‌لید

د مارکسیستانو او د کارگری طبقي د سیاسي شخصیتونو د پاره د تاریخ د راتلونکی جریان پیشگویي د خوشي کنجکاوۍ شي نه بلکه د ژوند ضرورت دی. د ټولنیز پرمختګ د معقول درک څخه پرته لری‌لیدونکی سیاست هم نه شي موجودیدلی. و. ای. لېنین ویلي و چي «جادوگرانه داهیت افسانه ده. مګر علمي داهیت حقیقت دی» *.

په سیاست کي د معقولي کړنلاري د ټاکلو د پاره نه یوازي باید د طبقاتي قواو ننني تناسب بلکه په آینده کي د هغه احتمالي بدلون ولیدل شي. یوازي په همدي شرط مارکسیستي گوند کولی شي چي معقوله ستراتیژي او تکتیک جوړ کړي، د حوادثو تر شا گوډ گوډ روان نه شي بلکه د خپلو نژدي او نهایي هدفونو د ترسره کولو خوا ته په جرئت سره لاره اواره کړي او پرگني په ځان پسي بوزي. په همدي وجه و. ای. لېنین د پرولتاریا د طبقاتي مبارزي د تکتیک په هکله پخپله مقاله کي هم د هیواد په دننه او هم په بین‌المللي صحنه کي د طبقاتي مناسباتو د ټولي مجموعي د عیني او هراړخیز سنجش یوازي ضرورت نه و یاد کړی. نوموړی دا هم ویلي و چي ټولي طبقي او ټول هیوادونه باید نه په ساکت بلکه په متحرک شکل کي یعني دا چي نه په ټپه ولاړ بلکه په خوځیدو کي وڅیړل شي. او دا حالت باید «نه یوازي د تیري زماني بلکه د راتلونکي زماني له نقطه‌نظره مطالعه کړی شي» **. په سیاست کي پیشگویي د پدیدو د آینده حالت له نقطه نظره د هغو څیړل دي.

د علمي پیشگویي اهمیت په دي نه ختمیږي چي هغه امکان برابروي چي د عملي فعالیت معقوله کړنلاره وټاکل شي. دا پیشگویي د کارگری

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۳۶ ټوک، ٤۷۲ مخ.

** و. ای. لېنین. کلیات، ۲٦ ټوک، ۷۷ مخ.

طبقې په ګوند او په هغه پسې په روانو پرګنو کې د برې د ترلاسه کولو په امکان باندې ایمان، د روحي کلکوالي اخښې چې په سخته او له مشکلاتو ډکه انقلابي مبارزه کې ډېر زيات اهميت لري. په همدې وجه و. ای. لېنين د ځوان شوروی جمهوريت د پاره په يوه تر ټولو خطرنا که شيبه کې د هغو کم‌عقيده خلکو او هغو کسانو چې مايوسۍ ته تسليم شوي او د بورژوازۍ له خوا ډاروول شوي و په مقابل کې په آينده باندې پوره اطمينان وړاندې کاوه.

په معاصر دوران کې د علمي پيشګويۍ او د ټولنيز، علمي او تخنيکي پرمختګ د مخکې‌ليد مسئلې په تيره بيا ډېر اهميت پيدا کوي. دا دوران د بې‌سابقې ستر ټولنيز انقلاب چې د بشريت په وړاندې د سوسياليزم او کمونيزم خوا ته لاره پرانيزي دوران او په عين زمان کې د ستر علمي او تخنيکي انقلاب دوران دی. هم په ټولنيزو مناسباتو کې بدلون او هم هغه علمي او تخنيکي پرمختګ چې په تيرو زمانو کې يې د خپل ګړنديتوب له لحاظه ساری نه درلود دا غټ ضرورت رابرسيره کوي چې د اوسنۍ زمانې موجوده تمايلات چې ددې قدرت لري چې په نژدې لس کالونو دورو کې د ټولنې څيرې او د انسان د ژوند شرطونو ته ژور بدلون ورکړي په دقت سره وسنجول شي. د سوسياليزم او کاپيتاليزم د دوو سيستمونو مبارزه او د اقتصاد، تخنيک او علم په ساحو کې د هغو مسابقه د ټولنيز او علمي او تخنيکي پرمختګ د آينده په هکله پيشګويي د سختې ايديولوژيکې مبارزې مضمون ته اړوي.

### ۱. د علمي پيشګويي ادراکيه اساسات

د امپيريزم (د تجربې) پيروان اکثراً وايي چې مخکې‌ليد د علم سره هيڅ کوم ارتباط نه لري او په حقيقت کې له علم سره مخالف دی. هغوی عقيده لري چې علم حقايق مطالعه کوي، په تجربه او همدغه‌رنګه د تيرې زمانې (ماضي) او اوسنۍ زمانې (حال) په پيژندلو باندې استناد کوي. او دا چې د آيندې پيشګويي وشي آيا د دې معنی د بې‌ثمرو تخيلاتو ايجادول نه دي؟ مارکسيستان د دغسې له شک او ترديد څخه ډک نظر په مقابل کې کاملاً مخالفه نظريه دروي. او هغه دا ده چې علم نه يوازې د دې توان لري چې د آيندې پيشګويي وکړي بلکه

۵*

علم پرته له دغسی پیشګویۍ څخه ناممکن دی. که چیری علم یوازی د حقایقو په راټولولو نه بسیا کیږی بلکه دا حقایق توضیح کوی، که چیری علم د پدیدو قانونی رابطه راسپړی او که چیری د عملی فعالیت د وسیلی حیثیت لری نو علم هرومرو مخکې‌لید هم په ځان کی شاملوی.

د مخکې‌لید سره هر ډول برخورد تر ټولو دمخه د پدیدو د قانون‌مندۍ او د هغو د دیترمنیزم په مثلو پوری تعلق نیسی. د عینی قانون‌مندۍ څخه سر غړول یا د علمی مخکې‌لید د امکان او یا د دی مخکې لید د اساساتو د ردولو موجب کیږی.

و. ای. لېنین د «ماټریالیزم او امپریوکریتسیزم» پخپل کتاب کی په طبیعت کی د علت‌والی او ضرورت د مسئلی په برخه کی د ذاتی موقف بی‌اساسی ښودلی ده. د دی موقف ماهیت د طبیعت د عینی قانون‌مندۍ څخه په انکار او د بشری ذهن څخه د ذات د دغو یا هغو اصولو او اساساتو په پیدا کولو کی پروت دی. د ماټریالیزم برعکس نظریه و. ای. لېنین په دغو کلماتو سره څرګندوی چی «د طبیعت د عینی قانون‌مندۍ او د انسان په ذهن کی د دی قانون‌مندۍ د تقریباً سم انعکاس مثل ماټریالیزم بلل کیږی»*.

د پدیدو عینی رابطه چی په زیات یا کم دقیق طرز د انسان له خوا درک شوی وی هغه څه دی چی تل د آینده زمانی د موفقانه مخکې‌لید اساس تشکیلوی. علمی مخکې‌لید د هر ډول مذهبی او تصوفی رهبانیت څخه په دی تفریق کیږی چی علمی مخکې‌لید د ژوند د پدیدو تر منځ د طبیعی او واقعاً موجودی رابطی په مطالعه کولو ولاړ دی.

د پدیدو دا رابطه ښایی چی وار دواره په علمی طرز کشف نه کړی شی. لا په لرغونۍ زمانه کی د هغو پیشګویانو مثالونه معلوم و چی د تجربوی پوهنی په اساس ترسره کیدلی (مثلاً په غرونو کی د اوریځو د راټولیدو د څارنی په اساس د آناکساګور له خوا په المپیا کی د تندر او بریښنا پیشګویی). تجربوی پیشګویۍ د طبیعت د پدیدو تر منځ د رابطی د مستقیمی مشاهدی په اساس بنا دی. د پدیدو ماهیت او د هغو باطنی ارتباط مجهول پاته کیږی. په دی کی د تجربوی پیشګویۍ محدودیت پروت دی. سره د دی چی دغه ډول پیشګویۍ

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۱۸ ټوکه، ۱۵۹ مخ.

کافی دقیقی هم وی ولی د هغو د فعالیت ساحه تنګه پاته کیږی. په زیات پراخ مقیاس د مخکښلید د پاره د پدیدو په باطنی قانونمندیو باندی پوهیدل په کار دی او دا کار یوازی په مشاهداتو باندی نه کیږی. د دی د پاره په کار دی چی د تجربی نتیجی په نظری لحاظ تر استفادی لاندی ونیول شی. علمی مخکښلید له تجربوی څخه په دی توپیر لری چی هغه د پدیدو د قوانینو په درک او په زیاترو مواردو کی په ټاکلی تیوریو چی نه یوازی پدیدی ترسیموی بلکه توضیح کوی یی هم استناد کوی.

د مخکښلید مختلف ډولونه موجود دی. په ځینو برخو کی هغه په داسی پیښو پوری تعلق نیسی چی په زیاته یا لږه لری آینده کی باید وشی. په نورو برخو کی پوهاند هغه څه چی موجود وی مگر لا تر اوسه نه وی کشف شوی کشفوی (مثلاً د فرانسوی پوهاند لیویریی او انګریزی پوهاند آدمس له خوا د نیپتون د ستوری د ځای د ټاکلو فوق‌العاده مثالونه، د مندلییف له خوا د کیمیاوی عناصرو ګالی، سکاندی او ګیرمانی چی تر هغه وخته پوری نامعلوم و د خواصو پیشګویی، په روښانه شوو اجسامو باندی د رڼا د فشار معلومول چی د ماکسویل له خوا کشف شول او وروسته د روسی فزیک پوه لیبدیف له خوا په تجربوی ډول تایید شول او نور کشفیات له دی جملی څخه دی). د م. بونګی په عقیده نه یوازی د آینده زمانی بلکه د اوسنۍ او تیری زمانو مخکښلید هم ممکن دی یعنی هغه مخکښلید چی د زمان په چوکاټ کی نه بلکه له معلوم څخه د مجهول خوا ته د حرکت په کرښه کی کیږی*. موږ عقیده لرو چی د زمانی اصل تل په مخکی لید کی موجود دی که څه هم دا مخکښلید تل د زمانی په اساس نه جوړیږی. یوازی په ځینو مواردو کی مخکښلید د پیښو په راتلونکی پیدایښت پوری او په نورو مواردو کی د موجودو شیانو یا د هغو د خصوصیاتو په آینده کشفولو پوری تعلق نیسی.

د مخکښلید منطقی ترتیب او هغه طرز په کوم سره چی له معلوم څخه مجهول ته انتقال ترسره کیږی هم مختلف وی. داسی مخکښلید هم

---

* م. بونګی. علت‌والی. په معاصر علم کی د علت‌والی د اصل مقام. مسکو، ۱۹۶۲ کال، ۳۵۳ — ۳۵۶ مخونه.

ممکن دی چې له جز څخه کل ته او له کل څخه جز ته د تیریدو په لاره تر سره کیږی او هغه مخکېلید چې د پدیدو په علمی تصنیف او د مغلقو ساختمانونو یا پروسو د دغو یا هغو مودلونو په جوړولو استناد کوی. د مسئلې په دې اړخونو به بحث نه کوو او یوازې به دومره ووایو چې علمی مخکېلید په خپلو ټولو شکلونو کی له عمومی استنتاج سره پیوند دی.

و. ای. لېنین ویلی و چې «تر ټولو ساده عمومی استنتاج، د مفاهیمو (قضاوت، نتیجې او داسې نور) لومړی او تر ټولو ساده پیدایښت د انسان له خوا د نړۍ په لا زیاته ژوره عینی رابطه باندی د پوهیدلو معنی لری»*. و. ای. لېنین عمومی مفاهیم، قوانین او مقولې د انسان له خوا د طبیعت د لازیات ژور ادراک په پروسه کی اصلی نقطی بللی. انسان د مفاهیمو په جوړولو او د قوانینو چې د طبیعت عینی قانون‌مندی ښکاره کوی په تدوین سره د حال د حدودو څخه وتلی او مستقبل پخوا له پخوا کتلی شی. آینده زمانه تر هغه وخته پوری چې را نه شی د احساسی برداشت موضوع نه شی کیدلی. د مذهبی او تصوفی کوششونو پرخلاف چې غواړی آینده زمانه (مثلاً د تخیلی اشباحو، د ساحرانه هنداری او نورو وسایلو په مرسته) و گوری ـ آینده د مستقیم احساسی برداشت د پاره پټه ده. آینده په منطقی طرز د علم په ذریعه د احساس د نتیجو د استنتاج او معقولی مطالعی په طریقه معلومیدلی شی. په دی بنیاد په علمی مخکی لید کی نظری معلومات فیصله کوونکی اهمیت لری.

په تاریخی لحاظ تجربوی مخکېلید تر علمی مخکېلید سبقت لری. د مخکېلید لومړی مرحله د آینده زمانی په باره کی ساده اټکل چې د حقایقو په مشاهداتو او د هغو تر منځ په څرگنده شوی رابطه یا تشابه باندی ولاړ وی شمیرل کیدلی شی. و. ای. لېنین د انسانی ادراک د پرمختګ په تعریف کی «له تشابه سره یعنی د اټکل (علمی تصور) سره د جز څخه کل ته د انتقال رابطه» ** څرگنده کړې وه. مگر زموږ د ادراک پرمختګ په دی مرحله کی نه پاته کیږی. د راتلونکې په باره کی له

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۲۹ ټوک، ۱۶۱ مخ.

** و. ای. لېنین. کلیات، ۲۹ ټوک، ۱۶۲ مخ.

اټکل څخه خلک فرضیی ته انتقال کوی چی معمولاً د یو لړ معلومو حقایقو او مشاهداتو څخه سرچینه اخلی او هغه توضیح کوی او د دی پرمختګ خلکو ته امکان برابروی چی د راتلونکی په باره کی او د لا نامعلومو حقایقو په هکله ډیر یا لږ سم اټکل وکړی. وروسته تجربی فرضیی آزموبی او له هغو څخه ځینی ایسته کوی، نوری تدقیق کوی او بالاخره امکان برابروی چی د پدیدو قوانین وټاکل شی. یوازی همدغه وخت علمی تیوری ایجادیږی چی د مشخصو قوانینو په پوهه باندی بنا وی او د هغی له برکته آینده په زیات دقت سره معلومیدلی شی. لکه څنګه چی و. ای. لېنین ویلی دی له دی مرحلی سره «د تشابه له مخی (د تشابه په باره کی) نتیجه د ضرورت په باره کی نتیجی ته انتقال»* مطابقت پیدا کوی.

لکه څنګه چی پورته وویل شول قانون د ژوند په پدیدو کی د عمومیت شکل شمیرل کیږی. په عین زمان کی هر قانون نابشپړ وی، تنګ وی او د ژوند یوازی یوه برخه احتوا کوی. سوړ نه شو کولی چی هره ځانګړی پدیده حتی داسی ساده پدیده لکه د جسم لویدل یوازی په یوه قانون سره توضیح کړو. یوازی ګڼ شمیر قوانین امکان برابروی چی په مشخصه توګه سره پدیده وڅیړل شی. و. ای. لېنین لیکلی و چی «د عمومی (کل) معنی متضاده ده. هغه جامده او ناخالصه ده، بشپړه نه ده او نور او نور. مګر یوازی هغه د مشخص د ادراک د پاره سرحله ده ځکه چی سوږ هیڅکله مشخص په بشپړه توګه نه‌درک کوو. د عمومی مفاهیمو او قوانینو بی‌نهایته مجموعه په بشپړه توګه مشخص څرګندوی»**. د ژوند په دی تنوع کی او د هغه د ادراک په تاریخی څرنګوالی کی د دی خبری علت پروت دی چی علمی پیشګویی او مخکی‌لید تل د آیندی یوازی اساسی خصوصیتونه احتوا کوی او په پوره توګه هغه نه څرګندوی. باید دلته دا هم وویل شی چی په عمومی قانون یوازی پوهیدل اصلاً د مخکی‌لید د پاره کفایت نه کوی خو باید د امکان سره سم په هغو شرطونو باندی په کومو کی چی نوموړی قانون عمل کوی علم راوستل شی ځکه چی د دغو شرطونو په ارتباط د هماغه

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۲۹ ټوک، ۱۶۲ مخ.

** و. ای لېنین. کلیات، ۲۹ ټوک، ۲۵۲ مخ.

یوه قانون د عمل نتیجې کاملاً توپیر سره پیدا کوي. هر قانون پخپل تعمیل کې د ډول ډول شرایطو سره تغییر مومي، دا خبره په تیره بیا د ټولنیز پرمختګ د قوانینو په تطبیق کې صدق پیدا کوي. د دې د پاره چې ولیدل شي چې عمومي تاریخي قانون‌مندي کوم شکلي تغییرات پیدا کوي باید د یوې دورې یا د یوه هیواد شرطونه او اوضاع په مشخصه توګه او هراړخیز ډول په نظر کې ونیول شي. انګلس لیکلي و چې «غیر له دې به د هر تاریخي دوران په برخه کې د تیورۍ تطبیقول د لومړۍ درجې د عادي معادلې د حل کولو په نسبت آسان وي» *.

بالاخره د پدیدو د تکراریدو پخپله پیمانه د ژوند په بیلا بیلو ساحو کې یو ډول کیدلې نه شي. هغه د نسبتاً ساده پدیدو د پاره زیاته او د زیاتو پیچلو پدیدو د پاره کمه ده.

یو شمیر بورژوایي فیلسوفان د ټولنیز ژوند په برخه کې د تکراریدو د محک د تطبیقولو پخپله د امکان د ردولو او په دې بنیاد د تاریخي پرمختګ د قانون د ټاکلو د ردولو په منظور په یواړخیز ډول دې عیني حقیقت ته زیات اهمیت ورکوي او ورڅخه استفاده کوي. و. ای. لېنین د پ. ستروو په موقف باندې چې کوشش یې کاوه چې د ارزښت قانون د خپسې په شان وښیي د خپل انتقاد په ترڅ کې لیکلي دي چې «د طبیعي علومو په ساحه کې به هغه انسان چې ووایي چې د طبیعي نړۍ د پدیدو قوانین خپسې ده په دارالمجانین کې واچول شي یا به یوازې ورپورې وخاندي. د اقتصادي علومو په ساحه کې به هغه انسان چې دومره په زړورتیا سره خپل پوچوالی نه پټوي... په خوښۍ سره د پروفیسور په حیث مقرر کړی شي ځکه چې هغه په رښتیا هم د بورژوایي بچیانو د غبي کولو د پاره بیخي ښه دی» **.

د تاریخي پیښو د فوق‌العاده او بې نظیره ښودلو او په دې کې د تاریخ د خصوصیت د پیداکولو د پاره کوششونه نن هم دوام لري. مثلاً مشهور انګریزي بورژوایي فیلسوف ک. پوپیر عقیده څرګندوي چې د «انفرادي کوونکي» علم په حیث د تاریخ او د فزیک په شان د

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۳۷ ټوک، ۳۹۵ مخ.

** و. ای. لېنین. کلیات، ۲۵ ټوک، ٤٦ مخ.

«استنتاج کوونکو» علومو تر منځ تفاوت په دې کې پروت دی چې سورخین «له ځانګړو پېښو سره علاقه لري، نه د کومو عمومي تاریخي قوانینو سره ځکه چې زموږ له نقطه نظره تاریخي قوانین وجود نه شي درلودلی... هغه څوک چې د قوانینو سره علاقه لري باید استنتاج کوونکو علومو (مثلاً ټولنه‌پېژندنې) ته مراجعه وکړي» * . که څه هم لکه چې وینو ک. پوپیر د ټولنې‌پېژندنې د پاره استثناء قایلیږي (چې البته که چیرې په تاریخ کې قوانین نه منل کیږي پوره منطقي کار نه دی) د نوموړي عمومي دریځ څرګند دی. هغه دا دی چې تاریخي علم د بې سارو او ځانګړو پېښو سره سروکار لري. که چیرې هغه د تاریخي پېښو د تکرار امکان منی هم نو دا تکرار یوازې د پېښو په باندینو غیر مهمو مشخصاتو پورې تعلق لري. په دې بنیاد د نوموړي په عقیده هیڅ دلیل وجود نه لري چې د کومې تاریخي پېښې څخه چې ظاهراً تیره زمانه تکراروي دا انتظار وایستل شي چې هغه پیښه دې د خپل ساري سره په موازي توګه انکشاف وکړي. په دې دلیل ک. پوپیر د تاریخ د جریان د مخکې‌لید امکان هم ردوي. پخپل «د هستوریزم ** فقر» نومي کتاب کې نوموړی د مخکې‌لید د امکان پر ضد یو لړ نور دلایل هم وړاندې کوي چې له هغو څخه عمده دلیل د ده په عقیده دا دی. د بشري تاریخ جریان د علمي پوهې په رشد پورې اړه لري او موږ په علمي طرزونو سره د دې رشد پیشګویي نه شو کولی او نن موږ نه شو کولی هغه څه مخکې وګورو چې یوازې سبا ته به پرې پوه شو***. د دې دلیل په باره کې دا ویل کېدلی شي چې که هر څومره د بشریت په پرمختګ باندې د علم نفوذ ستر هم وي بیا هم هغه د تاریخ عمومي جریان نه ټاکي. سربیره پر دې د علم پخپله پرمختګ د تصادفي کشفیاتو لړۍ نه ده. هغه د قوانینو له مخې جریان موسي. او که چیرې موږ د دې توان نه لرو چې د هر ځانګړي کشف پیشګویي وکړو نو کاملاً خو کولی شو چې د علمي ترقۍ اساسي لورې وټاکو او حتی د هغې پلان جوړ کړو.

---

K. Popper. The Open Society and its Enemies, vol. II.L., 1966. *

** هستوریزم د اشیاو او پدیدو د تاریخي انکشاف څېړنه — مترجم.

K. Popper. The Poverty of Historicism. Boston, 1957, p. IX — X. ***

که چیری په مطلق مفهوم سره تکرار راواخیستل شی نو تکرار په طبیعی پوهنه کی هم نشته ځکه چی په قطعی توګه یو له بله سره ورته موجودات نشته. مګر سره د دی هم دا خبره د طبیعی پوهانو مخه نه نیسی چی مهم له غیر مهم څخه، ضروری د تصادفی څخه د جلا کولو په لاره عمومی مفاهیم ایجاد کړی. مګر د عمومی مفاهیمو د جوړولو همدغسی پروسه خو د تاریخی پیښو په ادراک کی هم شته او پرته له دی د تاریخی حقایقو نه یوازی توضیح کول بلکه د هغو ترسیمول هم ناممکن دی.

د پیښو د ظاهری خصوصیاتو تکراریدل په دغه یا هغه اندازه تصادفی خصلت لری او البته د مخکښید د پاره دلیل نه شی کیدلی. د مهمو خصوصیاتو تکراریدل چی د پدیدو تر منځ دایمی او قانونی رابطه څرګندوی بله خبره ده. که چیری د تکراریدو د موندلو د پاره علمی محک په لاس کی وی نو همدغسی تکراریدل تشخیص کیدلی شی*.

د و. ای. لېنین په عقیده د سبجکتویزم پیروانو ټولنه‌پیژندونکو نه شول کولی چی «د بیلا بیلو هیوادونو په ټولنیزو پدیدو کی تکراریدل او سموالی ووینی»** ځکه چی هغوی یوازی د ایدیولوژیکو ټولنیزو مناسباتو په تحلیل بوخت و او د هغو په بنسټ کی یی مادی مناسبات نه راسپړل. په مجردی د هغه چی هغه ډیر مهم او استوار روابط چی د ټولنیز ژوند اساس تشکیلوی یعنی تولیدی مناسبات تشخیص کړی شول نو سمدستی د بیلا بیلو هیوادونو په تاریخ کی تکراریدل او سموالی ولیدل شو.

په تاریخی لحاظ د ټولنی د ټاکلی ډول او د ټولنیزی خاصی دستګاه په حیث چی د پرمختګ ځانته مخصوص قوانین لری د ټولنیز اقتصادی

---

* یوګوسلاوی مارکسیست فیلسوف ل. ژیفکوویچ د تکراریدو دری ډولونه سره بیلوی یعنی د یوه ټولنیز فرماسیون په چوکاټ کی تکراریدل، په یو لړ فرماسیونونو کی تکراریدل، او بالاخره عموماً د تاریخی پرمختګ په تداوم کی تکراریدل (ل. ژیفکوویچ. د ټولنیز انعکاس تیوری. مسکو، ۱۹۶۹ کال، ۲۸۲ — ۲۹۱ مخونه).

** و. ای. لېنین. کلیات، ۱ ټوک، ۱۳۷ مخ.

فرماسیون پېژندل د دې امکان برابروي چې د ټولنیزو مناسباتو له ترسیم
(او د ایډیال له نقطه نظره د ارزیابۍ) څخه د هغو جدي علمي تحلیل ته
انتقال ترسره شي.

د ک. مارکس د «کاپیټال» اثر د دغسې تحلیل نمونه شمېرل
کېږي. مارکس د انګلستان په مثال کې د کاپیټالیزم د خاصو قوانینو په
راسپړلو سره وښودله چې څنګه په صنعتي لحاظ پرمختللي هېواد کم
پرمختللي هېواد ته د هغه د راتلونکي منظره ښیي. د دې له فیضه که چیرې
ټاکل شوي وي چې کوم یو هېواد د پانګوالۍ لاره غوره کړې وي
په آینده کې د هغو پدیدو چې په ضروري توګه د تولید د دې طرز
د پرمختګ مولود شمېرل کېږي پیشګویي وشي مثلاً د کوچنیو مولدینو
افلاس، د تولید بې‌نظمي او داسې نور. طبیعي ده چې لکه څنګه چې
لېنین ویلي و دغسې مشخص‌کېدل په دغه یا هغه هېواد کې که په انګلستان،
فرانسه، آلمان یا روسیه کې وي د پانګوالۍ د پرمختګ د ځانته خصوصیاتو
د سنجش ضرورت له منځه نه وړي.

د ټولنیز او اقتصادي فرماسیون د مفهوم سره یوځای د طبقاتي
مبارزې په هکله مارکسیستي تیورۍ هم د ټولنیزو پدیدو د قوانینو د
کشفولو د پاره لوی اهمیت درلود.

د ټولنیزو پدیدو طبقاتي تحلیل د تاریخي پرمختګ د جریان د
علمي مشخص‌کېدل د شرط په حیث تبارز کوي ځکه چې دا تحلیل امکان
برابروي د بشري فعالیتونو او تاریخي پیښو په بې‌نهایته پیچلي ادغام
کې پایداره پدیدې ولیدل شي.

ټولنیز ژوند بې‌نهایته مغلق دی او د ګڼ شمېر نهضتونو څخه
تشکیل شوېدی چې په مختلفو سرعتونو چې د یوې دورې د پاره هم
مختص او هم غیرمختص وي ترسره کېږي کوم چې د منځنۍ ډول او
منځنۍ سرعت څخه زیات یا کم انحراف کوي. د یوې ټاکلې دورې په
تعریف کې د دې ټولو شیانو په سنجش و. ای لېنین ویلي و چې «موږ
نه شو پوهېدلی چې د یوې دورې ځانګړي تاریخي نهضتونه به په څومره
ګړندیتوب او په څومره موفقیت سره پرمختګ وکړي.؟ مګر موږ پوهېدلی
شو او پوهېږو چې د دې یا هغې دورې په مرکز کې کومه طبقه
ځای لري چې د نوموړې دورې اصلي مضمون، د هغې د پرمختګ عمده
لور او د همدې دورې د تاریخي اوضاعو عمده خصوصیات ټاکي او

داسی نور»*. د دی طبقی د موقف او رول په تحلیل سره کیدلی شی چی د تاریخی پرمختګ د هری مرحلی اساسی کرښه تشخیص شی.
لنډه یی دا چی د پدیدو دایمی او قانونی رابطه د طبیعت د پروسو په شان د ټولنیزو پروسو د علمی مخکښلید اساس شمیرل کیږی.

## ۲. د ټولنیزو پدیدو د مخکی لید خصوصیتونه

د طبیعت د پدیدو د پیشګویۍ پر عکس په ټولنیز ژوند کی پخپله د خلکو د تاریخی اعمالو د نتیجو پیشګویی کیږی. د خلکو د سترو پرګنو د اعمالو د لګیدو او د ټولنیزو پدیدو د سخت پیچلتوب په نتیجه کی د ټولنیز ژوند په ساحه کی د هغو پیشګوییانو په شکل نه وی کومی چی مثلاً د نجوم له خوا ترسره کیږی چی د کسوف او د لکۍ لرونکو ستورو د بیرته ګرزیدو او نورو پدیدو موده له پخوا څخه ټاکی. په ټولنیز ژوند کی اصلاً د دغسی مشخصی مودی د پاره مخکښلید ناممکن دی ولی دا د مخکښلید د هر ډول امکان د ردولو معنی نه لری. باید وویل شی چی په طبیعی پوهنه کی هم د نجوم په څیر پیشګویۍ نسبتاً نادری وی.
په دی باره کی تصور چی ګنی د ریاضی تحلیل په مرسته هم ماضی او هم مستقبل په دقت سره ټاکل کیدلی شی او دا چی د دغسی حساب امکان یوازی د ابتدایی معلوماتو په مقدار او د ریاضی فورمول په پیچلتوب پوری چی د معلومات احتوا کولی شی تعلق لری په میخانیکی لحاظ محدود دی. په دغسی تصور کی اقلاً دوه مهم شرطونه په نظر کی نه نیول کیږی. لومړی د حقایقو کیفی تنوع چی د دی مخه نیسی چی د میخانیکی حرکت د فورمول په مرسته هغه پروسی چی په زیاتو مغلقو ساحو کی ترسره کیږی او د خپلو خاصو قوانینو تابع وی معلومی کړی شی. دوهم د مختلفو امکاناتو زیاتوالی او د تصادفونو موجودیت چی رول یی د میخانیکی سیستمونو په نسبت په زیاتو پیچلو سیستمونو کی په تیره بیا ستر دی.

---

*و. ای. لینین. کلیات، ۲۶ ټوک، ۱۴۲ مخ.

میخانیکی ماتریالیزم د تصادفونو د موجودیت په ردولو سره ټولې پیښې په یورنګه ډول ضروري شمیرې. لاپلاس لیکلي و چې «ټولې پدیدې حتی کم‌اهمیته پدیدې چې ګنې د طبیعت په سترو قوانینو پورې تعلق نه لري په حقیقت کې لکه د لمر د ګرزیدو په شان د دغو قوانینو همدومره حتمي نتیجې دي... هغه منحني کرښه چې د هوا یا بړاس بسیط مالیکول په هغې باندې حرکت کوي د سیارو د مدارونو په شان په همدومره دقت سره ټاکل شویده او د هغو تر منځ توپیر یوازې زموږ د ناپوهۍ اثر دی» *.

په دغسې برخورد کې لکه څنګه چې ف. انګلس وښودله تصادف له ضرورت څخه نه توضیح کیږي بلکه ضرورت د تصادف تر درجې پورې راټیټیږي. که چیرې ټول شیان په یورنګه ډول ضروري وي نو سهمي او غیرسهمي پدیدې په یوه کتار کې درول کیږي. په یوه اندازه د ټولو شیانو ضروري بلل د دې معنی لري چې په حقیقت کې علمي سخکېلید ناممکن کړې شي. هغه مورخ یا سیاست‌چلوونکی چې بې استثنا د ټولنیز ژوند د ټولو پدیدو د ترسیم هدف د ځان په وړاندې ږدي په فروعاتو کې ډوبیږي او نه شي کولی چې په هغو کې اساسي، فیصله کوونکې او عمده پدیدې تفریق کړي.

د ټولنیز ژوند خصوصیت د هغه په بې‌نهایته پیچلتوب کې پروت دی. د مستقبل د پیشګویۍ د پاره د ټولنیز پرمختګ د اساسي، ضروري کرښې د پیدا کولو توان او له غیرسهمو پدیدو څخه د سهمو پدیدو جلا کول په کار دي. د ټولنیز پرمختګ اساسي لوري په اقتصادي ضرورت سره ټاکل کیږي. مګر «ضروري اقتصادي نهضت بالاخره د بې‌شمیره زیاتو تصادفونو له طریقه (یعنې د اشیاو او حوادثو له لارې چې د هغو باطني رابطه دومره سره بیله شوې او په دومره سختۍ سره ثابته شوې وي چې موږ پرې سترګې پټولی او داسې فکر کولی شو چې دا رابطه موجوده نه ده) ځانته لاره اواروي» **.

تصادفونه د تاریخي پرمختګ د پروسې په مجموعه کې شاملیږي؛

---

* پ. لاپلاس. د احتمال د تیورۍ د فلسفي تجربه، ۸، ۱۱ مخونه.
** ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۳۷، ټوک، ۳۹۵ مخ.

هغه د شرایطو سره سم کولی شی چې دا پرمختګ ومنډوي یا یې ګړندی کړي او د پرمختګ په عمومي خطالسیر کې ټاکلی کږلیچونه او انکسار راولی. مګر د دغو ټولو تصادفونو او کږلیچونو پیشګویی ناممکنه ده. ضمناً په عین زمان کې د تصادفونو د عینی موجودیت پېژندل د پیشګویی امکان له منځه نه وړي. د هر ځانګړی تصادف پیشګویی ناممکنه ده مګر د هغو د عمل مجموعي نتیجه ټاکل کیدلی او هغه اصلی تمایل چې د تصادفونو د یوی تمامی کتلی له ورایه د ضرورت په حیث ځانته لاره پرانیزي تشخیص کیدلی شی.

مارکسیزم له میتافزیک یوا ړخیزوالی څخه چې د میخانیکی نړۍ‌لید خصوصیت شمیرل کیږي د ضرورت مفکوره خلاصه کړه. هغه په دی باره کې چې ګنی په نړۍ کې ټول شیان او د ټولنیز ژوند ټولی پیښی مخکی له مخکی ټاکل شویدی او یوازی په همدی ترتیب ترسره کیږي نه په بل ډول – موهوم تصور رد کړ. دغسی تصور د بیلا بیلو امکاناتو چې ځینی یې په ټولنیز ژوند کې صدق مومی او نور یې د خلکو په اعمالو سره ایسته کیږي موجودیت په نظر کې نه نیسی.

هغه مخکې‌لیدونه چې په ټولنیزه او سیاسی آینده پوری تعلق لري اکثراً د دوو څخه د یوی انتخابی لاری په حیث څرګندیږي. د انقلاب نه په پخوا زمانه کې د روسیې د ټولنیز پرمختګ دورنما و. ای. لېنین په یو ډول نه تدوین کوله. نوموړي د عینی ټولنیزو قواو له مخی دوه اصلی امکانات تشخیص کړل. د دغو څخه د هر یوه امکان تحقق په څه شی پوری تړلی و؟ هغه د مبارزی په جریان پوری، په دی پوری تړلی و چې د انقلاب قواوی کفایت کوی یا دا چې دا قواوی د ضدانقلاب سره زیاتی وی. د مبارزی نتیجه مخکی له مخکی په پوره دقت سره نه شو لیدل کیدلی او یوازی ممکنه وه چې د احتمال په لږه یا ډیره اندازه اټکل کیدای شی. مګر د دغو امکاناتو پخپله ټاکلو د انقلاب د پلویانو دپاره ستر عملی اهمیت درلود او هغوی ته یې ښودله چې د بری ترلاسه کول د هغوی د ټولو قواو د یوموټی کولو په شرط ممکن دی.

همدغه‌رنګه په میخانیکی طرز د نړۍ ادراک نه د تاریخی پرمختګ په جریان کې د تصادفونو او پیچومو موجودیت او نه دا

خبره په نظر کې نیسي چې تاریخ د ملیونهاو خلکو د تخلیق او مبارزې نتیجه ده.

څرګنده خبره ده چې مارکسیستان په سیاست کې ټل کوښښ کوي چې له هره اړخه اوضاع وسنجوي او د بري چانسونه وټلي مګر په هر ځانګړي مورد کې په قطعي یقین سره د بري پیشګویي ناممکن کار دی. او مطلب دلته اصلاً زموږ د پوهې په نابشپړتوب او زموږ د عقل په محدودیت کې نه بلکه په دې کې دی چې دا انجام اصلاً پخوا له پخوا نه دی ټاکل شوی. بشري تاریخ د تقدیر د هغې پروسې په حیث ګڼل چې ټول شیان یې پخوا له پخوا «دپروګرام له مخې جوړ شوي» او مخکې له مخکې ټاکل شویدي ناجایز کار دی. و. ای. لېنین د هغو اپورتونیستانو په باره کې چې غوښتل یې چې انقلاب دې یوازې د ښیخي مساعدو چانسونو په صورت کې ترسره شي په اهانت سره نظریه څرګندوله. هغه لیکلي و چې «د پوره دقت سره مخکې له مخکې د چانسونو د سنجولو کوښش نیرنګ‌بازي او یا بې‌ګټې خورده‌ګیري ده»*. لېنین په سخته استهزاء سره ویل چې «لکه څنګه چې توراتي او کاؤتسکي «تیاردي» چې وی‌منې دغسې انقلابونه په تیره بیا داسې چې مخکې له مخکې سړی وویلي شي چې څه وخت به انقلاب پیل شي او په کومه اندازه سره د هغه د بري چانسونه لوی دي وجود نشي درلودلی»**.

د هرې حادثې د پیشګویۍ ناممکن‌توب په هیڅ ډول زموږ د عملیاتو اساس نه ورانوي. دلته خبره برعکس ده. موږ پوهېږو چې بالاخره زموږ چاره د تاریخي ضرورت سره بریالۍ کیږي خو په هره ځانګړې جګړه کې د مبارزې انجام مخکې له مخکې نه دی ټاکل شوی او دا موږ موثر انقلابي فعالیت ته اړ باسي. د بري خوا ته د انقلابي قواو په نه‌ماتیدونکې ارادې، د هغوی په آمادګۍ او د تر ټولو پراخو پرګنو سره د هغوی په پیوند پورې د مبارزې انجام مربوط دی. او د کمونیزم د قطعي بري د مودې ټاکل به هم په آګاهانه انقلابي عملیاتو پورې تعلق ولري.

انقلابي قواوې د تاریخي پرمختګ د ضرورت د ادراک او په خپل

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۱٤ ټوک، ۳۷۸ — ۳۷۹ مخونه.

** و. ای. لېنین. کلیات، ۳۰ ټوک، ۳٤۷ مخ.

عملی فعالیت کی له دی ادراک څخه د استفادی په نتیجه کی امکان ترلاسه کوی چی هر ډول هغه ناساعد تصادفونه چی د هغوی په لاره کی پیدا کیږی له منځه ایسته کړی.

بو بل مهم دلیل هم شته چی موږ ته دا خبره توضیح کوی چی ولی مخکی له مخکی د تاریخی پروسی ټول تفصیلات نه شی لیدل کیدلی. ددی خبری هیروول ناجایز دی چی تاریخ د ملیونهاو کسانو له خوا ایجادیږی او دا خلک په دایمی توګه نوی تخلیقی شیان په تاریخ کی وردننه کوی. ځکه خو نو تاریخ تر هغه څه چی په تیورتیک طرز د تاریخ د راتلونکو لارو د ټاکلو په ترخ کی مخکی له مخکی د هغه پیشګویی وشی د مضمون له حیثه تل شتمن وی.

و. ای. لېنین لیکلی و چی «عموماً تاریخ او په تیره بیا د انقلابونو تاریخ تل د مضمون له حیثه شتمن او د هغه څه په نسبت چی تر ټولو ښه ګوندونه او د تر ټولو پرمختللو طبقاتو تر ټولو آګاهانه مخکښ ټولګی یی تصور کوی زیات متنوع، هرا ړخیز، ژوندی او «ساهرانه» وی. دا د پوهیدلو وړ خبره ده ځکه چی تر ټولو ښه مخکښ ټولګی د لسګونو زرو کسانو آګاهی، اراده، تلوسه او تخیل ښکاره کوی مګر په لسهاو ملیونو کسان د ټولو بشری قرایحو د خاص شدت او اوج په وخت کی په خپل شعور، اراده، تلوسه او مخیلی سره چی د طبقاتو بیحده سخته مبارزه یی تشویقوی انقلاب ترسره کوی» *.

تاریخی تخلیق تل په ځان کی غیرمترقبه او مجهوله لحظه مشتملوی. مګر ددی خبری معنی دا نه ده چی تخلیق اصلاً د مخکی‌لید امکان لکه څنګه چی یی د فوری بدلون پلویان وایی ردوی.

د مخکی‌لید د علمی اساس په حیث د تکرار او عمومیت منل اصلاً د نوی او ناسعلومی پدیدی د مخکی‌لید امکان له منځه نه وړی. ځکه یی له منځه نه وړی چی مخکی‌لید د پرمختګ د تمایلاتو په کشفولو او د اوسنۍ زمانی د هغو اختلافونو په ادراک چی په آینده کی حل کیدلی شی او باید حل شی اتکاء کوی.

هغه وګړی چی آینده ایجادوی تل د اوسنۍ زمانی اختلافونه حل کوی. په دی وجه د اوسنۍ زمانی د اختلافونو د رابرسیره کولو په

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ٤١ ټوک، ٨٠ — ٨١ مخونه.

ترخ کی د هغو د حل کولو په نتیجو هم او بالنتیجه د هغو په نهایی نتیجو باندی پوهیدل ممکن دی که څه هم هغه د تیرو تجربو له مخی معلومی نه وی.

ک. مارکس د کمونیزم د رارسیدو په باره کی د مخکی‌لید همدغسی ترتیب درلود. د پانگوالی د اختلافونو د تحلیل له فیضه مارکس وکولی شول چی په علمی دقت سره د هغه نوی ټولنیز نظام چی پخوا هیڅکله په تاریخ کی نه و موجود اساسی کرښی ترسیم کړی.

و. ای. لېنین لیکلی و چی «د مارکس ټوله تیوری په تر ټولو مسلسل، بشپړ، سنجول شوی او په خپل مضمون سره په غنی شکل کی د معاصری پانگوالی په برخه کی د پرمختگ د تیوری تطبیق دی. طبیعی خبره ده چی هم د پانگوالی د راتلونکی زوال او هم د راتلونکی کمونیزم د راتلونکی پرمختگ په برخو کی ددی تیوری د تطبیق مسئله د مارکس په وړاندی ودریده.

د کومو معلوماتو په اساس کیدلی شی چی د راتلونکی کمونیزم د راتلونکی پرمختگ په باره کی مسئله مطرح شی؟

په دی اساس چی هغه له پانگوالی څخه راپیدا کیږی، په تاریخی لحاظ له پانگوالی څخه پرمختگ کوی او د داسی ټولنیزی قوی د فعالیت نتیجه ده کومه چی پانگوالی زیږولی ده. مارکس په هیڅ توگه کوشش نه دی کړی چی تخیل جوړ کړی او د هغه څه په باره کی چی پوهیدل یی ناممکن وی اټکل وکړی. مارکس د کمونیزم مسئله داسی مطرح کوی لکه کوم طبیعی پوه چی د مثال په توگه د بیولوژیکی نوعی په باره کی مسئله مطرح کوی په داسی حال کی چی موږ پوهیږو چی دا نوع په کوم ډول پیدا شوی او په کوم مشخص لوری کی خپل شکل ته تغییر ورکوی» *.

د لېنین په دغو کلماتو کی په پوره څرگندتیا سره د مخکی‌لید علمی اساسات ښودل شویدی. د طبیعت او ټولنی د پدیدو په مطالعه کولو سره علم کولی شی چی د هغو د خوځون لوری او تمایلات کشف کړی او وینی چی پرمختگ کومی خوا ته روان دی یعنی دا چی پیش‌بینی وکړی. یوازی د دی له برکته چی ک. مارکس خپله معاصره پانگوالی

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۳۳ ټوک، ۸۴ — ۸۵ مخونه.

ټولنه د هغې په پرمختګ او د هغې له تضادونو سره څېړله ده وګولی شول چې د راتلونکې کمونستي ټولنې اساسي کرښې په سمه توګه وټاکي. په دې بنیاد د راتلونکې نظام په باره کې د مارکس مخکې‌لید د تیرې زمانې او راتلونکې زمانې په هراړخیزه مطالعه باندې بنا و.

باید وویل شي چې د مارکس مخکې‌لید د راتلونکې زمانې یوازې اساسي خصوصیات احتوا کول. و. ای. لېنین په ۱۹۱۷ کال کې خبرداری ورکړی و چې «موږ ددې ادعا نه لرو چې مارکس یا مارکسیستان د سوسیالیزم خوا ته بیخې مشخصه لار پېژني. دا خوشې خبره ده. موږ ددې لارې په جهاتو باندې پوهیږو، موږ پوهیږو چې کومې طبقاتي قواوې په هغې باندې خلک رهنمایي کوي مګر په مشخصه او عملي توګه یوازې د ملیونهاو خلکو تجربه چې کله هغوی په دې کار لاس پورې کړي دا ښودلی شي»*.

مخکې له مخکې د سوسیالیزم خوا ته د لارې د ټولو تفصیلاتو پیش‌بیني کول و. ای. لېنین په دوو علتونو رد کړې و. لومړی دا چې د دې خبرې معنی به په تخیل باندې د علم او د راتلونکې په باره کې په تشو اټکلونو سره د علمي مخکې‌لید بدلول وای. دوهم ددې خبرې معنی به دا وای چې په عملي کار کې له لومړي سر څخه خپل لاسونه وتړل شي. مثلاً په ۱۹۱۷ کال کې د ګوند د پروګرام د څېړلو په وخت کې لېنین لیکلي و چې یوازې په عمومي شکل سره د تولید او ویش راتلونکې تنظیم ښودل کیدلی شي. «اوس نور وړاندې تلل او د ځانګړو اقداماتو په راسپړلو کې ورننوتل ما ته غیرمصلحت‌آمیزه کار ښکاري. د نوې دول اساسي اقداماتو څخه وروسته، د بانکونو د ملي کولو څخه وروسته، او د کارګرو په کنترول باندې د پیل کولو څخه وروسته به ډیر شیان معلوم شي او تجربه به ګڼ شمیر نوي شیان موږ ته رازده کړي ځکه چې دا به د ملیونهاو خلکو تجربه او د ملیونهاو کسانو په آګاهانه ګډون به د نوې اقتصادي نظم د جوړولو تجربه وي... مګر په پروګرام کې د بې‌اندازې جزییاتو شاملول له وخته پخوا کار دی او ښایي چې تاوان ورسوي او په جزییاتو کې زموږ لاسونه راوتړي.

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۳۴ ټوک، ۱۱۶ مخ.

مگر لاسونه باید آزاد وی تر څو چی کله چی موږ نوی لاری ته پوره
ورداخل شو په زیات قوت سره نوی شیان تخلیق کړی شو» *.

تاریخ د و . ای. لېنین دپاره د ډیرملیونیزو ولسی پرګنو د تخلیق او ایجاد نتیجه وه. او «د لسګونو ملیونو ایجادګرانو عقل د تر ټولو ستر او پرنبوغه مخکښلید په نسبت بې‌اندازه زیات اوچت شی جوړوی» **.
ځکه هغه علمی مخکښلید چی په تیوری باندی مجهز ګوند بی ترسره کوی باید د تر ټولو پراخو پرګنو د عملی فعالیت سره پیوند وی.

یوازی عملی فعالیت او هغه هم د زیاراېستونکو د ملیونهاو پرګنو عملی فعالیت ددی قدرت لری چی علمی مخکښلید ته مشخص رنګ ورکړی.
د اکتوبر له انقلاب څخه وروسته ټوله تجربه ښیی چی ګوند د پرګنو په اتکا د سوسیالستی او کمونستی ټولنو د جوړولو په پروسه کی د پرګنو د ابتکار د نتیجو په تعمیم د نوی ټولنی او د هغی د جوړولو د لارو د خصوصیاتو په باره کی خپله نظریه څنګه جوړوله. په دی ترتیب علمی مخکښلید لکه عموماً د علمی ادراک په شان یوه پروسه شمیرل کیږی.
هغه پخپله د ژوند د پرمختګ او د ژوند د بدلولو د پراکتیک په جریان کی انکشاف مومی او په مشخص ډول تکامل کیږی.

مارکسیزم په قطعی توګه ټول هغه کوششونه ردوی د کومو مطلب چی د راتلونکی زمانی د ټولو جزییاتو او د ټولو خاصو حوادثو پیش‌بینی ده له کومو څخه چی بشری تاریخ جوړ شویدی دا خو لا ځکه چی په ټولنیز ژوند کی د خلکو بی‌نهایته زیات تمایلات او حرکات چی یو له بله سره مناقضت لری تصادم کوی. هر ځانګړی مولد په ټولنیز ژوند کی یو لړ تغییرات راولی که څه هم دا تغییرات ډیر نشتوکی وی. و . ای. لېنین لیکلی و چی حتی د مارکس په شان اویا تنو پوهانو به هم نه شوای کولی چی په کاپتالستی نړیوال اقتصاد کی په دغو ټولو تغییراتو باندی د هغو د ټولو جزییاتو سره مسلط شی. تر ټولو ستر کار چی شویدی هغه دا دی چی د دغو تغییراتو قوانین کشف شویدی او د دغو تغییراتو او د هغو د تاریخی پرمختګ عینی منطق په عمده او په اساسی توګه ښودل شویدی» ***.

---

* و . ای. لېنین. کلیات، ۳٤ ټوک، ۳۷٦ مخ.
** و . ای. لېنین. کلیات، ۳۵ ټوک، ۲۸۱ مخ.
*** و .ای.لېنین. کلیات، ۱۸ ټوک، ۳٤۵ مخ.

د اقتصادي بدلون ددې منطق په وسیله او ددې منطق په قوانینو سره کیدلی شي چې له پخوا څخه وویل شي چې ټولنیز پرمختګ به په کوم لوري باندې روان شي او کومو نتیجو ته به ورسیږي. مګر دا خبره لا امکان نه برابروي چې ټول حقایق چې د حوادثو لړۍ څنې جوړیږي له پخوا څخه ولیدل شي.

د سوسیالستي انقلاب د حتمي‌والي او د پانګوالۍ د ضروري زوال پیشګوئي ممکنه ده ځکه چې هغه د ټولنیز پرمختګ د عمومي قوانینو څخه سرچینه اخلي. مګر دا ناممکنه ده چې له پخوا څخه وویل شي چې په کوم یوه هیواد کې به څه وخت انقلاب وشي او کومې مشخصې پیښې به پیدا شي.

په دې بنیاد په کار دی چې د تاریخي پرمختګ د عمومي لوري مخکې‌لید د ځانګړو پیښو او د هغو د پیدا کیدو د مودو د مخکې‌لید څخه بیل کړی شي. که چیرې د تاریخي پرمختګ د عمومي لورو په باره کې په وثاقت سره پیشګوئي کیدلی شي نو د ځانګړو پیښو په باره کې په زیات یا کم احتمال سره اټکل وهل کیدلی شي. معلومه ده چې د مارکسیزم لوسړیو پوهانو څو څو ځله د انقلاب د رارسیدلو د مودو په ټاکلو کې اشتباه کوله په داسې حال کې چې د تاریخي پروسې عمومي لوري یې په علمي لحاظ له پخوا څخه په دقت سره لیده. هغه څه چې د تاریخي پیښو په جزییاتو پورې تعلق لري نو هغوی معمولاً د هغو مخکې‌لید اصلاً ناممکن باله.

په دې مناسبت و. ای. لېنین ویلې و چې د راتلونکي انقلاب د دقیق وخت د اټکل کولو په کوشش باندې د ګوند د سیاست درول ناجایز کار دی. ددې خبرې معنی «د هغه څه په باره کې چې هیڅوک پرې‌خبر نه دي، په تشو اټکلونو» مشغولیدل دي. ګوند باید خپل سیاست په کلک علمي اساس باندې جوړ کړي.

آیا ددې خبرې معنی دا ده چې د مشخصو پیښو او د هغو د مودو مخکې‌لید ناممکن دی؟ البته چې نه. لکه څنګه چې د و. ای. لېنین مثال ښیي د پیښو د خپریدو په اندازه د مخکې‌لید د دقیق کولو امکان هم پیدا کیږي. ښایي چې د ۱۹۱۷ کال په شروع کې د فبرورۍ د انقلاب د برې څخه وروسته سمدستي هیچا او په هغه جمله کې لېنین هم دا نه شوه ټاکلی چې په روسیه کې به راتلونکی انقلاب اته میاشتې وروسته

بریالی شی. مګر لا د جولای د ورځو د پیښو څخه وروسته ګ. ک.
ارجونیکیډځی چې کله لېنین ته راغی چې په اختفاء کې پټېدو ته مجبور
شوی و نو د انقلاب له پیشوا څخه یې دا مفکوره چې په اطمینان سره
ویل شوی وه واورېده چې وسله‌وال پاڅون به په سپتمبر یا اکتوبر کې
ترسره شي. او کله چې پیښې دې تاریخي حد ته نژدې شوې نو لېنین
د مرکزي کمیټې په نامه پخپل مشهور لیک کې چې د اکتوبر په ۲٤
نیټه لیکل شوی و داسې بیان وکړ چې د همدا نن باید په کار پیل
وشي او سبا ته به ناوخته وي.

په دې ترتیب د انقلابي پراکتیک په پروسه کې د تاریخي پرمختګ
د عمومي لوري مخکې‌لید په دقت سره تاکل کېږي. مارکسیستي ګوند د
مبارزې په جریان کې د اوضاعو په هراړخیزه مطالعه سره کولی شي چې
د راتلونکې زماني هم تر ټولو مهمې پیښې او هم د هغو د رارسیدو
پیشګویي وکړي.

د دغسې امکان په منلو کې له اپورتونیستي تکتیک څخه د مارکسیستي
تکتیک یو خصوصیت پروت دی. له فولمار څخه نیولې د اپورتونیزم
زیاتره نمایندګان د «پیشګویۍ» پر ضد سره یوموټي شول او په قطعي
توګه یې د نن ورځې د غوښتنو د سنجش سره سم د ګوند د تکتیک د
ترتیبولو بلنه ورکوله*. له هغوی څخه ځینو کوشش کاوه چې د تاریخي
پیښو د علمي مخکې‌لید پخپله امکان هم رد کړي. په دې اساس مثلاً د
اپورتونیزم یو بنسټ ایښودونکی ای. بیرنشتین د علمي سوسیالیزم
امکان رداوه. هغه لیکلي و چې «د راتلونکو پیښو مخکې‌لید تل تر یوې
اندازې پورې تخیل دی. د هر رښتوني علم اساس تجربه ده او علم
د پوهې په راټولولو سره خپله ودانۍ جوړوي. سوسیالیزم خو د راتلونکې
ټولنیز ساختمان په هکله تعلیمات دي او په همدې علت د هغه تر ټولو
مهم خصوصیات په جدي علمي لحاظ نه شي ټاکل کیدلی» **. وروسته د

---

* «Protokoll über die Verhandlungen des Parteitages des Sozialdemokratischen Partei Deutschlands. Abgehalten zu Erfurt». Berlin, 1891, S. 185.

** ای. بیرنشتین. آیا علمي سوسیالیزم امکان لري؟ ادیسه، ۱۹۰٦
کال، ۲۸ مخ، په روسي خاوره کې «علني مارکسیستانو»، «اکونومیستانو»

تش په نامه «اندوکتیف سوسیالیزم» پلویانو چې عقیده یې درلوده چې سوسیالیزم باید هرومرو د نن ورځې په تجربه چې هم د پرونۍ تجربې او هم د سبا ورځې د تجربې څخه توپیر لري اتکا وکړي د دغو دلایلو پیروي وکړه.

د «اطریشي مارکسیزم» یوه لارښوونکي ک. رینر ویلي و چې «تجربه لوسرنی، تعیین کوونکی او هره ورځ نوي پدیده ده چې تر اوسه پورې په دې شکل سوجوده نه وه. ځکه خو نو علم تل باید د تجربې پیروي وکړي او د هغې سره سم ځان اصلاح کړي. په نړۍ کې هیڅ یوه علم نه شول کولی چې ستره لېنینی تجربه مخکې وګوري، سربیره پر دې یې نه شول کولی چې پخپله تجربه کوونکي هم له پخوا ورګوري. نوې تجربه، هره نوې تجربه علم ته پراختیا ورکوي او هغه بدلوي. دا به اشتباه وي که چیرې موږ د علم له خوا د ترلاسه شوو معلوماتو په اساس باندې کوشش وکړو چې هغه څه وټاکو چې موږ به یې په آینده کې درک کړو او دا چې موږ څنګه باید عمل وکړو. دا یوازې اوضاع او وخت فیصله کوي». مارکسیزم «تجربوي علم دی خو فلسفي ملاحظه نه ده او اصلاً داهیت نه دی» *.

مګر د مسئلې په دغسې طرح کې دا خبره مجهوله پاته کیږي چې ولې د حال له تجربې څخه د مستقبل دپاره نتیجې نه شي اخیستل کیدلی؟ البته د هرې تاریخي دورې تجربه ځانته خصوصیت لري مګر دا اصلاً د نورو د ورو دپاره د هغه عبرت نه پیرته کوي. ټوله خبره په دې کې ده چې دا تجربه په کورکورانه ډول نه بلکه په تخلیقي طرز او د هغو تغییراتو مطابق چې په رښتوني ژوند کې پیښیږي په نظر کې ونیول شي او استفاده ترې وشي.

په دې باره کې چې علم باید د تجربې پیروي وکړي کومه چې زموږ په تیورتیکي تصوراتو کې اصلاحات راوړي سمه مفکوره د ک. رینر له خوا بې‌معنی خبرې ته یعنې د ټولنې په باره کې د علم او د علمي مخکې‌لید څخه د انکار تر حده پورې رسول کیږي. په دې ضمن کې

---

* K. Renner. Ist Marxismus Ideologie oder Wissenschaft? — «Der Kampf», 1928, №6, S. 252 — 253

او نورو د دغسې نظریې تبلیغ کاوه. مثلاً س. بولګاکوف. پانګوالی او کرهنه. ۲ ټوک. سان‌پتربورګ، ۱۹۰۰، ۴۵۷ — ۴۵۸ مخونه وګورئ.

نوموړی په ړته تاریخ تحریفوی او وایی چې ګنې ستره لېنینی «تجربه» چې دی یې د اکتوبر انقلاب بولي پخپله د تجربې د تنظیمونکی له خوا نه وه پیش‌بینی شوی. برعکس د اکتوبر د ستر سوسیالستی انقلاب تجربه ښیی چې هغه انقلابی ګوند چې په مارکسیزم٭ باندی سنبال شوی وی ددی توان لری چې د حوادثو اساسی جریان پیشګوییی کړی او هغه سوق کړی. لکن خبره په همدی کی ده چې ک. رینر کوشش کوی چې ددی تجربې عمومی اهمیت رد کړی او د هغې بین‌المللی او انترناسیونالستی ارزښت شنډ کړی*. ځکه خو نوموړی د تاریخی ریلتویزم دریځ غوره کوی چې د هغه سره سم هره تجربه یوازی د نن ورځی دپاره ګټوره وی. دا پرته د اپورتونیزم څخه چې ټول تال عمل د اوسنۍ شیبې تابع کوی او له راتلونکی زمانی څخه مخ اړوی بل شی نه دی. د اپورتونیزم پر خلاف مارکسیزم او لېنینیزم تل نه یوازی د تاریخی جریان د مخکې‌لید د امکان بلکه د هغه د ضرورت دفاع کوله.

مارکسیستی تکتیک هم د ښی اړخ د اپورتونیزم چې لنډپاریتوب او یا حتی ژندوالی یې خصوصیت شمېرل کېږی او هم په تجریدی توګه د حد څخه د وړاندی تګ او د واقعیت څخه د تښتې په نامه انقلابی جدا کیدو سره مخالفت لری. دا تکتیک د حال په سنجش کی واقعیت بینی د راتلونکی زمانی د کنټرول د قدرت یوځای کوی.

و. ای. لېنین په ټینګار ویلی و چې «موږ په دې باندی نه شو قانع کیدلی چې زموږ تکتیکی شعارونه له حوادثو څخه ییرته پاته شی او د هغو د ترسره کیدو څخه وروسته ځان ورسره تطبیق کړی. موږ باید زیار وباسو چې دا شعارونه موږ وړاندی بوزی، زموږ راتلونکی لاره روښانه کړی او موږ د اوسنیو مستقیمو وظیفو په نسبت نور هم اوچت کړی. د پرله‌پسی او کلکی مبارزی په مقصد د پرولتاریا ګوند کله کله

---

* په همدغه اقتباس شوی مقاله کی ک. رینر ویلی و چې «هماغومره سوسیالیزمونه» باید وی «څومره چې په نړۍ کی دولتونه او هیوادونه موجود دی» («Der Kampf», 1928, №6, S. 247)، او په خپله وروستۍ رساله کی «نوی نړۍ او سوسیالیزم» ده ویلی دی چې نه یوازی هر هیواد بلکه هر وخت خپل «ځانته مارکسیزم» لری. (K. Renner. Die neue Welt und Sozialismus. Salzburg, 1946, S. 8-9)

ځیل تکتیک نه شي ټاکلی. هغه باید پخپلو تکتیکي فیصلو کې د مارکسیزم اصولو ته وفاداري د انقلابي طبقې د مترقي وظیفو د سم سنجش سره یوځای کړي» *.

د وړاندې پیښو د لیدلو دپاره په کار دي چې د پدیدو په ماهیت کې سرې ورننوزي او د هغو باطني تضادونه وپیژني.

هغه ځا ته چې د پدیدو په سطحې مشاهداتو باندې بسیا کیږي آینده زمانه خامخا د تیرې او اوسنۍ زمانو ساده تکرار ښکاریږي. د دې نظریې پلویان عقیده لري چې هر څوسره چې یوه پیښه په تیره زمانه کې زیاته تکراریږي په هماغوسره زیات ډاډ سره په آینده کې د هغې د پیښیدو انتظار باید وایستل شي. د ژوند له مطالعه کولو سره په دغسې برخورد کې هغوی د ژوند ماهیت ته ځان نه رسوي په کوم کې چې د زاړه ژوند د ردولو انګیزه پخیږي. ځکه خو نو هغو تنګ‌نظرانو ته چې د پدیدو په سطح کې ښویږي د زاړه ژوند تهلکه د توقع پر خلاف او د قانونمندۍ اخلال ښکاریږي. هغوی د دې توان نه لري چې پیښې د هغو په انکشاف کې درک کړي. دا خبره و. ای. لېنین په کراتوسراتو کړیده. د روسیې د سوسیال دموکرات کارګرې ګوند په څلورمه کنګره کې پخپله وینا کې لېنین د منشویزم د یوه نماینده په باره کې ویلي و چې «هغه د اوسنۍ شیبې په وړاندې سر ټیټوي، دې یوازې هغه پدیدې ویني چې په سطح کې پرتې دي او هغه څه چې په ژوره کې پیښیږي نه ویني. دې پدیدې د هغو په انکشاف کې نه مطالعه کوي » **. د دې پر خلاف په کار دي چې هغه پروسې راوسپړل شي چې د شي په ژوره او ماهیت کې پیښیږي، چیرې چې معمولاً هغه قواوې ټینګیږي چې د پدیدې د زړو شکلونو او قشرونو د موقتي حفاظت په صورت کې یوه پدیده ردوي. «ځکه خو نو مارکسیستان تر ټولو لومړې د انقلابي دوران راتګ پیشبیني کوي او د خلکو په ویښولو لاس‌پورې کوي او لا هغه وخت چې کله تنګ‌نظران د صادقو خدمتګارانو د مریيتوب په خوب کې ویده وي ناقوس شرنګوي» ***.

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۱۱ ټوک، ۱٤۱ مخ.

** و. ای. لېنین. کلیات، ۱۲ ټوک، ۳۷٤ مخ.

*** و. ای. لېنین. کلیات، ۱٤ ټوک، ۱۵۹ مخ.

لکه څوره چې په سیاست کې د واقعیت سره د جامد او انقلابي برخورد نکر لیدل کېږي په بل هیڅ شي کې نه لیدل کیږي. اپورتونیستانو په دې باره کې عقیده چې د پانګوالۍ د نظام موجودیت حتمي دی او دا چې په سیاسي او اقتصادي مناسباتو کې ټول شیان «د پخوا په شان» پاته کیږي تل د «واقع بینانه برخورد» په ځای وړاندې کوله او په دې کې یې بلشویکان په «تخیل پرستۍ» ملزم کول. و. ای. لېنین لیکلي و چې «هر ډول اپورتونیستان ددې سره علاقه لري چې سوږ ته ووایي چې له ژوند څخه تعلیم واخلئ. له بده مرغه د هغوی مطلب له ژوند څخه د سولې دورانونه، د رکود وختونه دي چې په هغو کې ژوند ورو ورو پرمخ ځي. دا ړانده خلک تل د انقلابي ژوند له درسونو څخه بیرته پاته کیږي. د هغوی بې ژونده دستورونه تل د انقلاب د طوفاني بهیر څخه چې د ژوند د تر ټولو ژورو ایجاباتو ښکارندوی شمیرل کیږي او د ولسي پرګنو تر ټولو اصلي ګټې څرګندوي تل وروسته پاته کیږي» *. «هغوی د مارکسیستي ریالیزم د انقلابي دیالکتیک سره چې د مترقي طبقې په رزمي وظیفو ټینګار کوي او په موجودو حالاتو کې د هغو د نسکوروولو عناصر کشفوي مخالف دي» **. په دغو کلماتو کې د تاریخ مارکسیستي تفهیم په ډیر ښه ډول سره څرګند شویدی. د ماضي او حال د مطالعه کولو څخه پرته مستقبل نه شي معلوسیدلی. مګر مستقبل لکه څنګه چې سطحي مشاهداتو ته ښکاریږي نه یوازې د حال دوام شمیرل کیږي بلکه هغه ردوي هم.

په حال کې د مستقبل د مشخصاتو لیدل او په رښتوني ژوند کې نه یوازې د هغو قواو چې پخواني حالات ساتي بلکه د هغو قواو چې پخواني حالات له منځه وړي او نوي حالات ایجادوي د لیدلو توان د مستقبل د مخکې لید دپاره امکان برابروي.

ددې سره سم یوځای دا هم څرګنده ده چې د ټولنې د پرمختګ په بیلا بیلو تاریخي سرحلو کې د نوي زماني د عناصرو د تکامل درجه قطعاً یورنګه نه وي. ځکه خو نو د علمي پیشګویي حدود پخپله د ټولنیزو مناسباتو په تکامل او په دې پورې تعلق لري چې په حال کې د

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۱۱ ټوک، ۱۹۱ مخ.
** و. ای. لېنین. کلیات، ۱۱ ټوک، ۱۳۷ مخ.

مستقبل عناصرو تر کومی اندازی پوری تشکل سوندلی دی. د تاریخ داسی دوری هم شته چی دغسی عناصر پکی پاخه شوی نه دی او په دی بنیاد مستقبل یوازی اټکل کیدلی شی مگر په علمی طرز د هغه پیشگویی نه شی کیدلی. ځکه د عمل د سمی لاری د ټاکلو دپاره تر ټولو زیاته مهمه ده چی نه یوازی هغه څه ولیدلی شی چی عملاً د هغه مخکی‌لید ممکن دی بلکه په معقول ډول هغه څه په نظر کی ونیول شی چی د هغو پیشگویی نه شی کیدلی. و. ای. لینین په ټینگار ویل چی د دولت د زوال د امکاناتو په برخه کی باید د زوال د وخت او مشخصو شکلونو مسئله ناحل شوی پریښودل شی ځکه چی لا په هغه وخت کی د دغسی مسئلو د حل کولو دپاره مواد موجود کیدلی نه شول. کله چی «د کینړ اړخ کمونستانو» کوشش کاوه چی وړاندی تیر شی او د دولت ژر تر ژره زوال اعلان کړی و. ای. لینین ددی سره سخت مخالفت کاوه چی «په دی باره کی اوس خبری کول وختی دی. څه وخت به دولت په زوال پیل وکړی؟.. پخوا تر پخوا د دولت د زوال اعلامول به د تاریخی آینده لاری څخه تخلف وی» *. سبجکتویزم ته د لاری ورکول او د آینده په باره کی په پوچو مفکورو سره د پرمختگ رښتونی پروسه تعویضول له جدی خطر سره د گوند د مخامخ کولو په معنی دی.

د هغو عینی شرطونو تر څنگ چی د مخکی‌لید امکان او حدود ټاکی څرگنده خبره ده چی د ذاتی شرطونو اهمیت هم لوی دی چی هغه عبارت دی د مخکی‌لید د ذات ټولنیز موقف، د هغه نړی‌لید، پوهه، سیاسی تجربه، د حوادثو د تحلیل قدرت، ځیر او بالاخره تاریخی فراست. د دغو خصوصیتونو زیات یا کم پوره غبرگیدل په تاریخ کی وتلی شخصیتونه راوباسی. بی‌ځایه نه وه چی گ. و. پلیخانوف ستر انسان هغه انسان باله چی د نورو کسانو په نسبت لری گوری او د نورو په نسبت زیاته تلوسه لری **.

د شخصی خصلتونو سره یوځای د ټولنیز پرمختگ د مخکی‌لید په قدرت باندی د ذات طبقاتی موقف هم ستره اغیزه کوی. د کورنۍ جگړی

---

* و. ای. لینین. کلیات، ۳۶ ټوک، ۶۶ مخ.

** گ. و. پلیخانوف. منتخب فلسفی آثار، په پنځو ټوکونو کی، ۲ ټوک، ۳۳۳ مخ.

په پای کې و . ای. لېنين د امپریالستانو چې د ځوان شوروي جمهوريت پر خلاف يې په مداخله لاس‌پوري کړی و د پلانونو د شکست په باره کې ويلي و چې «سوږ په څرګنده وينو چې خبره په څه شي کې وه. سوږ په تر ټولو اساسي شي کې حق په جانب و. سوږ په خپلو پيش‌بينيو او پخپلو حسابونو کې حق په جانبه شو» *. «زموږ حساب چې مقياس يې ستر دی د هغوی د حساب په نسبت زيات معقول دی. او ددی خبری علت دا نه دی چې هغوی داسې خلک نه لري چې وکولی شي چې سم سنجش وکړي... بلکه علت يې دا دی چې کله چې سړی د تهلکې په لاره کې ولاړ وي سم سنجش ناممکن دی» **.

مګر سره ددی هم څرګنده ده چې انقلابي طبقاتي موقف پخپله لا د موفقانه مخکې‌ليد ضمانت نه کوي. هغه يوازې په زيرکۍ سره د کتلو امکان برابروي او د پديدو د ارزيابۍ سره د سم برخورد امکان آسانوي. مګر د دی دپاره چې دا امکان واقعيت ته واوړي د ژوند جدي، سنجول شوی او معقول تحليل په کار دی. مطلوب د واقعيت په حيث نه منل، تمايل او متقابل تمايل په هراړخيزه توګه په نظر کې نيول د ټولنيز ژوند د علمي درک شرط شميرل کيږي.

په دی مفهوم چې ګنې بورژوازي مفکوره جوړوونکي او سياست‌چلوونکي اصلاً د مخکې‌ليد توان نه لري د لېنين د خبرو تلقي کول هم سادګي ده. د هغوی په منځ کې ګڼ شمير بافراست او مجرب سياست‌چلوونکي او داسې کسان شته چې «کولی شي چې سم سنجش وکړي». مګر په ځانګړو پيښو کې د قواو د تناسب د سم سنجش سره د تاريخ د بيرته ګرزولو دپاره د هغوی هلې ځلې د هغوی حسابونه هروسرو ناکاموي. مثلاً په لوسړۍ او دوهمه نړيوالو جګړو کې د امپرياليستانو د حسابونو او پلانونو ناکاميدل او نور حقايق په دی باره کې شاهدي ورکوي. سربيره پر دی دی حقيقت ته هم توجه کول په کار دي چې بورژوازي مجرب او محيل دښمن دی او دا چې نه يوازې سوږ بلکه زموږ دښمنان هم له تاريخي تجربې څخه درس اخلي او د تاريخ درسونه د هغوی دپاره بې‌ارزښته نه دي. د مارکسيستانو او لېنينيستانو وظيفه په دی

---

* و . ای. لېنين. کليات، ٤٤ ټوک، ۲۹۳ مخ.

** و . ای. لېنين، کليات، ٤٤ ټوک، ۳۰۳ مخ.

کې ده چې د واقعیت د علمي تحلیل او د هغه د انکشاف د تمایلاتو د مخکې‌لید په منظور د هغو برترېو څخه استفاده وکړي چې د خپل مترقي ټولنیز موقف او خپل مترقي نړۍ لید له برکته يې ترلاسه کوي.

## ۳. مخکې لید، پیشګویي، پلان جوړول

مخکې‌لید د علم البته یوازنۍ نه مګر یو تر ټولو مهمه وظیفه شمېرله کېږي. دا وظیفه د علم د عملي وظیفې او په ژوند کې د علمي موفقیتونو څخه د هغه د استفادې په تمایل پورې مربوطه ده. انسان د خپلو اعمالو په نتیجو سره کولی شي چې په مصلحت‌آمیزه توګه په چاپیریاله نړۍ باندې اغیزه وکړي.

علم چې ماضي او حال توضیح کوي او د مستقبل پیشګویي کوي انسان ته د نړۍ د بدلولو په غرض غښتلې وسیله په لاس ورکوي. د پدیدو د توضیح کولو او مخکې‌لید قدرت تر ټاکلې اندازې پورې د علم د پخوالي محک شمېرل کېږي. که چېرې علمي تیوري د سمې پیشګویۍ امکان برابروي نو له هغې څخه په عمل کې استفاده کېدلی شي.

البته یوازې مخکې‌لید ددې دپاره کفایت نه کوي چې د طبیعت قواوې او د ټولنیز پرمختګ قواوې د ځان تابع کړی شي. ددې دپاره نه یوازې پوهه بلکه عملي فعالیت او د طبیعت او د ټولنې بدلون په کار دی. مګر په تدریجي ډول د دغسې بدلون د ترسره کولو دپاره په کار دي چې د ترسره کېدونکو فعالیتونو نه یوازې نژدې بلکه زیاتې لرې نتیجې هم په نظر کې ونیول شي.

معلومه ده چې انساني فعالیت د حیواني فعالیت څخه په دې کې توپیر لري چې انسان په آګاهانه توګه فعالیت کوي او له پخوا څخه د ځان په وړاندې ټاکلې هدف ږدي. لکه څنګه چې ک. مارکس ویلي و د کار پروسه د مصلحت‌آمیزه فعالیت پروسه ده چې په هغه کې نتیجه ترلاسه کېږي او دا نتیجه لا په اوله کې د کارکوونکي په شعور کې د هغه د شعوري هدف په حیث یعنې په ایدیالي توګه ثبت شوې وي. مګر سره ددې چې د تولید هر عمل په آګاهانه توګه ترسره کېږي او ځانګړي انسان په اکثرو مواردو کې په آګاهانه طرز فعالیت کوي په عمومي صورت ټولنیز ژوند له اوله اصلاً آګاهانه پروسه نه شمېرل کېده. هر

ځومره چې انسانان له حیواناتو لرې کیدل په هغومره اندازه د هغوی اعمال شعوري کیدل او په هماغه اندازه په زیات قدرت سره هغوی کولی شول چې د ژوند چاپیریال شرطونه د ځان تابع کړي. مگر سره ددې هم د ماقبل سوسیالستي ټولنې ټول تاریخ په عمومي او کلي توگه پر خلکو باندې دغیرمتشکلو او نه‌ایل کیدونکو قواو د تسلط څخه ډک و او دا قواوې د هغو قواو په مقایسه چې د پلان له مخې په حرکت راوستل کیدلې زښتې ډیرې غښتلې وې. د ف. انگلس په قول ددې علت تر ټولو لوړې دا و چې د خلکو تر ټولو مهم تاریخي فعالیت یعنې ټولنیز تولید هغه فعالیت چې هغوی یې له حیواني حالت څخه انساني حالت ته پورته کړل د غیرمتشکلو قواو تابع و. یوازې د ټولنیز تولید آگاهانه تنظیم د نعمتونو د منظم ویش سره یعنې سوسیالیزم او کمونیزم ته انتقال ددې دپاره شرطونه برابروي چې انسانان وکولی شي په آگاهانه توگه خپل ټول ټولنیز ژوند ته تغییر ورکړي، د تاریخ غیر متشکلې قواوې د ځان تابع کړي تر څو چې هغوی په دې برخه کې هم په قطعي توگه په حیواني نړۍ باندې تفوق پیدا کړي او وکولی شي چې خپل رښتوني بشري تاریخ شروع کړي. په دې ترتیب د ټولنې تاریخ چې په عمومي ډول سره وځیړل شي د غیرمتشکلو قواو د تسلط څخه آگاهۍ ته د تدریجي او طولاني انتقال د پروسې په حیث رابرسیره کیږي.

غیرمنظم‌والی نه یوازې هغه وخت لیدل کیږي چې کله خلک د خپل فعالیت نتیجې مخکې له مخکې نه ویني بلک تل هغه وخت هم رابرسیره کیږي چې کله د خلکو د ژوند پخپله شرایط (مثلاً په اوله کې د تولید د پرمختگ زښته ډیره ټیټه سویه، وروسته د تولید په وسایلو شخصي مالکیت او نور) خلک دې ته اړ باسي چې پرته له دې چې د لرې راتلونکې گټې په نظر کې ونیسي یوازې د خپلو فعلي گټو د سنجش سره سم فعالیت وکړي. مگر د خلکو د تولیدي فعالیت د پیمانې د زیاتیدو او د کار د پروسو د یوځای کولو د انکشاف مطابق پخپله ژوند په لا زیات قوت سره د ټولنې د حیاتي فعالیت آگاهانه تنظیم ایجابوي.

دا ضرورت د دوو مرتبطو شرطونو یعنې له یوې خوا د انسان له خوا د طبیعت د لاندې ایستلو د ترلاسه شوې سویې او له بله

پلوه د تولید د پروسو د اشتراکی کولو د معاصرو پیمانو مولود شمیرل کیږی.

د ټولنی او طبیعت د متقابلی اغیزی د معاصری مرحلی خصوصیت په دی کی پروت دی چی د ځمکی د کری ټوله سطح د انسان د فعالیت زمینی ته اوښتی ده او انسان د ځمکی د قشر د تقریباً ټولو موادو او د طبیعی انرژۍ له ټولو ډولونو څخه استفاده کوی او د ځمکی له ساحی څخه بهر کیهانی فضا ته وزی. مگر د انسان د فعالیت د پیمانی د زیاتیدو تر څنگ پر طبیعی چاپیریال باندی د انسان د بی کنتروله اغیزی خطر هم زیاتیږی. په طبیعت کی د بیلا بیلو پروسو تر منځ د توازن ورانیدل، د فضله صنعتی موادو، رادیوا کتیفی موادو او نورو شیانو په دوسره مقدار سره د اوبو او هوا ککړیدل چی پخپله د بشر موجودیت ته خطر پیښولی شی د انسان د همدی فعالیت عاقبت شمیرل کیږی.

د دغسی خطرونو څخه د بچاو په منظور په کار دی چی د یوه تمام واحد په حیث په کوم کی چی ټول شیان یو له بله سره ارتباط لری له طبیعت سره برخورد وشی. د علمی او تخنیکی انقلاب په اثر پر طبیعت باندی زموږ د اغیزی د نتیجو د پیشگویۍ د ضرورت په باره کی مسئله خاص اهمیت پیدا کوی.

د تولید د انکشاف او د علمی او تخنیکی انقلاب د ټولنیزو عواقبو (مثلاً د سترو ښارونو د لوییدو او نورو) د مخکیلید تقاضا هم ورځ په ورځ زیاتیږی. د تولید د پروسی زیاتیدونکی یوځای کول د ټولنیز تنظیم لا زیاته کلکه غوښتنه کوی. لا ف.انگلس او وروسی و . ای. لېنین د شرکتونو او اتحادیو جوړیدل په تولید کی د منظموالی د راوستلو او د ټولنیز تولید د منظم سیستم د ضرورت د حقیقی منلو په حیث تلقی کول. «لکه د پخوا په شان نه شی کیدلی چی پانگوالی د نظم د نشتوالی په حیث تلقی کړی شی. دا خبره زړه شویده. که چیری شرکتونه او اتحادیی وجود لری نو د نظم نشتوالی نور وجود نه لری»*. دا حقیقت په زیاته پیمانه سره په دولتی انحصاری پانگوالۍ پوری اړه لری. د لوړی نړیوالی جگړی په کلونو کی په آلمان کی

---

* و . ای. لېنین. کلیات، ۳۱ ټوک، ۳۵۵ مخ.

د دولتي انحصاري پانګوالۍ د تعريف په ترڅ کې و. ای. لېنين ليکلي و چې د اوضاعو د مجبوريت څخه «څه دپاسه پنځوس مليونه وګړي له يوه سرکز څخه د ټول اقتصادي ژوند تنظيمولو ته راوليږديدل». «اوس موږ د پانګوالۍ تر ټولو اوچت منظم شکل ته د هغه مستقيم اوښتون وينو»*. او که څه هم په آينده کې هغه سوقتي شرطونه چې په جګړه پورې يې ارتباط درلود او پانګوالي يې مجبوروله چې په منظمه توګه اقتصاد ته رونق ورکړي د دولتي انحصاري پانګوالۍ پرمختګ او د توليد د يوځای کيدلو زياتيدونکي پروسه په لا زياته اندازه پانګوالان دې ته اړ باسي چې د اقتصادي ايجاباتو سره توافق وکړي.

د معاصري پانګوالۍ په شرطونو کې تش په نامه فتورولوژۍ چې د خاص علم د رول د لوبولو ادعا لري پراختيا موندلې ده. زياتره بهرني ليکوال حتی د فتورولوژيک «رونق» يا «چاودنې» په باره کې خبرې کوي. ددې «رونق» علتونه په مختلفو ډولونو څرګنديږي مګر زموږ په نظر هغه په اساسي ډول دوه شکلونه لري. لومړی د اقتصاد د دولتي انحصاري تنظيم ايجابات په تيره بيا د علمي او تخنيکي انقلاب په شرطونو کې د ګڼ شمير پيشګويانو او پروګرامونو جوړول او په دې بنياد په دې مقصد د ضروري تخنيک ايجادول غواړي. دوهم دا چې د پانګوالۍ پلويان کوشش کوي چې له فتورولوژۍ څخه د هغې ايديولوژۍ په حيث استفاده وکړي چې د سوسيالستي هيوادونو د تيورۍ او پراکتيک او د هغو د اقتصادي او کلتوري پرمختګ د پلان جوړولو سوفقانه مثال ته چې خپل قوت او حياتي ارزښت يې ښودلی دی مقابله کوي.

بورژوازي فتورولوژي ددې توان لري چې د پيشګويۍ د تخنيکي طرزونو له جوړولو سره سرسته وکړي مګر په عمومي صورت د کلک علمي اساس څخه محرومه ده. د «فتورولوژۍ» د کلمې مؤلف د لويديز آلمان پروفيسور او. فليختهايم که چيرې د پانګوالۍ د باطني تضادونو په لرې کولو کې د هغې رول نه ليده نو اقلاً تر يوې اندازې پورې

---

* و. ای. لېنين. کليات، ۳۰ ټوک، ۳٤۷ مخ؛ ۳۱ ټوک، ٤٤٤ مخ.

یې د دغو تضادونو په کمولو کې خو لیده. بورژوایي فتورولوژي کوښښ کوي چې باطني متضاده وظیفه سرته رسوي یعنې له یوې خوا د پیشگویۍ په مرسته د علمي او تخنیکي انقلاب د غوښتنو مطابق د اقتصادي او ټولنیزو مناسباتو له توافق سره مرسته وکړي او له بله پلوه له ټولنیزې پیشگویۍ څخه په ایدیولوژیکو مقاصدو کې استفاده وکړي چې د هغو مطلب د پانگوالۍ د مقدراتو د «جاویدانۍ» کولو، په «ممتازه طبقه» او غیرتخلیقي پرگنه او داسې نورو عناصرو باندې د ټولنې د ویش د حتمي‌توب استدلال دی. په همدې علت بورژوایي فتورولوژیستان اکثراً متهورانه طبیعي علمي پیشگویۍ د ټولنیزو پروسو د پرمختگ په برخه کې د محافظه کارانه او برملا ارتجاعي نظریو سره یوځای کوي.

سوسیالیزم پیشگویي په علمي اساس دروي او د ټولنې د گټو له نقطه‌نظره پیشگویۍ ته معقول هدف او د هغه د حصول وسایل تهیه کوي. د سوسیالیزم خصوصیتونه نه یوازې د تولید د منظم ترتیب عمومي پیمانه ده بلکه هغه د پانگوالۍ په مقایسه په اصولي لحاظ بل هدف لري د کوم په نامه چې دا ترتیب ترسره کیږي. د پلیخانوف له خوا د گوند د پروگرام په جوړه شوي مسوده باندې لینن پخپلو کتنو کې لیکلي و چې «لا شرکتونه هم» د ټولنیزې تولیدي پروسې منظم تشکیل «برابرولای شي» مگر منتها په سوسیالیزم او کمونیزم کې درسته ټولنه د تنظیم سایق شمیرل کیږي چې تولیدات «د ټولنې د ټولو غړو د پوره سوکالۍ د تامینولو او آزادانه هرا‌ړخیز انکشاف دپاره» عیاروي*.

د معاصرو تولیداتو د ایجاباتو په اساس په سوسیالستي ټولنه کې واحده عمومي دولتي پلان جوړونه حیاتي ضرورت گرزیدلی دی. سوسیالیزم د مولده قواو او په ټولنیزو مناسباتو کې له هغه څخه د پیدا شوو بدلونونو د پرمختگ دسته جمعي پلان جوړول ایجابوي. ددې دپاره چې پلان په موفقانه توگه جوړ شي په کار دي چې آینده ته وکتل شي، د تولیداتو، علم او په کلي توگه د ټولنیز ژوند د پرمختگ پیش‌منظر وټاکل شي.

---

* و. ای. لینن. کلیات، ۶ ټوک، ۲۳۲ مخ.

د اقتصادی او ټولنیز پرمختګ د علمي پیشګویۍ چې د عمومي دولتي اقتصادي پلان اساس یې تشکیلاوه لوسړی مثال د ملي اقتصاد د برقي کولو پلان و چې د و. ای. لېنین د مفکوري له مخې جوړ شوی و. په نوموړي پلان کې چې د ګویلرو په نامه یادیده د علمي تخنیکي او ټولنیز پرمختګ معلومات سره توحید شوي و. دا پلان د هغو پنځه کلنو پلانونو چې ترسره کولو یې د شوراګانو د هیواد ټولي خیرې ته تغییر ورکړ نمونه شمیرل کیده.

هرڅومره چې ټولنه د علمي او تخنیکي پرمختګ لا اوچتې پوړۍ ته ځان ورسوي په هماغه اندازه د هغې د نور پرمختګ د امکاناتو مخکې لید زیات اهمیت پیدا کوي. د سوسیالستي اقتصاد د پرمختګ ننۍ مرحله چې کله د هغه د سرعت، د ټولنیز تولید د موثرتوب د تر ټولو زیات اوچتوالي وظیفي سرته رسول کیږي د راتلونکو پلانونو په جوړولو کې د ملي اقتصاد د پرمختګ د تر ټولو مساعدو ډولونو د غوره کولو ایجاب کوي.

د مارکسیزم او لېنینیزم د بنسټ ایښودونکو علمي پیشګویۍ (مثلاً سوسیالیزم ته د انتقال د حتمي‌والي پیشګویي) زیاتره تیورتیک او سیاسي خصلت درلود. د ملي اقتصاد د پرمختګ پیشګویي په زیاتیدونکې اندازه د ټاکلو مقداري مشخصاتو برقرارول غواړي او دا کار د سیاسي اقتصاد د مسئلو په حل کولو (او همدغه‌رنګه په سوسیولوژیکو پلټنو کې) د ریاضي متودونو د استفادې څخه پرته ناممکن دی. همدا اوس د ریاضي متودونو په مرسته د تولید او استهلاک، تقاضا او عرضې او نورو د تناسب د موفقانه نقشو د جوړولو کار امکان لري. د الکترونیکي شمیرونکو ماشینونو څخه استفاده امکان برابروي چې د ملي اقتصاد د مؤثري اداري ډیري مغلقې مسئلې حل شي (مثلاً د باروړونکو کاروانونو لا زیاتې ګټوري لارې وټاکل شي، مادي او تخنیکي تجهیز تنظیم شي او داسې نور کارونه ترسره شي). ولې څرګنده خبره ده چې کیبرنیتیک د ټولنې د اداري د علم او ریاضي د سیاسي اقتصاد یا ټولنې‌پیژندنې ځای نه شي نیولی. کیبرنیتیک باید د ټولنې د اداري د علم او ریاضي باید د سیاسي اقتصاد یا سوسیولوژۍ خدمت ته وګمارل شي. په دې شرط به د کمي او کیفي تحلیل توحید

چې د ټولنیزو پدیدو د علمي پیشګویۍ د امکاناتو د زیاتو پراخولو توان لري لاس ته راوستل شي.

د بیلا بیلو مفهومونو چې په هغو کې په هر صورت د راتلونکي زماني په باره کې معلومات څرګندیږي مثلاً د علمي مخکښلید، پیشګویۍ او پلان جوړولو د ارتباط مسئله هم د پاملرنې وړ ده. ددې مسئلې په برخه کې مختلفې نظریې موجودې دي. موږ به پرته له دې چې په جزییاتو کې ورننوزو د پیشګویۍ او پلان جوړولو د ارتباط ځینې اړخونه راوسپړو. په سوسیالستي ټولنه کې پلان د ګوند د ټولنیز او اقتصادي سیاست عمده وسیله شمیرل کیږي. پلان د اقتصادي پرمختګ لوري د راتلونکي زماني د ساده پیشګویۍ په طرز نه بلکه د هغه پروګرام په حیث ټاکي کوم چې د دولتي او اقتصادي سازمانونو دپاره باید ترسره شي او د هغو دپاره د دستورالعمل حیثیت لري. ضمناً په دې کې په کاپیتالستي هیوادونو کې د اقتصاد د دولتي پروګرام جوړولو څخه چې د قاعدې سره سم یوازې مشورتي خصلت لري او د انحصاراتو سره د دولت د موافقو پر اساس ترسره کیږي د سوسیالستي پلان جوړولو یو توپیر پروت دی.

په سوسیالستي ټولنه کې پلان جوړول د پیشګویۍ چاره لکه څنګه چې کله کله پخوا په سطحي توګه ګمان کیده بې ځایه کوي نه. پیشګویي (هغه هم د پلان جوړولو په مقایسه د زیاتې اوږدې مودې دپاره) د عملي او په علمي اساساتو د بنا شوي پلان د جوړولو ضروري شرط دی. پیشګویي د علمي مخکښ لید یو ډول دی. په سختۍ سره کیدلی شي چې د دغو مفهومونو تر منځ ثابت حدود وټاکل شي. تر یوې اندازې په مشروطه توګه یوازې ویلی شو چې د علمي مخکښلید پرعکس چې په سوسیالستي ټولنه کې په عمومي ډول د ټولنې د پرمختګ (مثلاً د کمونستي ټولنې د جوړولو د لارو د مخکې لید) امکانات احتواء کولی شي پیشګویي یوازې کوچنۍ او مشخصې مسئلې حل کوي (مثلاً دا خبره چې تر ټاکلي زماني، مثلاً تر ۲۰۰۰ کال پورې به د هیواد د انرژۍ بیلانس څنګه وي، کوم وخت ځینې عملي مقاصد لکه د اداره شوي ذروي تعامل د ترسره کولو مقصد ترسره کیدلی شي، د کیهاني فضا د لاندې ایستلو په لاره کې دا یا هغه اقدامات کله پرځای کیدلی شي او داسې

نور). ددی دپاره چې د اقتصاد د رښتونی پلانی شوی او زیات مؤثر پرمختګ ضمانت وشی لازمه ده چې اقلاً د پلان د ترسره کیدو د مودی څخه ۵—۱۰ کاله وړاندی د ملی اقتصاد د پرمختګ ضروری پیشګویی وشی. پیشګویی نه یوازی زموږ د آګاهانه فعالیت چې په پلان کی تجسم مومی احتمالی نتیجې احتواء کوی بلکه په طبیعت او ټولنیز ژوند کی غیرمنظمی پروسی چې په آګاهانه طرز نه شی تنظیمیدلی یا یوازی تر یوی اندازی پوری تنظیمیدلی شی (مثلاً دموګرافی یعنی د نفوسو د زیاتیدو پروسی) هم په ځان کی مشتملوی. د ملی اقتصاد د راتلونکی پرمختګ د احتمالی لارو پیشګویی زموږ سره مرسته کوی چې د ټولنی دپاره تر ټولو مساعد پلان جوړ کړو.

د پیشګویی پرعکس دلته د لارښودنو، دستورونو او عمده عمومی ملاحظاتو د سیستم په حیث څیړل کیږی. د پلان جوړول د ټولنی په فعالیت کی تنظیموونکی آغاز شمیرل کیږی چې پیشګویی یې په یوازی سر نه شی تامینولی او نه یې تامینوی. په سوسیالستی ټولنه کی پلان نه یوازی د اقتصادی پرمختګ د ټاکلو نتیجو پیش‌بینی کوی بلکه تنظیموونکی قوه او د مشخص هدف د ترلاسه کولو محرکه قوه ده. همدغه وجه ده چې د پلانونو د ترسره کولو په جریان کی معمولاً د زیاتراپستونکو د پراخو پرګنو په ابتکار نوی منابع راسپړل کیږی. د پلان جوړولو د تنظیموونکی رول په اثر د غیرمنظم پرمختګ په مقایسه د علمی پیشګویی دپاره هم لا زیات امکانات پیدا کیږی.

هم پیشګویی او هم پلان جوړول دواړه د سوسیالستی ټولنی د ژوند د علمی لارښودنی عناصر دی. سوسیالیزم د اقتصادی او ټولنیزو پروسو د علمی لارښودنی امکانات برابروی او په عین زمان کی هغی غوښتنه کوی. ویل کیدلی شی چې پرته له دغسی لارښودنی څخه د ټولنیز سیستم په حیث د سوسیالیزم برتری په پوره توګه نه شی رابرسیره کیدلی او تحقق موندلی.

د ټولنی د پرمختګ علمی لارښودنه فقط د ټولنیزو پروسو د عینی ادراک او د هغو پر پرمختګ باندی د اغیزی د زیاتو مؤثرو وسیلو د اختراع کولو له برکته ترسره کیدلی شی. هره ټولنیزه پدیده که هغه د هیواد د کار د ذخیرو ویش وی یا د ټولنیز شعور د پرمختګ وضع او سویه وی — د ډیرو عواملو تر اغیزی لاندی

راځي او په خپل نوبت د ټولنې د ژوند په نورو اړخونو باندې تاثير کوي. مثلاً د هیواد په قلمرو کې د کار د ذخیرو ویش په تاریخي لحاظ د اوسیدونکو په میشت کیدو او لیږدیدو په لورو، په ځینو دموگرافیکو عواملو، په بیلا بیلو سیمو کې د اوسیدونکو د عایداتو په سویه، د هغوی د مادي او کلتوري اړتیاو د رفع کولو په درجه او داسې نورو خبرو پورې تعلق لري. د دغو عواملو څخه تر ټولو مهم عوامل کوم دي او څنګه کیدلی شي چې پر انسان مسلط شي — ددې او داسې نورو پوښتنو ځوابونه د علم په معلوماتو باندې د اتکا څخه پرته او د علمي جدي پلټنو څخه غیر نه شي پیدا کیدلی. او دغسې پلټنې باید نه یوازې د نن ورځې د پدیدو تر منځ ارتباط په سمه توګه څرګند کړي بلکه باید د هغو د راتلونکو تغییراتو د پیشګویۍ دپاره اساس جوړ کړي. هغه دساتیر چې د ټولنیزې پیشګویۍ څخه سرچینه اخلي په سوسیالستي ټولنه کې نیکې آرزوګانې نه پاته کیږي. دا ټولنه کولی شي چې د نوموړو دساتیرو په اساس پلانونه جوړ کړي او د هغو د عملي کولو په مقصد ضروري وسایل سره راټول کړي. د ټولنې د علمي لارښودنې سیستم باید د دساتیرو تجربوي آزموینه او د فعالیت د تصویب شوو پلانونو د عملي کولو او د ګټوروالي د درجې کنترول هم په ځان کې مشتمل کړي.

مارکسیزم او لېنینیزم د ټولو ټولنیزو مسئلو د حل کولو خبره په علمي تاریخي اساس باندې دروي چې هغه «یوازې د تیرې زمانې د توضیح کولو په مفهوم نه بلکه په جرئت سره د راتلونکې زمانې د پیشګویۍ او د زړور عملي فعالیت په مفهوم» دي*. د و. ای. لېنین له خوا د مارکسیستي تیورۍ دا ذکر شوي خصوصیت د ټولنیزو پروسو د پلټنو او د عملي دستورونو د طرح کولو سره علمي برخورد تاکي او د کمونستي ټولنې د جوړولو د اداره کولو دپاره ټینګ علمي بنسټ جوړوي.

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۲۶ ټوک، ۷۵ مخ.

## ۵ فصل

# د ټولنیز پرمختګ قوانین او د خلکو آګاهانه فعالیت

د ټولنیز پرمختګ د قوانینو درک کول چې په مخکینیو فصلونو کې مو د هغو په باره کې خبری وکړی نهایی هدف نه دی بلکه له هغو څخه د انسانانو په عملی فعالیت کې استفاده کیږی. ددی استفادی شرطونه کوم دی؟ د مسئلی د سم حل کولو دپاره تر ټولو دمخه په کار دی چې دا خبره توضیح کړی شی چې څنګه مارکسیزم او لېنینیزم د تاریخی پرمختګ د عینی قوانینو منل او د تاریخ په جریان باندی د خلکو د آګاهانه فعالیت ستر نفوذ سره یوځای کوی.

### ۱. د ټولنی په باره کې په ماقبل مارکسیستی تعلیماتو کې ددی مسئلی طرح کول

لکه څنګه چې وویل شول د ټولنی پرمختګ د طبیعت له پرمختګ څخه په دی کې توپیر لری چې په طبیعت کې یوازی طبیعی او بی‌شعوره قواوی عمل کوی په داسی حال کې چې ټولنیز ژوند د خلکو په ذریعه چې د شعور خاوندان دی، اراده لری او د ځانونو په وړاندی مشخص هدفونه او مقاصد ټاکی جوړیږی.

په دی مناسبت د ټولنیز علم په وړاندی د هغه د قوانینو د عینی خصلت مسئله راپورته کیږی. که چیری خلک پخپله د خپل تاریخ جوړوونکی دی او په عین زمان کې د آګاهو موجوداتو په حیث فعالیت کوی نو آیا تاریخی پرمختګ د عینی یعنی د خلکو د شعور څخه د خپلواکو قوانینو تابع دی؟

ددی قضیی په حل کولو باندی د مارکسیزم څخه مخکې د تاریخ فلسفی خواری کړی وی مګر نه یی شوای حل کولی. اکثرو مورخینو او فیلسوفانو چې د تاریخ په نسبت یی له مذهبی نظر

څخه انحراف کړی و عقیده درلوده چې خلک په آګاهانه توګه خپل ټولنیز مناسبات جوړوی او د خپل فکر له مخې د خپلو نظریاتو او مفکورو مطابق تاریخ ایجادوی.

د تاریخی پرمختګ په باره کی دغسی تصور په تر ټولو څرګنده توګه د «ټولنیز تړون» په ګڼ شمیر تیوریو کی ښکاره شو. د ګوبس، سپینوزا، لاک او روسو د «ټولنیز تړون» د تیوریو د غټ توپیر سره سره هغوی ټولو عقیده درلوده چې ټولنه د خلکو تر منځ د موافقی په نتیجه کی پیدا شوه. په دغسی نظریاتو کی منطقی خبره وه چې د بشریت ټول آینده پرمختګ د هغه د آګاهانه فعالیت د نتیجی په حیث وشمیرل شی.

د دغسی نظر د خاوندانو په عقیده که چیری تاریخ د خلکو د اکثریت د غوښتنی مطابق جریان نه درلود، که چیری بشریت له جګړو، ستم او مختلفو مصیبتونو څخه رنځ لیده، نو دا د خلکو د جعلی مفکورو نتیجه شمیرل کیده. ځکه خو هغوی د تاریخ د جریان د بدلون کلی (وسیله) د وګړو د نظریاتو او تصوراتو په اصلاح کولو کی لټوله. د اوولسمی پیړۍ انګریزی فیلسوف ت. ګوبس لیکلی و که چیری د بشری حرکاتو علتونه په همدومره دقت سره معلوم وای لکه څومره چې په هندسی شکلونو کی د ابعادو تناسب معلومیدلی شی نو عزت پرستی او حرص به له منځه تللی وای او انسانی نسل به په داسی توګه د دایمی سولی څخه خوند اخیستی وای چې هیڅکله به ورته ضرور نه وای چې په جګړه لاس پوری کړی*.

هرڅومره چې دغسی استدلال په زړه پوری هم وی یا هم د ټول تیر تاریخ سره مطابقت نه شی درلودلی. سره ددی چې خلکو د آګاهو موجوداتو په حیث فعالیت کاوه او پخپل وړاندی یی مشخص هدفونه ټاکل مګر د هغوی د فعالیت نتیجو د هغوی د نیتونو سره سمون نه خوړ. مثلاً انګریزی بزګرو چې د ګوبس د ژوند په زمانه، د اوولسمی پیړۍ د بورژوایی انقلاب په دوران کی یی د کروموبل د اردو اساسی برخه تشکیلوله او په قوت سره یی د انقلاب د بری

---

* ت. ګوبس. منتخب آثار په دوو ټوکونو کی. لومړی ټوک، د مسکو چاپ ۱۹٦٤، ۲۸۱ مخ.

په لاره کی مبارزه کوله څه کم سل کاله ددی انقلاب څخه وروسته ولی شپیره شول؟ آیا هغوی داسی غوښتل یا یی و دی خواته تمایل درلود؟ نه، هغوی د خپلو ګټو په لاره کی مبارزه کوله او نه پوهیدل چی په آینده کی به پیښی په کومه خوا واوړی.

د زرګونو کلونو په اوږدو کی تاریخ د اکثرو هغو خلکو چی د مادی نعمتونو اصلی تولیدوونکی د آرزوګانو او هیلو پرخلاف روان و. تاریخ ددی پرځای چی د زیات ښه ژوند دپاره د هغوی هیلی سرته ورسوی هغوی ته یی فقر او بدبختی له ځانه سره راوسته.

په دی اساس ښایی چی د تاریخ جریان د حاکمو طبقاتو چی د ټولنی په سر کی ولاړی وی او په دی وجه یی کولی شول چی د ټولنی د پرمختګ لوری وټاکی په هدفونو او تمایلاتو ټاکل کیده؟ دی کی شک نشته چی هغو طبقو چی قدرت یی په لاس کی اخیسته په آګاهانه ډول مشخص هدفونه ټاکل او د هغو د ترسره کولو دپاره یی هلی ځلی کولی. مګر په نهایت کی داسی کیدل چی هر دغسی بری له ځانه سره زیات لری عواقب درلودل چی هغوی یی توقع نه درلوده او پیش‌بینی کول یی نه.

تاریخ په دی ترتیب ددی شاهد دی چی د پیښو انکشاف د خلکو یوازی په نیتونو او تمایلاتو باندی نه ټاکل کیده او هغه د داسی طبیعی قواو تابع دی چی د دوی په آرزوګانو او اراده پوری تعلق نه لری.

د تیری زمانی ځینو مفکرینو چی کوشش یی کاوه د تاریخی پروسی جوړوونکی قواوی درک او توضیح کړی دی خبری ته توجه اړوله.

هیګل د خپلی ایدیالیستیکی نظریی سره سم تاریخ د نړیوال روح د انکشاف او اکتشاف په حیث تلقی کاوه. آیا خلک په آګاهانه طرز سره خپل تاریخ ایجادوی؟ ددی پوښتنی په ځواب کی هیګل ویل چی په تاریخ کی هیڅ شی د خلک د تمایلاتو او هلو ځلو څخه پرته نه ترسره کیږی. لکه د هر انسان په شان تمام ولسونه او دولتونه د خپلو ګټو پیروی کوی او د هغو په لاره کی مبارزه کوی. مګر په تاریخ کی تل نه یوازی هغه څه سرته رسیږی چی خلک ورته تلوسه لری بلکه هغه څه هم پیښیږی چی د هغوی په

اعمالو کی متضمن وی او هغه داسی څه وی چی هغوی ته معلوم نه وی او د هغوی د تمایلاتو سره سمون نه لری د هیگل «د تاریخ د فلسفی» مقدمه د بیشمیره ډول ډول تغییراتو د ولسونو، دولتونو او ځانگړو کسانو د کړو وړو د منظری په حیث د نړیوال تاریخ په څرگند بیان سره ختمیږی. هیگل ویل چی موږ په ټولو تاریخی پیښو کی په لومړی ځای کی انسانی اعمال او تمایلات وینو. کله دا اعمال موږ په ښکلا، آزادۍ او شتمنۍ سره حیرانوی. کله موږ د عمومی گټو یوه ستره کتله وینو کومه چی په سختۍ سره مخ په وړاندی خوځیږی مگر تر دی په زیاته اندازه موږ د کوچنیو قواو بی‌نهایته تشنج وینو کومی چی له ظاهراً نشتوکو شیانو څخه ستر شی منځ ته راولی. او په عین زمان کی د پیښو د دغه اختلاط د سطحی لاندی په غیرمرئی توگه په باطن کی کار روان وی چی په منطقی توگه د نړیوال تاریخ نوی عصر برابروی.

د دغسی نظر له برکته هیگل وکولی شول چی د خپلو اسلافو په مقایسه په بی‌ساری ژوره توگه د تاریخ د عمومی جریان تصور وکړی، د وتلو شخصیتونو په رول باندی پوه شی او د ولسونو په پرمختگ کی د هغوی اهمیت وټاکی. مگر د هیگل ایدیالستیک نظر په دننه کی غټ نقاضت درلود. څرنگه چی تاریخ د نړیوال روح د انکشاف او اکتشاف په حیث تلقی کیده هیگل باید بالاخره داسی نتیجی ته رسیدلی وای چی تاریخ یوازی په ظاهری توگه د خلکو له خوا ایجادیږی. هغه عقیده درلوده چی د تاریخ رښتونی جوړوونکی نړیوال روح دی چی اهداف یی په لا شعوری توگه ځانگړی کسان او تمام ولسونه سرته رسوی. په دی ترتیب هغوی د نړیوال روح رانده وسایل شمیرل کیږی. هیگل «د حقوقو په فلسفه» کی لیکلی و چی «دولتونه، ولسونه او ځانگړی کسان چی پخپلو گټو کی ډوب دی په عین حال کی د روح بی‌شعوره وسایل او ارگانونه دی»*.

د فرانسوی عرفانی دوری د نمایندگانو پر خلاف چی عقیده یی درلوده چی بشر په آگاهانه توگه خپل تاریخ جوړوی هیگل عقیده درلوده چی رښتونی تاریخ د خلکو له خوا په غیرشعوری توگه

---

* هیگل. آثار. ۷ ټوک. مسکو – لېنینگراد، ۱۹۳۴، ۳۵۵ مخ.

ایجادیږي. په دې بنیاد نوموړی د تاریخ په برخه کې دیني نظر ژوندی کوي چې پخپل وخت کې اسقف بوسیوایت داسې څرګند کړی و: «خدای د نړۍ سرنوشت تعیینوي او د بشریت د سرنوشت مواظبت کوي»*.

مګر د تاریخي پرمختګ په باره کې دغسې تصور لکه د لومړۍ نظریې په شان بې‌اساسه دی. هیګل تاریخ یوې تقدیري پروسې ته اړوي په کومه کې چې هره تاریخي پېښه د خدای په حکم تعیینیږي.

ک. مارکس د دغسې نظریې په ردولو کې په استهزایي ډول لیکلي و چې «خدای او تقدیري مقصد هغه غټه کلمه ده چې اوس تری د تاریخ د جریان د توضیح کولو دپاره استفاده کیږي. عملاً دا کلمه هیڅ معنی نه لري»**.

ک. مارکس لیکلي و چې ددې نقطه‌نظره د تاریخ څېړل او دا عقیده درلودل چې پخوانۍ پېړۍ د هغو د ټولو بیلا بیلو غوښتنو او د تولید د وسایلو او نورو شیانو سره په الهي توګه زموږ د پېړۍ دپاره ټاکل شوي وي دا معنی لري چې ټول شیان سرچپه کړي شي. ددې خبرې معنی دا ده چې سړی په هغه واقعي تاریخي خوځون باندې سترګې پټې کړي چې د هغه له فیضه مختلفو نسلونو هغه نتیجې تر کار لاندې ونیولې چې د پخوانیو نسلونو له خوا ترلاسه شوې وې.

تر مارکسیزم پخوا هیڅ یوې ټولنیزې تیورۍ و نه شول کولی چې د تاریخ د خوځوونکو قواو په باره کې مسئله حل کړي. په هر ډول چې هغوی دا مسئله حل کوله، که چیرې د خلکو آګاهانه فعالیت ته اصلي رول ورکاوه یا یې تاریخ د لاشعوره طبیعي پروسې په حیث تلقي کاوه په هر صورت هغوی په ایدیالستیک موقف کې پاته کېدل چې د ټولنیزو پدیدو د قوانینو د ادراک خوا ته یې لاره بندوله. یوازې د تاریخي ماتریالیزم تیورۍ چې د ک. مارکس او ف. انګلس له خوا ایجاد شوې وه د بشري تاریخ د قوانینو د درک کولو او د عملي زده کولو خوا ته لاره پرانستله.

---

* J. B. Bossuet. Discours sur l'histoire universelle. P., 1870, p. 421.

** ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۴ ټوک، ۴۱۱ مخ.

## ۲. د ټولنيز پرمختګ د قوانينو عيني خصلت

په تقدير باندې د اعتقاد پر عکس ک. مارکس او ف. انګلس په ټينګار ويل چې تاريخ د خلکو له خوا د خپلو هدفونو د ترلاسه کولو د وسيلې په حيث نه استعماليږي بلکه تاريخ پخپله داسې يو شی دی لکه د خلکو فعاليت کوم چې مشخص هدفونه تعقيبوي. خلک پخپله تاريخ جوړوي. د مارکس په اصطلاح خلک په عين زمان کې د خپلې درامې هم ليکونکي هم اجرا کوونکي دي.

مګر ددې خبرې معنی اصلاً دا نه ده چې ګنې انسانان په شعوري ډول خپل ټول ټولنيز مناسبات تنظيموي. د ټولنې د انکشاف تعيينوونکي قوه د توليد د طرز چې د انسان د فعاليت محصول دی تغيير شميرل کيږي. دا طرز په دوی باندې د کومې پردې قوې لکه «تقدير»، «نړيوال روح» او يا نورو په ذريعه تحميل شوی نه ده بلکه پخپله د خلکو له خوا ايجاد شويده. مګر دا طرز د کومې شخصي عقيدې له مخې نه بلکه په ټاکلو تاريخي شرطونو کې چې د انسانانو په اراده او شعور پورې تعلق نه لري ايجاد شويده. په دې اساس د تاريخي پيښو جريان نه يوازې د خلکو په آګاهانه فعاليت سره ټاکل کيږي بلکه هغه د عيني او د انسانانو له ارادې او شعور څخه آزادو قوانينو تابع دی. دا قوانين لکه د طبيعي قواو په شان د ټول تير تاريخ په اوږدو کې پر انسانانو باندې مسلط و. مګر لکه څنګه چې وړاندې به يې وګورو دا قوانين پرته له دې چې خپل عيني خصلت له لاسه ورکړي په آګاهانه توګه د خلکو له خوا چې نوې کمونستي ټولنه جوړوي او لکه څنګه چې هغوی د طبيعت قواوې د ځان تابع کړې د ټولنيز پرمختګ طبيعي قواوې هم ځانته تسليموي د استفادې وړ ګرځيدلی شي.

تير له دې چې اقتصادي پرمختګ په غيرمنظمه توګه ترسره کيږي يا دا چې لکه په سوسيالستي ټولنه کې پخپله د ټولنې له خوا په آګاهانه طرز سوق کيږي په هر صورت دا پرمختګ طبيعي تاريخي پروسه ده چې د عيني قوانينو تابع کيږي.

ک. مارکس او ف. انګلس چې د ټولنيز ژوند مادي اساس کشف کړ نو د ټولنې په پرمختګ کې يې د عيني قوانينو موجوديت

ثابت کړ. و. ای. لېنین پخپل «د خلکو دوستان» څوک دی او څنگه هغوی د سوسیال دموکراتانو پر ضد جنگیږی» نومی کتاب کی لیکلی و چی مارکس او انگلس ټولنیز مناسبات په دوو ډولونو یعنی په مادی او ایدیالوژیکو مناسباتو ویشلی و. د ایدیالوژیکو ټولنیزو مناسباتو پر عکس مادی، تولیدی مناسبات د خلکو د فعالیت د ضروری نتیجی په حیث چی د خپل موجودیت د ساتلو چاری ته د هغوی له خوا متوجه شوی وی د هغوی د ارادی او شعور څخه پرته تشکل مومی.

تولیدی اقتصادی مناسبات په مجموعه کی د ټولنی د اقتصادی ساختمان او د هغی رښتونی زیربنا جوړوی په داسی حال کی چی ایدیالوژیک مناسبات پر دغه زیربنا باندی روبنا شمیرل کیږی.

لکه څنگه چی و. ای. لېنین لیکلی و «یوازی له تولیدی مناسباتو سره د ټولنیزو مناسباتو د نژدی کولو او مولده قواو ته د ټولنیزو مناسباتو د رسولو له برکته په حتمی توگه ممکنه شوه چی د طبیعی تاریخی پروسی په توگه د ټولنیزو فرماسیونونو پرمختگ تصور کړی شی»*. ددی له مخی ثابته شوی وه چی د ټولنی په تاریخ کی عینی قوانین چی د خلکو د مادی اړیکو له خصلت څخه سرچینه اخلی او په دی بنیاد د هغوی په اراده او شعور پوری تعلق نه نیسی عمل کوی.

و. ای. لېنین پخپل «ماتریالیزم او امپریوکریتسیزم» نومی کتاب کی دغو نظریاتو ته انکشاف ورکړی او لیکلی یی و چی «خلک چی په یوه اندازه مغلقو ټولنیزو فرماسیونونو او په تیره بیا په کاپټالستی ټولنیز فرماسیون کی ژوند کوی نو دا نه درک کوی چی په دی کی کوم ډول ټولنیز مناسبات تشکل مومی او د کومو قوانینو له مخی هغه انکشاف پیدا کوی او داسی نور»**. مثلاً کله چی بزگر بازار ته د غنمو په وړلو پیل وکړ نو د هغو په خرڅولو سره یی د غنمو د نړیوالو تولیدوونکو سره «تماس» قایم کړ. مگر دا بزگر اصلاً له دی خبر نه و چی په دی معامله کی کوم ډول

* و. ای. لېنین. کلیات، ۱ ټوک، ۱۳۸ مخ.

** و. ای. لېنین. کلیات، ۱۸ ټوک، ۳۴۳ مخ.

اقتصادی مناسبات تشکل موسی سره ددی چې دده افلاس مثلاً په نړیوال بازار کې د نرخونو په لویدو پورې تعلق مونډلی شو. د دغو اقتصادی مناسباتو خصلت اصلاً د بزګر په شعور باندی نه ټاکل کیده بلکه برعکس د هغه شعور د موجودو اقتصادی مناسباتو مطابق تغییر مونده.

البته د تولید هر ځانګړی شریک په آګاهانه طرز فعالیت کوی. هغه د لا ښخوا سنجول شوو مقاصدو له مخې د تولید په تخنیک کې بدلون راولی، خپل محصولات په نورو محصولاتو تبادله کوی او داسی نور. د ملیونهاو مولدینو د فعالیت په نتیجه کې د هغوی د ټولنیز ژوند شرطونه تغییر موسی او دا تغییرات نه یوازی د هغوی په ټولنیز شعور پورې تعلق نه لری بلکه کیدلی شی چې هغوی یې مخکی له مخکی درک هم نه کړی. و. ای. لېنین عقیده څرګنده کړی وه چې «له دی څخه چې تاسی ژوند کوئ او خپل اقتصاد چلوئ، کوچنیان زیږوئ او محصولات تولیدوئ او د هغو تبادله کوئ د پیښو ضروری کړی، د پرمختګ کړی جوړیږی چې ستاسو په ټولنیز شعور پورې اړه نه لری او هیڅکله به ستاسو شعور هغه په پوره ډول درک نه کړی»*.

د خلکو د فعالیت خصلت او لوری تل د هغوی د مادی ژوند په شرطونو باندی ټاکل کیږی او سره ددی چې دا شرطونه پخپله د خلکو له خوا تغییر موسی مګر د خلکو له خوا په خودسرانه توګه غوره کیدلی نه شی. په دی بنیاد دا چې خلک پخپله خپل تاریخ جوړوی ددی معنی نه لری چې هغوی تاریخ د خپلی خوښی له مخې جوړوی.

د ټولنیز پرمختګ د قوانینو د عینی‌توب مثل طبعاً په دی معنی نه دی چې دا قوانین بې له انسانه او پرته له هغه فعالیت کوی بلکه دا قوانین پخپله د خلکو د فعالیت قوانین شمیرل کیږی.

د مارکسیزم د نقطه‌نظره د سوسیالیزم عینی ضرورت څه مفهوم لری؟ ددی ضرورت معنی دا ده چې پانګوالی خپل عمر خوړلی دی، د تاریخ مخه نیسی او د ټولنی د مادی شرطونو انکشاف خلک دی

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۱۸ ټوک، ۳۴۵ مخ.

ته مجبور کړ چې خپل تولیدي مناسبات بدل کړي او هغه د نوو مولده قواو مطابق عیار کړي. د پانګوالۍ پرمختګ داسي طبقه لکه پرولتاریا وزیږوله کومه چې د تولید په کاپتالستي طرز کې د خپل عیني موقف په نتیجه کې مجبوره ده چې د بورژوازۍ پر ضد او د سوسیالیزم په لاره کې مبارزه وکړي ځکه چې په بله لاره هغه خپله آزادي نه شي ترلاسه کولی. ددې خبرې معنی دا ده چې د سوسیالستي ټولنې د جوړولو په لاره کې د پرولتاریا پخپله طبقاتي مبارزه تاریخي ضرورت دی. په دې اساس د سوسیالیزم د ضرورت منل اصلاً ددې خبرې معنی نه لري چې سوسیالیزم خودبخوده پیدا کیږي.

د تاریخي ماتریالیزم «سنتقدین» تل کوشش کوي چې په مارکسیستانو باندې د تاریخ په نسبت موهوم نظر وروتپي. دغسې «سنتقدین» د مارکسیزم پخپل تعبیر کې د لیکوال ماکسیم ګورکي «د اکوروف د قصبې» نومې داستان د یوې ښځې ډاکتر ریاخین سره کټ مټ ورته‌والی لري. ډاکتر ریاخین متردد ځوان ته تسلیت ورکاوه او ویل یې چې «تاسې په فلسفي توګه قضاوت کوئ . انسان حوادث نه ګړندي کولی او نه یې درولی شي لکه څنګه چې نه شي کولی چې د ځمکې چورلیدل، شدید فلج انکشاف او یا مثلاً دغه رذیل باران ودروي. ټول هغه څه چې باید وشي کیږي او هغه څه چې نه شي کیدلی نه کیږي سره ددې چې تاسې هرڅومره هڅې وکړئ! دا خبره پلاره د مارکس له خوا ثابته شویده او بس!». کله چې وارخطا ځوان پوښتنه وکړه چې «ښه الکسي ستیپانویچ! آخر خلک خو باید یو څه وکړي؟» نو ډاکتر ریاخین ځواب ورکړ چې «هغوی ته ویل شویدي چې اولادونه وزیږوئ، تنسل او تکثر وکړئ او په ځمکه کې میشت شئ. نور ټول شیان پخپله سمیږي!» *.

په تقدیر باندې د اعتقاد د تبلیغاتو څخه اکثراً د کهالت د تبرئه کولو په غرض او د انقلابي مبارزې د ردولو په منظور استفاده کیدله او استفاده کیږي. مګر په تقدیر باندې د اعتقاد په نسبت بل هیڅ شی د مارکسیزم سره دومره مغایر نه دی. مارکسیزم نه

---

* م. ګورکي. کلیات په دیرشو ټوکونو کې، ۹ ټوک، مسکو، ۱۹۵۰، ۶۷ مخ.

بلکه د هغه منحرفین په تقدیر باندی د اعتقاد له مخی تاریخ تعبیروی. د هغو په جمله کی په روسیه کی مثلاً «علنی مارکسیستان»، «اکونومیستان»، منشویکان او په لویدیز کی د بیرنشتین او کاؤتسکی پیروان او نور شامل و. گڼ شمیر معاصر تجدید نظر غوښتونکی چی د سوسیالیزم استقرار د یوی طبیعی او غیرمنظمی پروسی په حیث گڼی په همدغسی دریځ ولاړ دی. مگر مارکسیزم او لېنینیزم چی له انقلابی روحیی څخه ډک دی د طبیعی‌توب د تیوری د دغو مبلغینو د بورژوازۍ د ایدیالوژیک مال د تیتوونکو سره کومه مشترکه وجه درلودلی نشی؟! و. ای. لېنین لیکلی و چی «مارکسیزم د ټولو نورو سوسیالستی تیوریو څخه د اشیاو د عینی ترتیب او د تحول د عینی جریان د تحلیل د پوره علمی درائت او د پرگنو او همدغه‌رنگه البته د ځانگړو شخصیتونو، ډلو، سازمانونو، گوندونو چی ددی توان لری چی د دغو یا هغو طبقاتو سره رابطه احساس کړی او د عمل ډگر ته یی راولی د انقلابی انرژۍ، انقلابی خلاقیت او انقلابی ابتکار د اهمیت د قاطعانه منلو په فوق‌العاده توحید تفریق کیږی»*.

د تحول د عینی جریان د منلو او د مارکسیزم د انقلابی روحیی تر منځ دا نه‌شلیدونکی پیوند د مارکسیزم د مسلکی منتقدینو څخه پرته ټولو ته پوره څرگنده دی. خو د مارکسیزم مسلکی منتقدین وایی چی «که چیری په عین زمان کی «د تاریخ جریان» حتمی وشمیرل شی نو انسان آزاد او د تاریخ خلاق او مشخص کوونکی عامل نه شی کیدلی. د فلسفی حدود ډیر محصور دی او په هغو کی دا دواړه مفهومونه نه ځاییږی»**. ددی پرپړی لیکونکی ا.ج. گریگور داسی گڼی چی «د هغی دینامیکی پروسی چی د انسان د وجود نه بهر صورت مومی د کاهل «ښکارندوی» په حیث د انسان په نسبت یوازی نظریه د تاریخی ماتریالیزم سره مطابقت لری. دلته یوازی سړی

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۱٦ ټوک، ۲۳ مخ.

** A. Gregor. Marxism as Philosophy. — «The European». August 1956, p. 26 همدغه رنگه د ا. ج. گریگور هغه کتنی د مقایسی وړ دی چی په یوه وروستی مقاله کی یی څرگندی کړیدی: «Marx and the Western World». L., 1967, p. 175

په دې تعجب کولی شی چې د مارکسیزم دغه «منتقد» دا نظر له کومه راویست. په هر صورت نه خو انګلس او نه لېنین چې دې وربانډې دا نظر ورتپې دغسې نظریه نه درلوده. د تاریخي ماتریالیزم دپاره انسان کاهل «ښکارندوی» نه بلکه خلاق او ایجادوونکې دی. انسان پخپل ورځنی کار او فعالیت سره تاریخ جوړوی په داسې حال کې چې تل دا خبره نه درک کوی. د ملیونهاو زیارایستونکو ورځنی فعالیت چې په لوړې نظر ناښکاره معلومیږی دایماً تاریخ پرمخ بیایی او د سترو انقلابونو په دوران کې د هغوی آګاهانه مبارزه د غښتلی انجن په شان د تاریخي پیښو بهیر ګړندی کوی.

د خلکو د آګاهانه فعالیت سره د تاریخي ضرورت مقابله کول د معاصرو بورژوایی مفکوره تراشونکو او د ډول ډول تجدید نظر غوښتونکو یوه په زړه پوری موضوع ده.

ک. مارکس معقولانه نظریه درلوده چې «د طبیعي ضرورت سلطنت هم په ابتدایي او هم په مدني ټولنه کې وجود لري. «په دې برخه کې آزادي یوازې په دې کې پرته ده چې اشتراکي انسان او متشکل تولیدوونکي په ګټوره توګه د طبیعت سره د اشیاو دا خپله تبادله تنظیموی او هغه تر عمومي کنټرول لاندې راولي ددې پرځای چې هغه پر انسانانو باندې د یوې ړندې قوې په حیث حکومت وکړی»*.

د مارکسیزم د منحرفینو په شان د هغه د رټو دښمنانو په نظر په ټولنیز پرمختګ کې آزادي او خلاقیت د ضرورت سره مخالفت لري. په حقیقت کې دا دواړه شیان یوازې له ړانده ضرورت سره مغایرت لري کوم چې د طبیعي قوې په شان انسان چې د هغې په مقابل کې خوشې مقاومت کوی په ځان پورې راکاږي. مګر که چیرې انسانان د حقیقت پر خلاف فعالیت نه کوی چې بالاخره هغوی ناکاموی بلکه حقیقت درک کوی او په تاریخي لحاظ د ترلاسه کیدوونکو هدفونو خوا ته خپل کوششونه سوق کوی نو د هغوی شعوری فعالیت ستره قوه پیدا کوی. مثلاً ددې خبرې ادراک چې د نوې ټولنیز نظام برې تاریخي ضرورت دی هغه خلک چې ددې برې دپاره

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۲۵ ټوک، دوهمه برخه، ۳۸۷ مخ.

مبارزه کوی په کهالت نه اخته کوی بلکه هغوی دی ته لمسوی چی خپله انرژی زیاته کړی، د بری خوا ته د هغوی اراده ټینګوی او د هغوی د ابتکار دپاره پراخ پیش‌منظر پرانیزی.

ځرګنده خبره ده چی هغه کسان چی انسان داسی موجود بولی چی ددی توان لری چی د ټولنی پرمختګ په خپله اراده سوق کړی د تاریخی ضرورت په منلو کی د خلکو د فعالیت د آزادۍ محدودیت وینی. مګر دغسی آزادی تخیلی وی. ربښتونی آزادی د تاریخی ضرورت په پوهیدلو او په دی اساس په هدف تعقیبوونکی توګه د فعالیت د توان په ادراک کی پرته ده. یوازی په دی شرط انسان د طبیعی قواو د لوبوونی ځخه د هغو په ایلوونکی تبدیلیږی.

د تاریخی ماتریالیزم دپاره د ټولنیز شعور او ټولنیز ژوند متقابله اغیزه له اقتصاد ځخه د مفکورو د خپلواکۍ د منلو معنی نه لری. ټولنیز شعور په تاریخ کی فعالانه رول لوبوی مګر د هغه د پرمختګ منابع د ټولنیز ژوند په شرطونو کی پرتی دی. د مادی ژوند د شرطونو پخپله بدلون د خلکو په وړاندی مشخصه تاریخی وظیفه ږدی، مثلاً هغوی د زاړه نظام د له منځه وړلو له ضرورت سره مخامخ کوی. که چیری دغسی تاریخی ضرورت پیدا شوی او د ټولنی د مترقی قواو په شعور کی یی انعکاس موندلی وی نو دا د هغوی د عملی فعالیت لوری هم ټاکی.

د خلکو آګاهانه فعالیت د مارکسیستانو په نظر کی پاسیف او سست انعکاس نه بلکه د تاریخی پروسی پیوند شوی ترکیبی برخه او د هغه ضروری کړۍ ده. مثلاً سوسیالیزم ته د انتقال تاریخی قانونمندی چی پورته مو د هغی په باره کی خبری وکړی د سوسیالیزم د خودبخوده بری معنی نه لری. دا قانونمندی یوازی په معاصره دوره کی د ټولنی د پرمختګ اصلی تمایل ځرګندوی او د مبارزی په وسیله او د کارګری طبقی په مشرۍ د ټولنی د مترقی قواو د آګاهانه فعالیت له لاری تحقق موندلی شی. په دی کی د حوادثو پر جریان باندی د خلکو د آګاهانه اغیزی پیمانه ډیره پراخه وی. دا چی په کوم یوه هیواد کی حوادث څه شکل غوره کوی او د سوسیالیزم خوا ته د خوځون تمایل څومره ژر یکی بری مومی په ډیرو عینی او ذاتی شرطونو پوری تعلق لری چی په هغه جمله کی د کارګری

طبقې د آګاهۍ او تنظیم درجه، ددې طبقې د متحدینو شتهوالی، د کارګرې طبقې د ګوند وضعیت او سیاست، پر پرګنو باندې د بورژوایي او کوچنۍ بورژوایي ګوندونو د نفوذ اندازه، د حاکمو طبقاتو قوت او سیاست چې د سوسیالیزم خوا ته د حرکت مخه نیسي او داسې نور عوامل شامل دي. طبیعي ده چې مارکسیستان په دې باره کې چې تاریخ ګړندی کیدلی یا ورو کیدلی نه شي په تقدیر باندې د اعتقاد د پیروانو عقیده ردوي. مارکسیزم د ټولنې د مترقي قواو د موثر آګاهانه فعالیت په نتیجه کې د تاریخي حوادثو د جریان د ګړندي کولو امکان مني او په عین زمان کې د ارتجاعي قواو چې د خپلې تهلکې د مودې د ځنډولو دپاره لاس او پښې وهي د فعالیت په اثر د ټولنیز پرمختګ د موقتي ځنډیدو امکان نه ردوي.

د تاریخي پروسې مارکسیستي ښوونځی په برابره اندازه هم په تقدیر باندې د اعتقاد، هم د سبجکتویزم او هم د والیونتاریزم سره مخالف دی. د تاریخ د مارکسیستي تعبیر او د بورژوایي نظریاتو د دغو دوو ډولونو تر منځ تضاد د بلشویکانو* او منشویکانو-انحلال غوښتونکو** تر منځ د مشاجرې په مثال سره ښه ښکاره کیدلی شي. د

---

* بلشویکان — د روسیې د سوسیال دموکرات کارګرې ګوند انقلابي اړخ و چې په ۱۹۰۳ — ۱۹۱۲ کلونو کې د لینین له خوا لارښودل کیده. له ۱۹۱۲ کال څخه د روسیې د بلشویکانو سوسیال دموکرات ګوند تشکیل شو. وروسته دا ګوند د روسیې (د بلشویکانو) د کمونست ګوند په نامه یاد شو، بیا د سر تا سرې روسیې (د بلشویکانو) د کمونست ګوند په نامه او له ۱۹۵۲ کال څخه د شوروی اتحاد د کمونست ګوند په نامه وبلل شو.

** منشویکان-انحلال غوښتونکي — د روسیې په سوسیال دموکراسۍ کې ښي اړخ و. د اپورتونستي او سازوبند د مفکورو طرفدار و. د تش په نامه «کارګرې ارستوکراسۍ» یعنې د کوچنۍ بورژوازۍ د منورینو د ګټو یې ترجماني کوله. د لینینیزم او بلشویکانو پر ضد یې کلکه مبارزه کوله. د اکتوبر د انقلاب په زمانه کې یې قطعي ماتې وخوړه او آخر د شلمې پیړۍ په دوهمه لسیزه کې ړنګ شو.

منشویکانو په عقیده چې د طبیعي‌توب د اپورتونستي تیوري پیروي یې کوله نوی روسیه هیڅوک جوړولی نه شي بلکه هغه د ډول ډول ګټو د مبارزې په پیچلې پروسه کې جوړیږي. ددې قضاوت په ځواب کې و. ای. لېنین په صراحت سره وښودله چې له یوې خوا د تاریخي پروسې د مارکسیستي تعبیر او له بله پلوه د سبجکتویزم او همدغه‌رنګه په تقدیر باندې د اعتقاد له مخې د تعبیر تر منځ تضاد په څه شي کې پروت دی. هغه لیکلي و چې «که چیرې زه ووایم چې نوی روسیه باید مثلاً د رښتیا، عدالت، د کار په برخه کې د برابرۍ او نورو اصولو له نقطه‌نظره په دې قسم جوړه شي نو دا به سبجکتویزم وي چې ما به د تخیل ساحې ته ورننه‌باسي. په عمل کې د طبقاتو مبارزه ده، نه زما تر ټولو ښې هیلې چې د نوې روسیې ساختمان ټاکي. د نوې روسیې د جوړولو زما ایدیالونه به یوازې هغه وخت تخیلي نه وي چې کله هغه د واقعاً موجودي طبقې چې د ژوند شرطونه یې دې ته اړ باسي چې په ټاکلې لورې کې فعالیت وکړي د ګټو ترجماني وکړي»*. د سبجکتویزم سره د ژوند د بدلون په نسبت د دغسې عیني برخورد په مقابله کولو لېنین په عین وخت کې د موجود حالت د تقدیري تبرئې پر خلاف هم نظریه څرګنده کړه. په دې باره کې چې نوی روسیه هیڅوک نه شي جوړولی او دا چې روسیه خودبخوده جوړیږي د منشویکانو نظریې عملاً د طبقاتي مبارزې د هیرولو او د ژوند د بدلولو دپاره په مبارزه کې د کارګرې طبقې د رول د ردولو په معنی و. د سبجکتویزم او په تقدیر باندې د اعتقاد په عکس مارکسیزم د طبقاتي قواو تناسب په عیني توګه سنجوي. لېنین لیکلي و چې «د طبقاتي مبارزې د عیني‌توب ددې نقطه‌نظر په ملاتړ زه اصلاً واقعیت نه تبرئه کوم بلکه برعکس پخپله

---

انحلال غوښتونکي — په ۱۹۰۶ — ۱۹۱۲ کلونو کې د روسیې په سوسیال دموکراسۍ کې د منشویکانو یو جریان و. د کارګرې طبقې د مبارزې د غیرعلني شکلونو د له منځه وړلو طرفداران و (او په دې وجه دا نوم ورکړل شوی و).

* و. ای. لېنین. کلیات، ۲۲ ټوک، ۱۰۱ مخ.

په دغه واقعیت کی د هغه د بدلون تر ټولو ژورو منابعو او قواو ته (سره ددی چی په لومړی نظر نه ښکاري) اشاره کوم»*.
پخیله په ژوند کی د هغه د بدلون د منابعو او قواو پیدا کول هغه څه دی چی د تاریخی پروسی په نسبت د مارکسیستی برخورد ماهیت پکی پروت دی چی په ترکیبی ډول عینیتوب له انقلابیتوب سره پیوندوی. بورژوایی فیلسوفان او ټولنه‌پیژندونکی چی نه غواړی له سبجکتویزم او فاتالیزم (په تقدیر باندی اعتقاد) څخه د مارکسیزم په اصولی توپیر باندی پوه شی تلاش کوی چی په مارکسیزم پوری «د خوځوونکی پروسی د کاهل «ښکارندوی» په حیث د انسان په نسبت تقدیری نظر او یا تجریدی نظر وروتپی چی گواکی د خلکو اراده په تاریخ کی ټاکونکی رول لوبوی. د مارکسیزم مشهور «تحریفوونکی» س. هوک حتی کوشش وکړ چی دا ثابته کړی چی کمونستان پخپل عملی فعالیت سره دیترمنیزم ردوی. ددی دپاره هغه کمونستانو ته اعجاز انگیزه قدرت ورکړ چی یوازی په «سیاسی فرمانونو» سره د هر ډول «تاریخی دیترمنیزم» نه پرته او حتی د هغه پرخلاف په روسیه کی انقلاب ترسره کړی او نوی ټولنیز نظام جوړ کړی. له دی ځایه نوموړی ډیره عجیبه او غلطه نتیجه اخلی چی گنی «د شوروی اتحاد موجودیت د تاریخی ماتریالیزم مارکسیستی تیوری ردوی»**.
د مارکسیزم د ردولو دپاره س. هوک حاضر دی چی په کمونستانو پوری مافوق طبیعی قوه وروتپی مگر هغوی ددی «افتخار» څخه انکار کوی. که چیری کمونستانو وکولی شول چی د زیارایستونکو عظیمی پرگنی په ځان پسی بوزی، چی ددی توان یی درلود چی په روسیه کی عمرخوړلی کاپتالستی نظام نسکور کړی او نوی سوسیالستی نظام جوړ کړی، که چیری دا نظام اوس په نورو هیوادونو کی هم

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۲۲ ټوک، ۱۰۱ مخ.

** S. Hook. Historical determinism and political fiat in soviet communism, — «Proceedings of American Philosophical Society», 1955, vol. 99, №1, p. 10.

بریالی کیږی نو ددی علت دا دی چی کمونستانو د ټولنیز پرمختګ د قوانینو پر خلاف نه بلکه د هغو مطابق عمل کاوه. هغه ستره لاره چی د شوروی اتحاد خلکو وهلی ده په دی باره کی چی په روسیه کی د پرولتاریا بری یوازی محلی او «سیمه‌ایز» اهمیت لری بورژوایی افسانه له منځه یووړه. روسی انقلاب لکه څنګه چی د مارکسیزم او لېنینیزم مخالفینو ویل استثناء نه او د تاریخی پرمختګ د قوانینو څخه انحراف نه بلکه د نړیوال تاریخ د عمومی تدریجی او مترقی نهضت ښکارندوی و چی د سوسیالیزم په بری ختمیږی. او د سوسیالستی تحولاتو په موفقیتونو کی دی خبری چی کمونستی او کارګری ګوندونو یعنی ددی تحولاتو الهام بخښونکو او تنظیمونکو په مهارت سره د ټولنیز پرمختګ د قوانینو د پوهنی څخه په خپل عملی فعالیت کی استفاده وکړه ډیر غټ رول ولوباوه.

## ۳. د ټولنیزو قوانینو د عمل د طرز له نقطه نظره د هغو تر منځ توپیر

عینی‌توب د ټولنیز پرمختګ د ټولو قوانینو عمومی خاصه ده. مګر په عین زمان کی د دغو قوانینو ساحی او طرزونه او د هغو وظایف تر ډیری اندازی پوری یو له بله توپیر لری. دا توپیرونه د ټولنیز پرمختګ د قوانینو د تصنیف دپاره اساس جوړوی. موږ د هغو په پوره تقسیم‌بندۍ باندی خبری نه کوو او صرف د هغو د عمل د طرزونو له مخی به د هغو تر منځ ځینی توپیرونه راواخلو.

د ټولنی پیژندنی په تاریخ کی کوشش شویدی چی د ټولنیز پرمختګ قوانین د ټولنیز ستاتیک (یعنی سکون او آرامی) او ټولنیز دینامیک (یعنی خوځون او عمل) په قوانینو وویشل شی. د او. کونت د نظریی مطابق د سکون قوانین د بشری ټولنی د «ارګانیزم» متوازن حالت ترسیموی او د خوځون قوانین د بشری ټولنی د تغییراتو عوامل ښیی چی او. کونت اساساً معنوی مفکوری چی نړۍ «په بل مخ اړوی» په هغو پوری تپی. د کونت په نظر کی ټولنیز سکون د محافظه کارۍ اساس و چی انقلابی بدلونونه یی نه پریښودل او ټولنیز خوځون د «ترتیب» په پیمانه د پرمختګ اساس و.

د ټولنیزو قوانینو دغسی ویش چی په آینده کی «د توازن د تیوری» ځینو پلویانو ځنی استفاده کړیده ځکه د منلو وړ نه دی چی ټولنه په تر ټولو اوچته درجه خوځېدونکی سیستم شمېرل کېږی چی د هغو د بدلون او پرمختګ سرچینی په باندنیو علتونو کی نه چی د هغه توازن ورانوی بلکه د هغه په دننه کی پرتی دی.

په معاصرو مارکسیستی ادبیاتو کی په دی باره کی نظریه څرګندیږی چی د ټولنیز ژوند قوانین د ساختمان، عمل او پرمختګ په قوانینو باندی ویشل کیدلی شی. دغسی تقسیمبندی تر یوی اندازی بی‌اساسه نه دی مګر نسبتی شکل لری. دی کی شک نشته چی مثلاً داسی قوانین وجود لری چی تر ټولو دمخه د ټولنیز ارګانیزم جوړښت ښیی (اقلاً د روبنا په نسبت د زیربنا د ټاکونکی رول قانون). مګر که چیری د روبنا او زیربنا تناسب په سکون کی نه بلکه په خوځون کی او د هغو د دیالکتیک متقابل تاثیر له مخی وڅیړل شی نو د ټولنی هماغه قوانین د ټولنی د ارګانیزم پرمختګ توضیح کوی. د زیربنا (مثلاً د بورژوایی انقلابونو څخه په پخوا زمانه کی) تغییرات د بورژوایی اقتصاد چی د فیودالیزم په بطن کی یی تکامل سوندلی او د فیودالی مطلقه سیاسی روبنا تر منځ تضادونه منځ ته راولی. دا تضادونه لکه د مولده قواو او د تولیدی مناسباتو تر منځ د تضادونو په شان د بورژوایی انقلاب په وسیله له منځه وړل کیږی. په دی مورد کی د زیربنا د ټاکونکی رول قانون د ټولنیز ارګانیزم د جوړښت د ترسیمولو سره یوځای د هغه پرمختګ هم توضیح کوی.

د عمل او پرمختګ د قوانینو په باره کی چی ځینی فیلسوفان او ټولنه‌پیژندونکی یی بیخی خاصو قوانینو ته اړول غواړی همدغه شی ویل کیدلی شی. دی کی شک نشته چی عمل د فرماسیون د موجودیت نسبتاً مستقله ښانګه ده چی د هغو د موجودیت شرایط څرګندوی. د ټولنی (مثلاً د سوسیالستی ټولنی) د عملی قانونمندی د پخوا په نسبت لا زیاته مفصله پلټنه غواړی. دا پلټنه د نوی ټولنیز او اقتصادی فرماسیون د نسبتاً اوږدی مرحلی په حیث د سوسیالیزم د عمل د هراړخیز تحلیل تقاضا ده. مګر زموږ په عقیده دا ددی موجب نه کیږی چی د عمل قوانین د ټولنی د پرمختګ د قوانینو سره مقابله کړی شی. دغسی برخورد زیاتره د مارکسیزم د روحیی سره نه بلکه

د ک. لیوی‌ستروس د ستروکتورالیزم د فلسفی یا د ت. پارسونس د ساختمانی او وظیفوی تیوری له روحیې سره مطابقت لري، راځئ د «کارل مارکس» تر عنوان لاندې د لېنین د مقالې څخه په دې باره کې د هغه مفکوره را په یاد کړو چې ویلې یې و چې ک. مارکس سوسیالستي ټولنې ته د کاپټالستي ټولنې د اوښتون حتمي‌والی ټول ټال او په قطعي توګه د معاصرې ټولنې یعنې کاپټالیزم د خوځون د اقتصادي قانون له مخې استناد کوي. د کاپټالستي ټولنې د عمل د قوانینو پلټنې ښيي چې څنګه هغه ددې ټولنې ړدولو ته منجر کیږي. د سوسیالستي ټولنې د عمل د شرایطو په مطالعه کولو سره موږ کمونستي ټولنې ته د هغې د تدریجي رشد شرطونه معلوموو.

څکه نو موږ په دې باره کې چې «داسې ټولنیز قوانین موجود دي کوم چې یا یوازې د عمل قوانین دي یا د پرمختګ قوانین دي»* په ادبیاتو کې موجوده نظریه قانع کوونکې نه بولو. د دغسې تصنیف نتیجه دا کیږي چې په کاپټالستي ټولنه کې د تقاضا او عرضې قانون د عمل قانون او د رقابت قانون د پرمختګ قانون وشمیرل شي. یا دا چې په سوسیالستي ټولنه کې د کار له مخې د ویش قانون د عمل په قوانینو او د خپل کار له نتیجو سره د کارکوونکو د مادي علاقمندۍ قانون د پرمختګ په قوانینو پورې تعلق نیسي**. که چیرې دغسې مثالونه څه شي ثابتولې هم شي نو هغه یوازې دا دي چې عمل او پرمختګ د ټولنیزو قوانینو د عمل بیلا بیل اړخونه دي. دا یا هغه اړخ په مختلفو سویو سره د اولیت حق پیدا کولی شي منتها دا اړخونه په مطلقه توګه یو له بله جلا کیدلی نه شي. د عمل په پروسه کې مثلاً د تولید د طرز په پروسه کې د هغه تکامل هم کیږي. په تیره بیا دا حقیقت د تولید په پراخ مقیاس کې لیدل

---

* و. ګ. وینوګرادوف، س. ای. ګنچاروک. د ټولنې قوانین او علمي مخکې‌لید. مسکو، ۱۹۷۲ کال، ۱۲٤ مخ.

** و. ګ. وینوګرادوف، س. ای. ګنچاروک. د ټولنې قوانین او علمي مخکې‌لید. مسکو، ۱۹۷۲ کال، ۱۲٥ — ۱۲٦ مخونه.

کیږي. ضمناً دا تکامل هم د یوه شکل په باطني عمل او هم بل شکل ته د یوه شکل د بدلیدو له لارې کیږي.

په خوځیدونکو او ساکنو (په بل عبارت احصاییوي) قوانینو باندې د ټولني د قوانینو د ویش مسئله خاصه څیړنه غواړي. د دغو قوانینو د عمل په پروسه کې د ضرورت او تصادف مختلف تناسب ددې ویش اساس بڼدي.

څرنگه چې ټولنیز قوانین د خلکو د پرګنو په فعالیت کې تحقق مومي نو د ساکنو (احصاییوي) قوانینو سره د هغو د پیوندولو د حقانیت مسئله منځ ته راځي. آیا دا چې ټولنیز قوانین ساکن دي او که نه؟ دې پوښتنې ته په شوروي ادبیاتو کې یورنګه ځواب نشته. ګڼ شمیر مولفین ټول ټولنیز قوانین په ساکنو (احصاییوي) قوانینو پورې مربوطوي.

تر ټولو دمخه به دا ذکر کړو چې د ساکنو قوانینو مفهوم په علم کې هم د ټولنیزو پدیدو څانګې (مثلاً د نواسمې پیړۍ د لومړۍ نیمایۍ د بلژیکي احصاییوي پوهاند ا. کیتلي*) هم طبیعي پوهنې ته (فزیک، بیالوژۍ او د طبیعت په باره کې د علم نورو څانګو ته) ورداخل شو. له دغو قوانینو څخه ځینې قوانین له اوله د تجربوي قوانینو په حیث جوړ شول (مثلاً د هلکانو او نجونو د زیږیدنې د شمیر، د ګاز د فشار او حجم تناسب او داسې نور) او یوازې وروسته یې نظري توضیح پیدا کړه. نور قوانین (مثلاً په بیالوژۍ کې د طبیعي چڼلو قانون، د کوانت د فزیک قوانین او نور) له لومړي سره د تاکلې تیورۍ د اختراع سره مربوط و. په طبیعي پوهنه کې د کوانت د تیورۍ په منځ ته راتلو سره دا تمایل پیدا شو چې حتی نژدې

---

* ک. مارکس په ۱۸۶۹ کال کې د ا. کیتلي په باره کې داسې لیکلي و چې «په پخوا وختونو کې ده ستر خدمت کړیدی یعنی دا چې هغه ثابته کړه د ټولنیز ژوند ظاهري تصادفونه د هغو د متناوب تکرار او د متناوبو منځنیو ارقامو په وجه د باطني ضرورت خاوند دي. مګر ده هیڅکله و نه شول کولی چې دا ضرورت توضیح کړي». (ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۳۲ ټوک، ۴۹۵ — ۴۹۶ مخونه).

ټول قوانين د احصاييوي (ساکنو) قوانينو په حيث تعبير شي. دغسې تصور د بشري پوهنې د تکامل په عمومي پروسه کې د احصاييوي متودونو د رول زياتوالى ښکاره کاوه لکن په عين حال کې يې بواړخيز څرنګوالى درلود. هم په طبيعي علومو او هم په فلسفه کې د قانونمندۍ د دوو ډولونو چې يو له بله سره متقابل تناقض لري مګر يو له باله سره توحيد نه پيدا کوي يعنې د خوځيدونکو او ساکنو قانونمنديو د موجوديت په هکله نظريه ټينګه شوه. د ساکنو قوانينو خصوصيت په دې کې پروت دى چې هغه (لکه د مثال په توګه د علت او معلول تر منځ د رابطې په شان) نه د ځانګړو نسبتاً جلا شوو پديدو، شيانو او اړخونو تر منځ مهم حتمي پيوند څرګندوي بلکه د پديدو د ټاکلي مجموعې (مثلاً د ګاز د ماليکيولونو چې يو پر بل باندې تاثير لري د مجموعې، د يوه بيولوژيکي ډول د عضويتونو د مجموعې او داسې نورو) قوانين دي. احصاييوي قانونمندۍ لومړى هغه خصوصيات څرګندوي چې د يوه تمام سيستم مميزات شميرل کيږي نه د هغه د بيلو واحدو (مثلاً د تيرمودېناميک فشار مفهوم د ځانګړي ماليکيول په برخه کې معنى نه ورکوي). دوهم دا چې په احصاييوي قوانينو کې د خوځيدونکو قوانينو پر خلاف د پديدو بواړخيز او قطعاً ټاکلي ديترمنيزم نه بلکه د هغو احتمالي رابطه ښودل کيږي. دا رابطه هم استوار او نسبتاً دايمي خصلت لري مګر د خوځيدونکې قانونمندۍ پر خلاف بل ډول قانونمندي شميرل کيږي.

مګر په ساکنو او خوځيدونکو قوانينو باندې د قوانينو ويش په ميخانيکي ډول له فزيک څخه په ټولنه پيژندنې باندې نه شي تطبيقيدلى. زموږ په نظر بلغاريايي فيلسوف پانايوت ګينديف حق په جانب دى چې ويلي يې دي چې «په حقيقت کې ټول ټولنيز قوانين تر يوې اندازې پورې په ديالکتيکي طرز هم د خوځيدونکو او هم د ساکنو قوانينو مشخص خصوصيتونه په ځان کې «منعکسوي»»*.

په عين زمان کې بايد وويل شي چې په مشکله کيدلى شي چې د ټولنيز ژوند ټول قوانين په يوه ډول پورې منسوب کړى شي.

---

* پانايوت ګينديف. فلسفه او ټولنيز ادراک. مسکو، ۱۹۷۷، ۱۳۳ مخ.

دی کی شک نشته چی په ټولنیز ژوند کی د ساکن (احصاییوی) خصلت قوانین هم فعالیت کوی (مثلاً د دموګرافی د پروسو په ساحه کی). په بوه اساس کیدلی شی چی د مالونو د تولید قوانین هم په ساکنو (احصاییوی) قوانینو پوری منسوب کړی شی ځکه چی دلته د مالونو د تبادلی د ګڼ شمیر ابتدایی انفرادی اعمالو د تجمع نتیجی خپل عمل څرګندوی.

ټول اجتماعی قوانین د خلکو د سترو پرګنو د اعمالو په حیث تبارز موی، مګر دا لکه چی ځینی مولفین عقیده لری (مثلاً بلغاریایی فیلسوف ستویکو پوپوف) ددی دلیل نه شی کیدلی چی ټولنیز قوانین د ساکنو (احصاییوی) قوانینو په جمله کی داخل کړی شی. د دغو مولفینو په عقیده هم د ټولنی په پرمختګ کی د تولید د وسایلو د ټاکونکی رول قوانین، هم د مولده قواو د خصلت او د پرمختګ د سوبی سره د تولیدی مناسباتو د تطبیق قوانین، هم د ټولنیز شعور په مورد کی د ټولنیز ژوند د ټاکونکی رول قوانین او نور د خپل ماهیت له مخی ساکن قوانین دی. مګر په دغسی نظر کی ټول اجتماعی قوانین د احتمالی قوانینو په حیث ښودل کیږی چی د تاریخی ضرورت ادراک مشکلوی.

د ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو قانونی تبدیل هم د ساکنو قوانینو په جمله کی نه شی داخلیدای. د کاپتالیزم د حتمی تهلکی او سوسیالیزم ته د حتمی انتقال په باره کی د د ک. مارکس استنتاج د کاپتالیزم د پرمختګ د قانون او د هغه د اساسی تضاد د تحلیل په اساس باندی شویدی. دا رابطه ساکن خصلت نه لری. لکن ددی ضروری رابطی ترسره کول په ځانګړو هیوادونو کی د یو لړ حوادثو او د پرګنه‌ایزو نهضتونو په ذریعه چی د هغو د شریکانو اعمال په قطعی حتمیت سره په یوا ړخیزه توګه نه دی ټاکل شوی تحقق موی. په دی اساس هغه خصوصیات چی د خوځیدونکو قوانینو خاصه شمیرل کیږی د ټولنی په انکشاف کی د ساکنو قوانینو سره مدغم کیږی.

اکثراً ساکن (یعنی احصاییوی) قوانین د تمایلی قوانینو سره یو شی بلل کیږی. زموږ په نظر دغسی یو شی بلل سم نه دی. البته ساکن قوانین هروسرو د تمایلی قوانینو په شکل تبارز کوی او د

هغوی عمده خصوصیت دا دی چی دا قوانین په متوسط ډول د پدیدو په کتله کی ترسره کیږی. په عین حال کی غیرسا کن قوانین هم د تمایلی قوانینو شکل غوره کولی شی. د تمایلاتو په حیث د قوانینو عمل د قوانینو تر منځ د متقابلی اغیزی او د هغوی د متقابلی تقاطع نتیجه ده. معمولاً قوانین هغه وخت د تمایل شکل غوره کوی چی کله مختلفی او تضادی قواوی یو له بله سره لگیږی او ضمناً د هغو څخه یوه قوه غالبیږی او ځانته لاره پرانیزی. تمایل د پروسی د ټاکلی لوری، د پدیدی د تغییر یا پرمختگ ښکارندوی دی چی په عین حال کی د جسم د میخانیکی حرکت د لاری نه بلکه د مختلفو انحرافونو، پیچومو او داسی نورو حالتونو له موجودیت سره د پروسی د وروستی نتیجی په حیث عملی کیږی. فوقانی تمایل د خپلو گڼ شمیر مخالفو عواملو سره سره خپل عمل معلوموی. د پانگو د کاپتالستی تجمع عمومی قانون چی له هغه څخه د پانگی او شتمنی زیاتوالی په یوه اړخ او فقر په بل اړخ کی پیدا کیږی د ک. مارکس په قول د پانگو د کاپتالستی تجمع حتمی او عمومی قانون بلل کیږی*. په عین حال کی دا قانون د تمایل په حیث هم تبارز کوی ځکه چی گڼ شمیر عوامل شته چی د کار د احتیاطی اردو، عمومی فقر او داسی نورو پدیدو رشد زیاتولی یا کمولی شی چی په هغه جمله کی د پرولتاریا طبقاتی مبارزه شامله ده چی د کارگرو د اقتصادی وضعیت د خرابیدو سره مقابله کوی. دا قانون د ک. مارکس په قول «د ټولو نورو قوانینو په شان د عمل په میدان کی د گڼ شمیر شرطونو له مخی بدلون موسی»**. د خپل مضمون له مخی مطلق قوانین یعنی هغه قوانین چی د یوه فرماسیون د ماهیت له مخی د پدیدو ضروری رابطه څرگندوی د تمایل په چیث تبارز کولی شی.

د مارکسیزم ځینی منتقیدین عقیده لری چی تمایل اصلاً قانون نه دی او دا چی هغه قانون چی د تمایل په حیث عمل کوی بی‌معنی

---

* ک. مارکس او ف. انگلس. د آثارو مجموعه، ۲۳ ټوک، ۶۵۹ مخ وگورئ.

** ک. مارکس او ف. انگلس. د آثارو مجموعه، ۲۳ ټوک، ۶۵۹ مخ وگورئ.

خبره ده. مثلاً ک. پوپیر په همدغسی دریځ ولاړ دی چی پخپل مشهور کتاب «د تاریخیت فقر» کی عقیده څرگندوی چی قانون او تمایل اصلاً بیل شیان دی. د تمایلاتو فرض کول د پوپیر دپاره «یوازی گټور احصاییوی طرز دی»*.

مگر دغسی قضاوت غلط دی. په حقیقت کی نه یوازی په ټولنه بلکه په طبیعت کی هم قوانین صرف د اصلی تمایل په حیث رابرسیره کیدلی شی. توپیر دلته یوازی په دی کی دی چی ټولنیز ژوند ډیر مغلق دی او دا مغلق‌توب په تیره بیا د خودبخوده انکشاف په شرطونو کی د قوانینو عمل فوق‌العاده پیچلی کوی. ک. مارکس د کاپتالستی ټولنی د اقتصادی قوانینو په باره کی ویلی و چی په ټولنه کی «عمومی قوانین په ډیر پیچلی او تقریبی ډول عملی کیږی او د اصلی تمایل او د دایمی نوسانونو د منځنی تمایل حیثیت لری چی هیڅکله کلک ثبات نه پیدا کوی»**.

د اصلی تمایل تشخیص پخپله په ژوند کی کیږی. دا لکه څنگه چی ک. پوپیر یی تصور کوی یوازی تفکری احصاییوی طرز دی. مثلاً لکه چی و. ای. لېنین ثابته کړیده د ملی مناسباتو په ساحه کی دوه تمایلونه موجود دی. دا د ملی ژوند او ملی نهضتونو د ویښیدلو خوا ته تمایل او د ملتونو تر منځ د هر ډول روابطو د پراخولو او د ملی موانعو د له منځه وړلو خوا ته تمایل دی. «دواړه تمایلونه په حقیقت کی د کاپتالیزم نړیوال قانون شمیرل کیږی»***. و. ای. لېنین د دغه یا هغه تمایل عمده رول د کاپتالیزم په پرمختگ کی د بیلا بیلو دورو سره چی د هغو تبدیل یوه عینی او د خلکو له ارادی څخه خپلواکه پروسه ده مربوطاوه.

کله کله دا پوښتنه هم کیږی چی آیا په سوسیالستی ټولنه کی هم ټولنیز قوانین د فوقانی تمایل په شکل کی رابرسیره کیږی؟ ددی پوښتنی د ځواب دپاره موږ باید اول د ټولنیزو قوانینو د عمل

---

K. Popper. The Poverty of Historicism, p. 115—116. *

** ک. مارکس او ف. انگلس. د آثارو مجموعه، ۲۵ ټوک، لومړی برخه، ۱۷۶ مخ.

*** و. ای. لېنین. کلیات، ۲٤ ټوک، ۱۲٤ مخ.

دوه شکلونه یعنی خودبخوده (طبیعی) او منظم شکلونه وڅیړو. دا څیړنه به موږ د اقتصادي قوانینو د مثال له مخې وکړو.

## ٤. په سوسیالستي ټولنه کې د اقتصادي قوانینو د عمل خصوصیات

د سوسیالستي ټولنې اقتصادي قوانین د کاپیټالستي ټولنې د قوانینو څخه هم د خپل مضمون له مخې (ځکه چې نوي تولیدي مناسبات یعنې د استثمار څخه د خلاصو خلکو د رفیقانه همکارۍ او سوسیالستي متقابلې مرستې مناسبات څرګندوي) او هم د خپل عمل د خصلت له مخې اصلي توپیر لري. د سوسیالیزم اقتصادي قوانین چې لکه د کاپیټالیزم د اقتصادي قوانینو په شان عیني او د خلکو په شعور او آګاهۍ پورې تعلق نه لري خو بیا هم خودبخوده نه دي. که چیرې مثلاً په کاپیټالستي ټولنه کې د اقتصادي څانګو تر منځ د تولید د وسایلو او د کار ویش په غیرمنظمه توګه یعنې د تولید د رقابت، د تولید د انارشۍ، د ګټو د منځنۍ اندازې او نورو قوانینو په ذریعه ترسره کیږي نو په سوسیالستي ټولنه کې دا ویش په آګاهانه طرز او د ملي اقتصاد د منظم او متناسب پرمختګ د قانون، د اساسي اقتصادي قانون او د نورو عیني اقتصادي قوانینو د ایجاباتو سره سم ترسره کیږي. په سوسیالستي ټولنه کې د اقتصادي قوانینو د عمل د میخانیزم د بدلون علت یوازې دا نه دی چې خلکو دا قوانین درک کړي او له هغو څخه پخپل اقتصادي فعالیت کې استفاده کوي. البته د عیني قوانینو درک کول او د هغو څخه عملي استفاده د طبیعي قواو د ایل کولو او د خلکو تر کنټرول لاندې د هغو د راوستلو ضروري شرط دی. مګر د قوانینو څخه د عملي استفادې امکان لکه د هغو د عمل د میخانیزم په شان د خلکو د ژوند په عیني شرطونو سره تاکل کیږي. یوازې هغه وخت چې کله د کاپیټالیزم د اقتصادي قوانینو پر ځای چې د مالونو د خصوصي مولدینو متقابل مناسبات څرګندوي نوي اقتصادي قوانین یعنې سوسیالستي قوانین راځي چې د هغو مولدینو چې د تولید پر وسایلو باندې په اشتراکي مالکیت سره متحد شویدي متقابل مناسبات څرګندوي نو د ملي اقتصاد پرمختګ د خودبخوده پروسې خصلت له لاسه ورکوي.

د سوسیالیزم اقتصادي قوانین داسي دي چي د خلکو آګاهانه فعالیت پیش‌بیني کوي. مثلاً د منظم او متناسب پرمختګ قانون د خپل ماهیت له مخي دا ایجابوي چي ټولنه په آګاهانه طرز سره د تولید پروسه تنظیم کړي. که چیري د کاپټالستي ټولني اقتصاد خودبخوده پرمختګ کوي نو د سوسیالستي اقتصاد پرمختګ د آګاهانه لارښودني څخه پرته ناممکن دی.

څرګنده ده چي ځیني معاصر تجدید نظر غوښتونکي په دي عقیده چي سوسیالیزم خودبخوده رشد کوي د ټولني د لارښودني وظایف دي ته رسوي تر څو چي د «سوسیالستي طبیعي خصلت» د بی‌کنتروله عمل د پاره شرطونه برابر کړي. هغوی د خپلي دغي نظریي مطابق حتی د «سوسیالستي ټولني د جوړولو» د اصطلاح له استعمالولو سره مخالفت لري او هغه نادرسته بولي.

دغسي نظریي په حقیقت کي سوسیالستي اقتصاد ته هغه خصوصیات ورکوي کوم چي د خودبخوده پرمختلونکي کاپټالستي اقتصاد خصلت شمیرل کیږي.

په حقیقت کي سوسیالیزم خودبخوده رشد نه شي کولی. سوسیالیزم د کلمي په ریښتوني معنی سره جوړیږي. د سوسیالستي ټولني پخپله طبیعت داسي دي چي هغه د زیاراېستونکو پرګنو د آګاهانه او منظمو فعالیتونو له فیضه منځ ته راځي او تکامل مومي. د سوسیالیزم دا خصوصیت له څه شي څخه سرچینه اخلي؟

تر ټولو دمخه دا خصوصیت د تولید پر وسایلو باندي د ټولنیز مالکیت د تسلط څخه سرچینه اخلي چي د هغه په اساس د ملیونهاو خلکو منظم او آګاهانه فعالیت او د سوسیالستي اقتصاد د پرمختګ د پاره د هغوی د کوششونو وحدت امکان پیدا کوي او ضرورت ته اوړي.

سوسیالستي ټولنه ددی توان لري چي د خپل تولیدی فعالیت نه یوازي نژدي بلکه تر ټولو لري نتیجي وسنجوي. د ټولي ټولني د مادي او کلتوري اړتیاو لري کولو ته د تولیداتو وقف کول په دي معنی دي چي د ټولني پرمختګ د هغه مقصد په نامه کیږي چي په اصولی توګه د ټولو پخوانیو ټولنو د تولیدی مقاصدو څخه توپیر لري. کاپټالستي فابریکه‌والا یوازي د خپلو نژدي مغرضانه ګټو د ترسره کولو، د تر ټولو اعظمي ګټو د تر لاسه کولو

خوا ته تلاش کوی چې بالاخره د طبیعي او ټولنیزو منابعو د غارت‌گرانه اسراف موجب کیږي. برعکس سوسیالستي ټولنه چې تولیدات د خلکو د اړتیاو لري کولو ته وقف کوي ددې د پاره ټول شرطونه لري تر څو چې په زیات مصلحت‌آمیزه طرز اقتصاد پر مخ بوزي او نه یوازې د نن ورځې ګټې بلکه په آینده کې هم د اقتصاد او کلتور د تر ټولو ګړندي انکشاف وظایف په نظر کې نیسي.

او په سوسیالستي ټولنه کې هم ځانګړي تولیدوونکي چې د تولید په پروسه کې یو لړ تکامل پیښوي نه شي کولی چې د هغو ټولنیز عواقب په نظر کې ونیسي. ولې د دې تولیدوونکي د عقل څخه سربیره د خلکو اشتراکي عقل شته چې په کمونست ګوند او د ګوند او دولت په لارښوونکو ارګانونو کې یې تجسم موندلی کوم چې په دقت سره هغه نوي ډنډرګۍ چې د خلکو په خلاقیت تولید شویدي مطالعه کوي، د هغو له ودې سره مرسته کوي او د تر ټولو پراخو پرګنو سره مرسته کوي چې د هغو په ټولنیز ارزښت باندې پوه شي. په دې بنیاد په سوسیالستي ټولنه کې د خلکو لا زیاتي پراخې پرګنې د ټولنې د پرمختګ آینده امکاناتویني او د هغو سره سم خپل عملي او ایجادکارانه فعالیت عیاروي.

ژوند تل تر تیوريء شتمن دی. ټولنیز شعور که حتی د ټولنې د تر ټولو مترقي قشرونو شعور هم وي او د ټولنیز ژوند ښکارندوي وي نه شي کولی چې ټولنیز ژوند په بشپړه توګه احتواء کړي. هغه قوانین چې د ټولنې د علم له خوا کشف شوي دي د هغې د انکشاف یوازې اساسي تمایلات ښکاره کوي. ځکه خو څرګنده خبره ده چې د سوسیالیزم په شرطونو کې هم خلک نه شي کولی چې د خپل ورځنې تولیدي فعالیت ټولې ځانګړي نتیجې وسنجوي. مګر دا اصلاً ددې معنی نه لري چې هغوي د اقتصادي پرمختګ د جریان د اداره کولو توان نه لري. د ټولنې د انکشاف د اساسي تمایلاتو پوهنه امکان برابروي چې په مصلحت‌آمیزه توګه فعالیت وشي او ټاکلي مقاصد ترسره شي.

د سوسیالستي ټولنې د هغو یا دغو مقاصدو مشخص ښکارندوی د ملي اقتصاد د پرمختګ پلانونه دي. په شوروي اتحاد او د نړیوالې سوسیالستي اتحادیې په نورو هیوادونو کې د دغو پلانونو انجامولو

د سوسیالستی ټولنی د پاره د خپل راتلونکی انکشاف د مقاصدو د ټاکلو او په منظمه توګه د ټاکلو هدفونو د ترسره کولو پوره امکان ثابت کړېدی. په عملی ډول ثابته شویده چی نه یوازی د صنعت او کرهنی د پرمختګ د مشخصی سویی بلکه په هغو پوری مربوط د ټولنیزو تحولاتو د لاسته راوستلو امکان شته دی. په دی ترتیب د شوروی هیواد زیارایستونکی چی د شوروی اتحاد د ملی اقتصاد د پرمختګ پلانونه انجاموی نو پوهیږی چی د کمونستی ټولنی خوا ته په لاره کی نوی ګامونه اوچتوی.

د سوسیالستی ټولنی د جوړولو د سولهایزو کارونو په لوسړیو کلونو کی و. ای. لېنین په تاریخ کی د پوره نادری پیښی په حیث د هغه امکان په باره کی خبری کولی چی د ژورو ټولنیزو تغییراتو د راوستلو د پاره د ضروری مودو د ټاکلو په مقصد موږ ته لاسته راغلی و. هغه ویلی و چی «موږ اوس په څرګنده وینو چی په پنځو کلونو کی څه شی کولی شو او د کوم مقصد د پاره تر دی لا زیات وخت ته ضرورت لرو»*. نن ورځ دغسی پیشګویی د تاریخ نادره پیښه نه ده بلکه د سوسیالستی ټولنی د موفقانه انکشاف حتمی شرط شمیرل کیږی.

د تولید پر وسایلو باندی د اشتراکی مالکیت د برقراریدو او په دی اساس باندی د ټولنی د ټولنیز، سیاسی او مفکوروی وحدت د منځ ته راتلو له فیضه په سوسیالستی ټولنه کی تاریخی پرمختګ (په تیره بیا د تولید پرمختګ) د هغو ګڼ شمیر تمایلاتو چی یو له بله سره نقاضت لری او د متخاصمو ګټو د سره لګیدو نتیجه نه ده. دا تاریخی پرمختګ د ګڼ شمیر خلکو چی په عمومی صورت او تماماً په یوه لوری کی فعالیت کوی د کوششونو نتیجه ده. په سوسیالستی ټولنه کی نه یوازی ځانګړی اشخاص او ځانګړی اجتماعی ډلی بلکه درسته ټولنه په آګاهانه او هدف تعقیبوونکی توګه فعالیت کوی. اصلی ګټی او په دی بنیاد اصلی مقاصد د ټول ولس د پاره یو شی دی. ددی له برکته د ټولنیزی پروسی نتیجی د خلکو د مقاصدو او تمایلاتو سره تطابق پیدا کوی او د ټولنی په ټولو

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ٤٥ ټوک، ٣٨٥ مخ.

ساحو کی د پرمختګ د ګړندیتوب اندازه بی حده زیاتوی. د اقتصادی قوانینو د ایجاباتو تعمیل په دی ټولنه کی د دښمنو طبقاتو د مقاومت سره نه مخامخ کیږی. د ټولنی ټولنیز او سیاسی وحدت د ټول ولس په ګټو د قوانینو څخه د استفادی د پاره تر ټولو مساعد شرطونه برابروی.

په تیره بیا په پرمختللی سوسیالستی ټولنه کی د دی مقصد د پاره امکانات پراخیږی په کومو کی چی د ل. ای. بریژنف په قول «د نوی ټولنی د پخیدو داسی پوړ او داسی مرحله ترلاسه شویده چی کله د اشتراکی اساساتو پر بنا چی د سوسیالیزم باطنی خصلت دی د ټولنیزو مناسباتو د ټولی مجموعی بدلون بشپړیږی. د سوسیالستی قوانینو د عمل او د ټولنیز ژوند په ټولو ساحو کی د سوسیالیزم د برتریو د څرګندولو د پاره پراخه زمینه، د ټولنیز سیستم نه‌ماتیدونکی تمامیت او تحرک، د هغه سیاسی ثبات او نه‌ماتیدونکی باطنی وحدت ــ دا د پرمختللی سوسیالستی ټولنی تر ټولو مهم فارقه مشخصات شمیرل کیږی»*.

د پرمختللی سوسیالستی ټولنی په شرطونو کی د قوانینو تطبیقول د اقتصاد د نورو سیستمونو یا ټولنیزو طبقاتو په شان له موانعو سره نه مخامخ کیږی. مګر دلته هم د قوانینو تطبیق په اواره توګه او بی له خنډونو او مشکلاتو نه وی.

د سوسیالستی ټولنی ټولنیز او سیاسی وحدت، په سوسیالیزم کی د ټول ولس دپاره د واحد مقصد موجودیت ددی معنی نه لری چی ګنی په دغسی شرطونو کی د ګټو تر منځ تضادونه اصلاً نشته، طبیعی قواوی او تمایلات چی د پرمختګ عمومی لوری مخه نیسی وجود نه لری. مثلاً د خصوصی مالکیت د تمایلاتو موجودیت چی لا تر اوسه هم لیدل کیږی په سوسیالستی ټولنه کی غیرمنظم عنصر شمیرل کیږی او په همدی صفت د ټولنی د پرمختګ چی په آګاهانه طرز سوق شوی وی په مخ کی دریږی. په سوسیالستی ټولنه کی د پلان له مخی د اقتصاد لارښودنه چی د عمومی دولتی او عمومی ولسی ګټو ښکارندوی

* ل. ای. بریژنف. د لېنینی تګلاری په پیروی. ویناوی او مقالی، ۶ ټوک، مسکو، ۱۹۷۸، ۶۲۷ مخ.

همېرل کېږي د ډول ډول ضد دولتي، محلي‌پرستو او اداري‌پرستو مظاهرو پر ضد په مبارزه کې عملي کېږي. تخنيکي پرمختګ اکثراً د اقتصادي څانګو او د انجنيرۍ د تخنيکي کارکوونکو د يوې برخې په محافظه کارۍ، د توليد د زړو متودونو او د کار د وسايلو سره د پخواني عادت په ذريعه او همدغه‌رنګه د نوي تخنيک د ترويج د اقتصادي ګرنديتوب په سيستم کې د نواقصو په ذريعه له ځنډونو سره مخامخ کېږي. د دې په نتيجه کې توليدي موسسه ډېر ځله د دې پر ځاي چې د محصولاتو د نوو او زياتو بشپړو شکلونو له توليد سره چې د تخنولوژيکي پروسې مجدد تنظيم غواړي علاقه ولري د هغو محصولاتو چې پخوا اختراع شوي او که څه هم زاړه وي د توليد د پلان په عملي کولو لاس پورې کوي.

د پانګې ايښودنو د تيت او پرک کيدلو په نتيجه کې په ځينو وختو کې د هغو مؤثريت ټيټيږي. ددې پرځاي چې پانګې په هغو پروژو کې چې په کار اچولو ته نژدې دي متمرکزې او هغه ژر تر ژره په کار واچول شي اکثراً په نوو او نوو تعميراتي حوزو کې پيسې اچول کيږي چې په ټولو ضروري وسايلو سره نه شي سنباليدلی. محلي ارګانونه او اداري کله کله دې ته بيړه کوي چې تعمير شروع کړي تر څو چې تخصيص شوي پيسې ترلاسه کړي مګر د پروژو په کار اچول ځنډيږي.

آيا د دغسې پديدو د پاره چې د تخنيکي پرمختګ د ګړنديتوب او د توليد د مؤثريت د زياتوالي په مقصد د ټولو امکاناتو څخه د استفادې مخه نيسي کوم عيني اساس شته دی؟ هو، دا د اوسنيو او راتلونکو ګټو د محلي، د ادارو او د عمومي ولسي ګټو تر منځ اختلافات دي. لکن دغسې اختلافات د معقول اقتصادي سياست په مرسته په کاميابۍ سره له منځه وړل کيږي. دا سياست نه يوازې عمومي بلکه خاصي ګټې (په هغه جمله کې محلي، ځانګيزې او داسې نورې ګټې) په نظر کې نيسي او په مؤثره توګه هغه د عمومي ولسي او عمده ګټو سره توحيدوي. په عين حال کې دا سياست محلي او ځانګيزې ګټې په داسې حال کې چې هغه ناروغه او نادرست خصلت پيدا کړي محدودوي. د شوروي اتحاد د کمونست ګوند د مرکزي کميټې، د شوروي اتحاد د وزيرانو د شورا، د سر تر پايه شوروي

هیواد د مسلکی اتحادیو د مرکزی شورا او د سرتربایه شوروی هیواد د ځوانانو د لېنینی کمونستی اتحادیی د مرکزی کمیټی په لیک کی (۱۹۷۸ کال) ویل کیږی چی «په کار دی چی په هر ځای کی او په ټولو کارونو کی عمومی دولتی ګټی په نظر کی ونیول شی او په قطعی توګه د اداره پرستۍ او محل پرستۍ عناصر له منځه ایسته کړی شی».

کمونسف ګوند د شوروی ټولنی د لارښوونکی قوی په حیث د عاطلو عناصرو پر ضد، د هر ډول زړو پدیدو په خلاف چی د سوسیالیزم د پرمختګ سره مخالفت لری کلکه مبارزه کوی ځکه چی د هغو د له منځه وړلو څخه پرته د سوسیالستی قوانینو غوښتنی په بشپړه اندازه نه شی ترسره کیدلی.

معقول اقتصادی سیاست د اقتصادی فعالیت شکلونه او طرزونه د مولده قواو د ګړندی پرمختګ سره متوافق کوی او د ملی اقتصاد د ټولو برخو، د ټولو اجتماعی ډلو، ملتونو او قومونو چی شوروی ولس تری جوړ شویدی ګټی په یوه مسیر کی سوق کوی.

د سوسیالیزم اقتصادی قوانین د خپل ماهیت له لحاظه غیرمنظم نه دی او د ټولنی د اقتصادی ژوند آګاهانه لارښودنه غواړی. په عین حال کی د دغو قوانینو تطبیق داسی طبیعی عواقب پیدا کولی شی چی د هغو پیش‌بینی نه وی شوی. دا هغه وخت هرومرو پیښیږی چی خلک د قوانینو ایجابات و نه سنجوی او د هغو پر خلاف عمل وکړی.

په کاپټالستی ټولنه کی د تصادف له نیرنګه ډکه لوبه چی د هغی تر شا باطنی ضرورت پټ وی د پدیدو په ظواهرو کی په کثرت سره لیدل کیږی. و. ای. لېنین لیکلی و چی «پوره طبیعی خبره ده چی د مالونو د انفرادی مولدینو چی د بازار سره پیوند لری په ټولنه کی قانونمندی دغی یا هغی خوا ته د انفرادی میلانونو په متقابلو تادیاتو کی د متوسطی ټولنیزی عمومی قانونمندۍ څخه پرته بل شکل نه شی غوره کولی»*.

ولی په سوسیالستی ټولنه کی دا چاره څنګه ده؟ آیا په سوسیالستی

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۲۶ ټوک، ۶۸ مخ.

ټولنه کی دا حتمی ده چی قانونمندی د تصادف له لاری رابرسیره شی؟
ځینی پوهان د سوسیالیزم خصوصیت په دی کی وینی چی دلته ضرورت خامخا د تصادف له لاری تبارز نه کوی او پخپله پیدا کیږی. په حقیقت کی په نړۍ کی ضرورت په هیڅ ځای کی په «خالص» شکل منځ ته نه راځی. په ټولو هغو پروسو کی چی په طبیعت یا په ټولنیز پرمختګ کی پیښیږی ضرورت د ګڼ شمیر تصادفونو له لاری تبارز کوی. دا البته په سوسیالستی ټولنه کی هم لیدل کیږی. او دلته هم د هر اقتصادی قانون عمل د یو لړ تصادفونو په ذریعه مغلق کیږی او تکمیلیږی. په سوسیالستی ټولنه کی نوی پدیده په دی کی نه ده پرته چی ضرورت د تصادف څخه پرته وجود درلودلی شی بلکه په دی کی پرته ده چی د تصادفونو رول تغییر موسی او د پرمختګ په پروسه باندی د هغو د اغیزی اندازه بدلیږی.
لکه څنګه چی ک. مارکس او ف. انګلس پیش‌بینی کړی وی په سوسیالیزم کی ټولنه کولی شی چی «پر افرادو باندی د مناسباتو او تصادفونو د تسلط پر ځای پر تصادفونو او مناسباتو باندی د افرادو تسلط برقرار کړی»*. د غیرمنظمی پروسی په شرایطو کی ضرورت د غیرمترقبه تصادفونو په جریان کی تبارز موسی چی پر افرادو باندی تسلط لری. کله چی انکشاف منظم شی نو خلک کولی شی چی تصادفونه د ځان تابع کړی. هغوی کولی شی چی د انکشاف پروسه اداره کړی او په دی اساس هر ډول نامساعد تصادفونه له منځه یوسی او پر طبیعی قواو باندی تسلط پیدا کړی.
مګر څنګه چی دلته هم له هغه څه څخه چی د اقتصادی قوانینو غوښتنی یی ایجابوی دغی یا هغی خوا ته انحرافونه حتمی دی نو دا قوانین هم په اصطلاح په «خالص» شکل او د هر ډول فرعی پدیدو څخه پرته نه بلکه د اصلی تمایلاتو په شکل تبارز موسی. یوازی د قوانینو د تبارز داسی شکل له منځه ځی چی کله هغه د طبیعت د متضادو قواو د لوبی د فیصله کوونکی قوی په حیث رابرسیره کیږی.
په سوسیالستی ټولنه کی د ګټو تضادونه هم موجود وی. مګر

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۳ ټوک، ۴۴۰ مخ.

په سوسیالستی ټولنه کی د اصلی او ریښوی ګټو وحدت لیدل کیږی او په دی اساس دا تضادونه د کاپتالستی ټولنی په مقایسه چیری چی د ټولنیزو مناسباتو ټول سیستم له نقاضت څخه ډک دی بل ډول خصلت لری. سره ددی چی په سوسیالستی ټولنه کی د اقتصادی قوانینو تطبیقول له یو لړ ځنډونو سره مخامخ کیږی د کومو په باره کی موږ پورته خبری وکړی مګر دا ځنډونه داسی نه دی چی د اقتصادی قوانینو ایجابات د هغو د نه‌تطبیقیدو له لاری تر سره شی. په سوسیالستی ټولنه کی عمومی خوځون د بیلا بیلو طبقاتی قواو د سره لګیدو نتیجه نه ده او دا هغه عمده شی دی چی د کاپتالستی ټولنی په مقایسه د اقتصادی قوانینو د عمل بل ډول میخانیزم ټاکی. مګر دا هم باید هیره نه شی چی ممکنه ده چی د قوانینو د غوښتنو څخه انحرافونه پیښ شی چی سبب یی په اقتصاد کی بی‌تناسبی، د انفرادی او عمومی ګټو عدم توافق او داسی نور عوامل وی.

## ۵. د ټولنیز پرمختګ د قوانینو څخه د استفادی ترتیب

د شوروی اتحاد کمونست ګوند د خپلو کنګرو او پلنومونو په فیصلو کی دایماً د پرمختللی سوسیالستی ټولنی او کمونستی ټولنی ته د هغی د اوښتون د قوانینو د عمل او استفادی د ترتیب د پلټنی ضرورت ته اشاره کړیده.

د ټولنیز پرمختګ د قوانینو «د عمل د ترتیب» او «د استفادی د ترتیب» مفاهیم لکه څنګه چی زموږ په فلسفی او اقتصادی آثارو کی ذکر شویدی یو شی نه دی. د قوانینو د عمل د ترتیب څخه مطلب د قوانینو د عمل عینی لوری دی کوم چی بالاخره د ځان دپاره لاره پرانیزی. د استفادی د ترتیب څخه مقصد د خلکو آګاهانه او هدف تعقیبوونکی فعالیت دی چی د قوانینو د غوښتنو مطابق ترسره کیږی او د هغو د تجربوی یا نظری ادراک څخه پرته ناممکن دی.

«د قوانینو څخه د استفادی» معنی څه شی ده؟ په هر صورت که خبره د طبیعت یا د ټولنی په قوانینو باندی وی پخپله دا مفهوم د

قوانینو له عمل سره د انسان مشخص عملی برخورد څرگندوی. د قوانینو څخه د استفادی معنی دا ده چی خلک په هر صورت له قوانینو څخه د خپلو گټو په غرض کار اخلی او په خپل عملی فعالیت کی پر هغو اتکاء کوی.

البته د قانون څخه استفاده د هغه د عمل د ساده متابعت په معنی نه دی. مثلاً د ځمکی د جاذبی د قانون په استفاده د ریل ځوړند پټلۍ جوړه شویده چی وړوکی واگون په هغی باندی د جاذبی د قوی تر اغیزی لاندی ښکته کیږی. سکی وهونکی هم چی کله له غره څخه راکوزیږی د دغه قانون څخه استفاده کوی. مگر همدا قانون په بل ډول هم څرگندیدلی شی چی کله د مثال په توگه د واورو راښی غرگرځیدونکی پاڼ ته راکاږی. په دی مورد کی البته د قانون څخه د استفادی په باره کی خبری اصلاً بیځایه دی.

باید دا هم په نظر کی ونیول شی چی د قانون سره د خلکو هر ډول برخورد هم د قانون څخه استفاده نه شی بلل کیدلی. د قانون د عمل په نتیجو باندی نفوذ د قانون د تباه‌کوونکو عواقبو د مخنیوی یا د هغو د کمولو خوا ته د خلکو په تمایلاتو کی هم څرگندیږی. د تخنیک په اوسنی پرمختگ کی انسان نه شی کولی چی ټولی طبیعی قواوی د خپلی ارادی تابع کړی او یا یی خپل خدمت ته وگماری. مثلاً انسان د دی توان نه لری چی د جیولوژیکی پروسو چی زلزله پیدا کوی مخه ونیسی. ولی سره ددی هم کولی شی چی قسماً د هغو پیشگویی وکړی او په داسی اقداماتو لاس پوری کړی چی د هغو د تاوان اندازه کمه کړی.

په دی ترتیب د قوانینو سره د انسان د عملی برخورد شکلونه ډول ډول دی چی د قوانینو څخه «د استفادی» په مفهوم باندی نه ختمیږی. خلک کولی شی چی په قوانینو باندی اتکاء وکړی او له هغو څخه په خپل عملی فعالیت کی کار واخلی، د هغو د عمل ساحه پراخه کړی او د هغو د پاره لوی امکانات پرانیزی مگر هغوی دا هم کولی شی چی د نورو قوانینو د عمل ساحه محدوده کړی او د هغو د تباه کوونکو عواقبو مخه ونیسی یا یی کم کړی.

د قوانینو څخه استفاده تل د عامل (ذات) او شخص مؤثر فعالیت ته ضرورت لری او پرته له هغه ناممکنه وی. دا چی دغه

ډول فعالیت په عینی مناسباتو کی څومره ژور تغییرات پیښوی بله مسئله ده. د مؤثر فعالیت څخه پرته د قانون له ایجاباتو سره د خلکو ساده توافق د قوانینو څخه د آگاهانه استفادی او د هغو د طبیعی عمل تر منځ چی د یوه بهیر په شان ځنګ په ځان پسی را کاږی سرحد ایسته کوی.

د ټولنیز ژوند خصوصیت په دی کی پروت دی چی د خلکو فعالیت مستقیماً د ټولنیز پرمختګ د قوانینو د عمل سره پیوند شویدی. هغه اصلاً د قوانینو کوم بهرنی عامل نه دی. که چیری مثلاً د ټولنی مترقی قواوی د مولده قواو د پرمختګ د خصلت او سویی سره د تولیدی مناسباتو د تطابق له قانون څخه استفاده کوی او د نوی ټولنیز نظام د برقرارولو په لاره کی پخپله مبارزه کی په دی قانون ډډه لګوی نو پخپله دغه مبارزه د ټولنیز پرمختګ د ټاکلو قوانینو (مثلاً د طبقاتی مبارزی د قانون) د عمل ښکارندوی شمیرل کیږی. د وروستنی مورد په برخه کی دا هغه عملیات دی چی د طبقاتی مبارزی په قانون سره ټاکل کیږی او په لوسړی موردکی دا د قانون څخه استفاده شمیرل کیږی.

د طبیعت د قوانینو پر خلاف د ټولنیز پرمختګ زیاتره قوانین په طبقاتی ټولنه کی د مختلفو طبقاتو د مبارزی له لاری تطبیقیږی.

څنګه چی په هغه ټولنه کی چی د متضادو طبقاتو څخه جوړه شوی وی د ټولنیز انکشاف په ګټه د اقتصادی قوانینو څخه استفاده د طبقاتی مبارزی سره ارتباط لری نو څرګنده ده چی د طبقاتی قواو تناسب او د هغو د مبارزی جریان د هغو تحولاتو چی په تاریخی لحاظ یی وخت رارسیدلی وی د تر سره کولو په میعاد کلکه اغیزه کولی شی. عمر خوړلی طبقات کولی شی چی پخپل مقاومت سره د تاریخی پرمختګ جریان وځنډوی مګر څرنګه چی هغوی د ټولنیز پرمختګ د عینی قوانینو پر خلاف عمل کوی نو هغوی په نهایت کی ځانونه په حتمی ناکامۍ محکوموی. د ټولنی عمرخوړلی قواوی چی یوازی د حوادثو جریان ورو کولی شی که هر څومره د موانعو د ایجادولو تلاشونه وکړی د تاریخ قوانین د ځان په وړاندی په کلک زور سره لاره ځانته پرانیزی. له بله پلوه د دغو قوانینو

څخه د مترقي ټولنيزو قواو له خوا آګاهانه استفاده د تاريخ جريان تر ډيري اندازي پوري ګړندي کولی شي.

د ټولنې د پرمختګ د قوانينو څخه د استفادې امکانات په يو لړ شرطونو پوري ارتباط لري چې په تاريخي لحاظ تشکل موندي. دا شرطونه په عمده توګه په عيني او ذاتي شرطونو ويشل کيږي.

د قوانينو ادراک يا اقلاً د هغو د عمل د مشخصو ګټورو عملي نتيجو پيژندل ذاتي شرط شميرل کيږي چې د ټولنيز پرمختګ د قوانينو څخه د عملي استفادې د پاره ضروري دی.

په کار دی چې د قوانينو تجربوي استفاده د هغې استفادې نه تفريق شي چې په علمي پوهه ابتناء ولري. په همدې ډول تجربوي مخکېليد چې په ځينو حدسياتو باندي ولاړ وي د علمي مخکېليد څخه بيليږي. علمي مخکېليد امکان برابروي چې انسان له معمولي فعاليت څخه هغه فعاليت ته چې په دقيق علمي سنجش بنا وي انتقال وکړي.

ځکه خو نو ددې نظريې سره موافقه نه شي کيدلی چې په ماقبل سوسيالستي فرماسيونونو کې د اقتصادي قوانينو د خودبخوده عمل په وجه له هغو څخه استفاده نه کيدله.

د اقتصادي قوانينو څخه د استفادې نه ددې نظريې د خاوندانو مطلب د ټولنې د کنترول لاندې د خودبخوده فعالو قوانينو راوستل دي. دا کار البته يوازې په سوسيالستي ټولنه کې ممکن دی. مګر په نورو نسبتاً محدودو شکلونو کې د قوانينو څخه استفاده پخوا هم ليدل کيده او په کاپيتالستي ټولنه کې ليدل کيږي. مارکسيزم او لېنينيزم د بازاري «اقتصادي ماترياليزم» پر عکس د سوسياليزم څخه په مخکې فرماسيونونو کې پر خلکو باندې د طبيعي قواو د تسلط په منلو سره د طبقاتي متضادې ټولنې تاريخ اصلاً د يوې غيرمنظمې پروسې په حيث نه څيړي.

د ذاتي شرطونو تر څنګ چې د ټولنې په ګټو د اجتماعي پرمختګ د قوانينو څخه د عملي استفادې د پاره ضروري شميرل کيږي عيني شرطونه هم شته دي. تر ټولو لوړې د ټاکلو ټولنيزو قواو چې ددې توان لري چې دا وظيفه په غاړه واخلي او که چيري مطلب په طبقاتي ټولنه باندي وي د ټاکلو طبقاتو موجوديت په دغو

شرطونو پوری منسوب دی. د ټولنیز پرمختګ له قوانینو څخه د خلکو د مشتتو فعالیتونو له لاری د ټولنی په ګټو استفاده نه شی کیدلی. ددی کار دپاره تنظیم شوی ټولنیزی قواوی په کار دی. په طبقاتی ټولنه کی مترقی طبقات د دغسی قوی رول لوبوی چی ګټی یی تر زیاتی یا کمی اندازی پوری د اجتماعی پرمختګ له ګټو سره مطابقت پیدا کوی او په دی وجه ددی توان لری چی د خلکو زیاتی یا کمی پراخی پرګنی په ځان پسی روانی کړی.

په دی ذریعه په خاصو یا محدودو طبقاتی ګټو د اقتصادی قوانینو د استفادی امکان البته نه ردیږی. مثلاً کله چی پانګوال نوی ماشینونه په کار اچوی، د مالونو اصلی ارزښت کموی نو زیاته ګټه ترلاسه کوی او په دی ترتیب د ارزښت له قانون څخه پخپلو ګټو استفاده کوی. د دولتی انحصاری پانګوالۍ په شرطونو کی د اقتصادی پرمختګ د «پروګرامی کولو» ډول ډول اقدامات ترسره کیږی.

مګر دلته په کلی توګه د ټولنیز پرمختګ د پروسی اداره او د انسان د ارادی د طبیعی قواو متابعت وجود نه لری. سره د دی چی بورژوا د ارزښت قانون او نور قوانین په کاروی مګر په هر صورت د هغو د طبیعی عمل تر تاثیر لاندی پاته کیږی.

که چیری په کلی توګه د ټولنیز پرمختګ د طبیعی قواو د متابعت په باره کی خبری وشی نو دا کار یوازی هغه وخت ممکن دی چی کله د قوانینو څخه د ټولنی په ګټو او د اجتماعی انکشاف په ګټو استفاده کیږی. ځکه خو نو مترقی طبقات چی د اجتماعی پرمختګ په لاره کی مبارزه کوی د تاریخ رښتونی جوړوونکی شمیرل کیږی. هغه انقلاب چی د دوی له خوا تر سره کیږی د آګاهانه فعالیت، د مولده قواو او تولیدی مناسباتو د آګاهانه بدلون دورانونه دی.

پرولتاریا په تاریخ کی د تر ټولو انقلابی طبقی په حیث تبارز کوی او د هغی ګټی په تر ټولو زیاته اندازه د ټولنی د غالب اکثریت د ګټو، د تاریخی پرمختګ له ګټو سره مطابقت لری. دا د پرولتاریا دپاره د ټولنیز پرمختګ د قوانینو څخه د پراخی استفادی امکان برابروی.

لا په کاپیتالستی ټولنه کی کارګری طبقه د بورژوازۍ پر ضد پخپله انقلابی مبارزه کی د ټولنیز پرمختګ پر ځینو قوانینو باندی

اتکاء کوی او په دی لاره کی له هغو څخه استفاده کوی. مگر په هغو شرطونو کی کارگری طبقه د تولید د وسایلو خاونده او چلوونکی عامل نه وی. ځکه خو نو د اقتصادی قوانینو څخه مستقیماً د اقتصادی پروسو د اداره کولو په منظور استفاده نه شی کولی. د کاپتالیزم د اقتصادی قوانینو او د هغه د تولیدی مناسباتو چی د تولید پر وسایلو د خصوصی مالکیت په اساس ولاړ دی پخپله خصلت دغه ډول استفاده له منځه وړی. د دی د پاره چی د اقتصادی پرمختگ د پروسی اداره په لاس کی واخیستی شی په کار دی چی د تولید وسایل د ټولنی په شتمنۍ بدل شی او دا کار یوازی د سوسیالستی انقلاب په نتیجه کی ترسره کیږی.

د سیاسی واک د تر لاسه کولو څخه وروسته کارگری طبقه هغه تر ټولو مهم وسایل چی د اقتصادی قوانینو څخه د استفادی د پاره ضروری شمیرل کیږی په خپل اختیار کی اخلی. کارگری طبقه حاکمی طبقی ته اوړی، سیاسی قدرت په خپلو لاسو کی ساتی او د هغه په مرسته په کاپتالستی مناسباتو برید کوی، هغو ته تغییر ورکوی او سوسیالستی مناسبات برقراروی.

په سوسیالستی ټولنه کی د ټولنیز پرمختگ د قوانینو څخه د استفادی د پاره تر ټولو مساعد شرطونه برابریږی. لومړی دا چی تر ټولو مهم قوانین درک شویدی او د هغو آگاهانه پیروی کیږی. د سوسیالستی ټولنی سیاست په کلک علمی اساس او د ټولنیز پرمختگ د قوانینو په ادراک باندی ولاړ دی. دا د سوسیالستی ټولنی د غړو په وړاندی د منظم فعالیت د پاره چی په پخوانیو ټولنو کی خلک ځنی محروم و پراخ امکانات پیدا کوی. دوهم دا چی په سوسیالستی ټولنه کی د ټولنی مترقی قواوی او سوسیالستی دولت د قوانینو څخه د استفادی او په اقتصادی پرمختگ باندی د اغیزی د پاره مادی وسایل په اختیار کی لری. دولت د تولید د تر ټولو مهمو وسایلو مالک دی او د ملی اقتصاد د پلان جوړولو له لاری د تولید پروسه اداره کوی، اساسی مالی منابع پخپلو لاسونو کی متمرکز کوی او داسی نور. دریم دا چی د ټولنیز پرمختگ د قوانینو څخه د استفادی د پاره په سوسیالستی ټولنه تر ټولو مساعد شرطونه ځکه برابریږی چی په دغه ټولنه کی هغه ارتجاعی طبقی چی په استثماری ټولنه کی د مهمو

وظیفو د سرته رسولو او د ټولنیز پرمختګ مخه نیسي وجود نه لري.

په سوسیالستي ټولنه کې د تاریخي شرطونو د تغییر په مناسبت د ټولنیز پرمختګ د قوانینو د عمل پخپله خصلت هم بدلیږي. د قوانینو د عمل هغه شکل چې د سوسیالستي ټولنې سره تطابق پیدا کوي د هغو څخه منظمي استفادي ته اوړي چې د ټولنیز پرمختګ طبیعي قواوې د خلکو د ارادي تابع کوي.

لازمه ده چې په خاصه توګه دا خبره وڅیړله شي چې د طبیعت او د ټولنیز ژوند قوانین په کوم ترتیب د خلکو له خوا تر استفادي لاندي نیول کیږي.

د قوانینو څخه استفاده تر ټولو دمخه او په اصلي توګه د هغو د عمل پر شرطونو باندي د اغیزي له لاري ترسره کیږي. خلک د طبیعت او یا د ټولنیز پرمختګ قوانین نه ایجادولی شي او نه خو یې لغو کولی شي. مګر د هغو د عمل او پر هغو باندي د اغیزي د شرطونو په پوهیدلو سره خلک کولی شي چې خپلې په زړه‌پوري نتیجې لاسته وروړي.

د یو لړ قوانینو څخه استفاده او د نورو قوانینو چې په زړه‌پوري نه وي د عمل مخنیوی همدغه‌رنګه د بیلا بیلو قوانینو د اعمالو د اختلاط له لاري ترسره کیږي. مثلاً د جاذبي قوه ددې موجب کیږي چې د هوا په مقایسه درانده اشیا ځمکې ته راوغورزیږي مګر د فزیک د نورو قوانینو په اتکاء خلک الوتونکي دستګاوې جوړوي چې ددې قدرت لري چې بارونه پورته کړي. په دې بنیاد د طبیعت د قوانینو څخه استفاده نه یوازې د هغو مطابق د عمل کولو مهارت بلکه د ګ. و. پلیخانوف په قول «په تر ټولو ګټور طرز سره د هغو د مختلط کولو»* قدرت هم په ځان کې مشتملوي.

په ټولنیز ژوند کې دا امکان هم شته چې د یو شمیر قوانینو په مرسته د نورو قوانینو نامطلوب اعمال بند کړی شي. کافي به وي که دلته د نوی نړیوالی جګړې د مخنیوي په لاره کې د سوله

* ګ. و. پلیخانوف. منتخب فلسفي آثار په پنځو ټوکونو کې، ۱ ټوک، مسکو، ۱۹۵۶، ۱۳۶ مخ.

غوښتونکو قواو د مبارزې مثال یاد شي. جګړې د امپریالیزم مولود شمیرل کیږي او دا جګړې د کاپیتالستي هیوادونو د اقتصادي او سیاسي پرمختګ د بې‌توازنۍ د قانون له عمل څخه سرچینه اخلي. خلک نه شي کولی چې دا قانون لغو کړي. د جګړې تهدید به تر هغه وخته پورې موجود وي چې امپریالیزم موجود وي. مګر ددې خبرې معنی دا نه ده چې سوله‌غوښتونکې قواوې د جګړې سره د مبارزې توان نه لري. جګړه حتمي مقدره نه ده بلکه په معاصر دوران کې د هغې مخه نیول کیدلی شي. دا نظریه په عملي توګه تایید شویده. د سوله غوښتونکو قواو د رشد او تر ټولو دمخه د سوسیالستي اتحادیې د ګړو هیوادونو د موفقیتونو له برکته د دیتانت تکمیلیدل د ترقۍ قانوني اساس ګرزیدلی او د بیلا بیلو ټولنیزو رژیمونو د خاوندو دولتونو تر منځ د سوله‌ایز ګډ ژوند د اصولو د ټینګتیا په لاره کې مهم ګامونه پورته شویدي.

د امپریالیزم ماهیت نه دی بدل شوی مګر د هغه د قوانینو عمل نن د سوسیالیزم چې په ستر قلمرو کې یې استقرار موندلی دی د قوانینو په عمل سره محدود کړې شوی دی. په هماغه قانون‌مندۍ سره چې امپریالستي ارتجاعي قواوې د جګړې د نښلولو خطر تولیدوي سوسیالستي سیستم سوله‌غوښتونکې سیاست منځ ته راولي. په بین المللي مقیاس کې د قواو د تناسب بدلون چې د سوسیالیزم په ګټه ترسره شویدی د امپریالیزم د ارتجاعي قواو لاس او پښې تړې او د بورژوازۍ د سلیم عقل خاوندان دې ته اړ باسي چې په زیاته اندازه ریالستیک سیاست غوره کړي. د خلکو له ژوند څخه د جګړو د ایسته کولو دپاره تدریجاً شرایط ایجادیږي. په ټوله نړۍ کې به د سوسیالیزم په بری سره د هر ډول جګړو د ټولنیزو او ملي علتونو د قطعي نابودۍ امکان برابر شي.

نه یوازې په بیلا بیلو تاریخي شرطونو بلکه د پرمختګ په هره ځانګړې مرحله کې د ټولنیز ژوند د قوانینو د تبارز شکلونه متنوع دي. د قوانینو د تبارز او استفادې مشخص شکلونه د خلکو له خوا په هغو ټاکلو حدودو کې غوره کیږي چې د قوانینو له خوا ټاکل شوي او د خلکو د هدفونو سره مطابقت لري. مثلاً سوسیالستي ټولنه چې په منظمه توګه نرخونه مقرروي د مالونو د ارزښت څخه هغه ښکته

يا پورته بيولى شي مگر د نوسان دا امكانات لا محدود نه دي. د ارزښت د قانون په نظر کی نه نيول او په هغه باندی سترگی پټول ناممکن کار دی.

کله کله داسی نظريه څرگنديږی چی د طبيعت او ټولنی د قوانينو تر منځ توپير په دی کی پروت دی چی د طبيعت د قوانينو څخه تخلف وار د واره ښکاريږی (مثلاً د ټاکلی فشار د سنجش څخه پرته که پل جوړ شوی وی نو سمدلاسه نړيږی) ولی د ټولنی د قوانينو څخه تخلف يوازی ډيره موده وروسته خپله نتيجه ښيی. مشکله ده چی دغه ډول توپير سم وبلل شی. په طبيعت کی هم زموږ د اعمالو په نتيجه کی چی کله موږ عينی شرطونه په نظر کی و نه نيسو (مثلاً د بيلا بيلو پروسو د ايکولوژيک توازن څخه تخلف) په زياته يا لږه نژدی راتلونکی کی خپل تاثير څرگندوی. دا خبره سمه ده چی په ټولنيز ژوند کی د علت او معلول تر منځ ارتباط ډير مغلق دی او په ډيرو متناوبو کړيو سره تړل شويدی ولی که چيری انسان هغه په نظر کی و نه نيسی د خپلی اشتباه په «کيفر» به ورسيږی.

د پورته ذکر شوی نظريی پر خلاف د آلمان د دموکراتيک جمهوريت او شوروی اتحاد په اقتصادی آثارو کی بل نظر هم موجود دی چی د هغه له مخی د سوسيالستی ټولنی د اقتصادی قوانينو د عمل د ترتيب او د هغو څخه د استفادی د ترتيب تر منځ د توپير دپاره دليل وجود نه لری*. دغسی تفريق سم نه بلل کيږی ځکه چی د سوسيالستی ټولنی د قوانينو عمل هرومرو د ټولنی له خوا د هغو څخه آگاهانه استفاده په نظر کی نيسی. وروستی نظريه زموږ په فکر هم سمه ده. د قوانينو د ماهيت مطابق د عمل شکل د هغو آگاهانه استفاده ده.

سره ددی هم دا معقوله نظريه دی پوښتنی ته ځواب نه ورکوی چی که چيری په کوم علت آگاهانه استفاده (مثلاً په قوانينو باندی نه پوهيدل يا غلط سياست) نه کيږی يا په پوره اندازه نه ترسره کيږی نو نتيجه يی څنگه وی؟

---

* «Ökonomische Gesetze in der entwickelten Sozialistischen Gesellschaft», Berlin, 1957, S. 59, 441 — 442.

که چیری خلک د سوسیالیزم په قوانینو پوه نه شي نو آیا
داسې ویل کېدلی شي چې د سوسیالیزم قوانین عمل نه کوي؟ موږ
عقیده لرو چې دې پوښتنې ته مثبت ځواب به د دغو قوانینو په
عیني‌توب او د خلکو له ارادې او شعور څخه د هغو په خپلواکۍ کې
شک تولید کړي.

دوه حالتونه باید یو له بله سره بېل شي. فرض به یې کړو
چې موږ په تیوریتیک لحاظ د سوسیالستي ټولنې په دغه یا هغه قانون
باندې پوه نه شوو. مګر عملاً موږ کولی شو چې په داسې حال
کې چې اوضاع او احوال او د هغو څخه پیدا شوې وظیفې سمې
وسنجوو ددې قانون د غوښتنو مطابق عمل وکړو. په دې صورت
کې موږ د قانون څخه د تجربوي استفادې سره سروکار لرو په داسې
حال کې چې په نظري توګه مو هغه نه دی درک کړی. خلک
په دې مورد کې د قانون د غوښتنو مطابق عمل کوي او تر یوې
اندازې پورې د ټولنې دپاره مطلوبې نتیجې ترلاسه کوي. ولې بل
حالت هم امکان لري چې کله په قانون د نه پوهېدلو یا د غلطو
ایدیالوژیکي نظریاتو په وجه خلک د قانون د غوښتنو پرخلاف عمل
کوي. آیا په دې صورت کې د قانون عمل یا د هغه تطبیق بندیږي؟
معلومه خبره ده چې نه ځکه چې خلک ددې توان نه لري چې قانون
لغو کړي. په دې صورت کې د خلکو اعمال د هغوی دپاره د نامطلوبو
نتیجو، د نااټکل شوو طبیعي عواقبو موجب کیږي او کولی شي
چې په اقتصاد کې بې‌تناسبي او حتی ګډوډي ایجاد کړي. که چیری
خلک نه غواړي چې خپل ټول لاسته راوستلې موفقیتونه له‌لاسه ورکړي
نو د داسې عواقبو سره د مخامخ کېدو په صورت کې مجبور دي
چې خپل سیاست او د اقتصاد د تنظیم او لارښوونې پراکتیک ته
تغییر ورکړي. مثلاً په شوروي اتحاد کې د سوسیالستي ټولنې د جوړولو
په لومړیو مرحلو کې او وروسته په ځینو نورو هیوادونو کې پخپله
ژوند خلک دې ته مجبورول چې د مادي علاقمندۍ د اصل، اقتصادي
سنجش او نورو عواملو د بې‌سنجشۍ څخه صرف نظر وکړي. قانون
داته خپله اړایستونکې قوه معلوموله مګر د قانون د عمل ترتیب د
هغه ماهیت سره او په منظمه توګه د پرمختلونکې او تنظیم شوې
ټولنې په حیث د سوسیالیزم د اصالت سره توافق نه لري. د قانون

د عمل نقشه دلته په لاندی ډول وی: ۱) د پدیدو مهم ارتباط چی په قانون باندی څرګندیږی او ددی ارتباط څخه پیدا شوی ایجابات. ۲) د خلکو اعمال چی ددی ایجاباتو سره مطابقت نه لری او د هغوی له خوا اشتباګانی. ۳) د هغوی د اعمالو هغه عواقب چی خودبخوده او د خلکو دپاره ناغوښتی وی. ٤) په دغو اشتباګانو باندی پوهیدل او د سیاست، لارښودنی او پلان جوړولو او داسی نورو د بدلون په لار د دغو اشتباګانو اصلاح کول. دا طریقه البته د ټولنی دپاره د سترو ضایعاتو سره یوځای وی.

د قانون د عمل بله نقشه چی د قوانینو څخه د آګاهانه استفادی ترتیب هم پیش‌بینی کوی د سوسیالستی ټولنی او د هغی د قوانینو د ماهیت سره مطابقت لری: ۱) د پدیدو تر منځ اصلی ارتباط او ددی ارتباط څخه پیدا شوی ایجابات. ۲) د خلکو له خوا په زیاته یا لږه اندازه د دغو ایجاباتو درک کول. ۳) د لارښودنی او پلان جوړولو په پراکتیک کی د هغو انعکاس. ٤) د ټولنی دپاره د پیش‌بینی شوو په زړه‌پوری نتیجو ترلاسه کیدل. په دی صورت کی اقتصادی پرمختګ «د تقاضا او عرضی د قانون په ړانده حاکمیت» چی د ک. مارکس په قول «د بورژوازی د سیاسی اقتصاد» سره مطابقت لری نه اداره کیږی خو مطلب په اشتراکی تولید باندی دی چی «په ټولنیز مخکی‌لید سره اداره کیږی او په دی کی د کارګری طبقی د سیاسی اقتصاد ماهیت پروت دی»*. په دی ترتیب د ټولنیزو قوانینو څخه آګاهانه استفاده د سوسیالستی ټولنی د مؤثر پرمختګ عینی ضروری شرط ته اوړی. ددی خبری معنی دا ده چی ذاتی عامل (په لومړی مرحله کی د سوسیالستی دولت اقتصادی سیاست) د سوسیالیزم د عینی قوانینو مطابق عمل کوی. سربیره پر دی دا آګاهانه فعالیت د سوسیالستی ټولنی د اقتصادی قوانینو د عمل په طرز او له هغو څخه د استفادی په ترتیب کی ضروری برخه شمیرل کیږی.

د سوسیالستی ټولنی د اقتصادی قوانینو څخه د استفادی د ترتیب یو تر ټولو مهم اړخ د اقتصاد د تنظیم او اداری د مؤثرو شکلونو

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۱٦ ټوک، ۹ مخ.

پیدایښت، د پلان جوړولو د سیستم تکامل، د فابریکو، کارګري ډلو او ځانګړو کارکوونکو د فعالیت د ارزیابۍ د مصلحت‌آمیزو شاخصونو د سیستم جوړول دي. خبره په دې کې ده چې د اقتصاد له پرمختګ سره د خلکو د علاقمندۍ او په دې بنیاد د هغو وسایلو چې د هغو په مرسته دا پرمختګ ترسره کیږي د مؤثریت اندازه په همدغو عواملو پوري تعلق لري. که چیري د اقتصادي قوانینو عمل د ګټو له لاري ترسره کیږي نو د دغو قوانینو د پوره تطبیق دپاره د پلان جوړولو او اداري داسي ترتیب په کار دي چي تر ډیري اندازي پوري د خپل کار له نتیجو سره د خلکو علاقمندي تأمین کړي شي. ګټي پخپل وار د تولید د تنظیم، تبادلي او ویش د مشخصو شکلونو او همدغه‌رنګه د اقتصادي اداري د سازماني شکلونو په ذریعه چي د ګوند او دولت له خوا د ټولني د پرمختګ د هري مرحلي د عیني شرطونو مطابق جوړیږي ټاکل کیږي. په دي ضمن کي خلک د ګټو تر منځ د ځینو تضادونو سره مخامخ کیږي او د هغو د زیاتو مصلحت‌آمیزو شکلونو د پیدا کولو ضرورت هم منځ ته راځي. دا د ذاتي عامل چي باید د عیني قوانینو ایجابات او د ټولني مشخص شرایط او وظیفي وسنجوی سهمه وظیفه ده.

د پرمختللي سوسیالستي ټولني اقتصاد واحده ملي مجموعه ده چي د هیواد په قلمرو کي د ټولنیز تولید، ویش او تبادلي ټولي برخي احتواء کوي (د شوروي اتحاد د اساسي قانون ۱۶مه ماده وګورئ). د دغسي مجموعي موجودیت د اقتصاد د لارښودني او پلان جوړولو د سیستم اوچته سویه او دایمي تکامل غواړي.

د مثال په توګه به د ملي اقتصاد په پرمختګ کي د تناسب او په تیره بیا د هغه تناسب مسئله راواخلو چي ملي عایدات په هغه سره د پاسري په ذخیره او د استهلاک په ذخیره ویشل کیږي. دلته هم موږ د ټاکلو تضادونو سره مخامخ کیږو. دا تر ټولو دمخه د ملي اقتصاد د پرمختګ د مداومو ګټو چي د پاسرو په ذخیره کي تجسم موبي او د هغو ورځینو ګټو چي د استهلاک د ذخیري په ذریعه عملي کیږي تر منځ تضادونه دي.

د دغو ګټو د هم‌آهنګۍ ورانول مثلاً د پاسري د ذخیري په اهمیت باندي نه پوهیدل د اقتصادي پرمختګ د بنسټ د ورانولو

موجب کیږی او په دی ترتیب بالاخره د ملی اقتصاد پرمختګ ځنډولی شی. مګر د استهلاک د ذخیری د اهمیت نه سنجول، د خلکو د ورځینو ګټو په نظر کی نه نیول چی د تولید له پرمختګ سره د پرګنو علاقمندی کمولی شی د همدغسی نتیجو موجب کیدلی شی. په دی اساس لازمه ده چی د ټولنی د انکشاف په هره مرحله کی د استهلاک د ذخیری او د پاسری د ذخیری د همآهنګۍ دپاره مساعد شرطونه پیدا شی او دا همآهنګی په سکون کی نه بلکه په تحرک کی وځیږل شی. د صنعتی کولو د لومړۍ مرحلی په شرطونو کی موږ مجبور وو چی د پاسرو د راټولولو دپاره د ملی عایداتو ډیره لویه برخه وټاکو. د پرمختللی سوسیالستی ټولنی په شرطونو کی د دغو لګښتونو د زیات همآهنګ توحید او د استهلاک د رشد د ګړندی‌توب او همدغه‌رنګه ددی دپاره امکانات پیدا شول چی د اقتصاد د پرمختګ د هغو عواملو څخه چی صرف مقدار زیاتوی د هغو عواملو خوا ته چی څرنګوالی هم ښه کوی د اصلی توجه د جلبولو له لاری دومره پاسری ذخیره شی چی د ټولنی دپاره ضروری دی.

د موفقانه اقتصادی پرمختګ دپاره همدغه‌رنګه د فابریکی او د هر ځانګړی کارکوونکی د ګټو سره د ملی اقتصاد د ګټو توحید باید په مؤثره توګه تأمین شی. دا خبره د کار د نتیجو د سنجش د مربوطو مشخصاتو او د نورو ګټو تر منځ د تضادونو د له منځه وړلو غوښتنه کوی. د تجربی له مخی معلومه شویده چی دا هغه مغلقه وظیفه ده چی قطعاً نه شی ترسره کیدلی. د پلان د جوړولو تکامل او د کار د قدردانۍ د هغو مشخصاتو چی د ټولنی د پرمختګ د مربوطی مرحلی او د هغی د وظیفو سره مطابقت ولری تدوین د تولید د کارکوونکو د مادی تشویق څخه د مؤثری استفادی شرط دی. معنوی تشویق د مادی تشویق سره نه‌شلیدونکی پیوند لری. ګوند د معنوی تشویق د نه‌سنجولو پرخلاف او د پیسو په قدرت باندی د ساده ایمان پر خلاف خبرداری ورکوی.

ددی دپاره چی د سوسیالیزم قوانین د ټولنی خدمت ته وګمارل شی د درستی ټولنی په مقیاس تنظیم شوی فعالیت په کار دی. په کار دی چی ټولیه قوانین په واحده مجموعه کی، یو له بله سره په متقابل

ارتباط کې په کار واچول شي، اقتصادي قوانين د ټولنې د حياتي فعاليت د ټولو نورو ساحو د قوانينو سره مختلط کړې شي.

د طبقاتو او ټولنيزو ډلو، ملتونو او قومونو د ګټو معقول سنجش نه يوازې په اقتصاد بلکه د ټولنيزو او سياسي مناسباتو په ساحه کې هم ضروري شميرل کيږي.

د پرمختللي سوسيالستي ټولنې په شرطونو کې لا ډول ډول اجتماعي ډلې وجود لري چې د عمومي اصلي ګټو سره خپلې خاصې ګټې هم لري. لکه څنګه چې د شوروي اتحاد په اساسي قانون کې ويل شويدي دولت د ټولنې د اجتماعي همآهنګۍ د تقويه کولو يعنې د طبقاتي توپيرونو، د ښار او کلي تر منځ د اصلي توپيرونو، د دماغي او جسماني کار تر منځ د اساسي تفاوتونو د له منځه وړلو او د شوروي اتحاد د ټولو ملتونو او قومونو د هراړخيز پرمختګ او نژديکت سره مرسته کوي. شوروي دولت نه يوازې عمومي بلکه خصوصي ګټې هم په نظر کې نيسي او هغه په واحد مسير کې سوق کوي. دا د ټولو طبقاتو او اجتماعي ډلو، د ټولو ملتونو او قومونو د ټولنيز فعاليت رشد او په دې اساس د سوسيالستي ټولنې د پرمختګ د خوځوونکو قواو مؤثر فعاليت تأمينوي.

په پرمختللي سوسيالستي ټولنه کې ټولې مسئلې بايد په دسته‌جمعي توګه، د هغو د اقتصادي، ټولنيز، روحي او اخلاقي اهميت په سنجش سره حل کړې شي. د پرمختللي سوسيالستي ټولنې په حيث په کومه کې چې د ژوند ټول مختلف اړخونه يعنې اقتصاد، سياسي نظام او کلتور په همآهنګ ډول سره يوځای کيږي پخپله ماهيت ددې تقاضا کوي.

د سوسياليزم د اقتصادي قوانينو څخه آګاهانه استفاده او د هغو د غوښتنو بشپړ تعميل د ټول ولس د کوششونو توحيد ايجابوي، ځکه چې د سوسياليزم د قوانينو ايجابات خودبخوده او په غيرمنظمه توګه نه ترسره کيږي نو په کار دي چې د هغو امکاناتو څخه چې د اقتصاد په سوسيالستي سيستم کې پراته دي د پوره استفادې په لاره کې په کلکه هڅه وشي او د پرګنو تخليقي ابتکار حمايه شي او انکشاف ورته ورکړې شي.

د کمونست ګوند د سياست قوت په دې کې پروت دی چې هغه

د عینی قوانینو د ایجاباتو په سنجش خپل عملی فعالیت په هغه لوری کی پرمخ بیایی چی د دغو قوانینو څخه زیاته بشپړه استفاده تأمینوی. د کمونست گوند سیاست په عملی اساساتو ولاړ دی. په دی سیاست کی په هره مرحله کی د ټولنیز پرمختگ د قوانینو د ایجاباتو علمی تحلیل او هغه مؤثر عملی فعالیت چی د ټولنی په خیر د دغو قوانینو څخه استفادی ته اړم وی په نه‌شلیدونکی توگه سره پیوند شویدی. دا د کمونیزم خوا ته د هیواد د راتلونکی پرمختگ دپاره پراخ امکانات برابروی.

### ٦ فصل

# د ټولنيزو او اقتصادي فرماسيونونو د پرمختګ د عمومي او خاصو قوانينو ارتباط

د ټولني د پرمختګ د عمومي قوانينو چې په ټولو اجتماعي او اقتصادي فرماسيونونو کې عمل کوي او د ځانګړو فرماسيونونو د خاصو قوانينو مسئله د تاريخي ماټرياليزم د مضمون د ټاکلو په مناسبت په لومړي فصل کې توضيح شوه. موږ به ذکر شوي توضيحات نه تکراروو او اوس به ددې پيچلې مسئلې چې لا تر اوسه پورې ښه پوره نه ده تحليل شوي ځانګړي اړخونه په زيات تفصيل سره وڅيړو.

## ۱ . د عمومي او خاصو قوانينو مفهوم . د ټولنيز ژوند د ادراك دپاره د هغوی اهميت

د ټولنيزو او اقتصادي فرماسيونونو عمومي او خاص قوانين د خپل عمل د ساحې او د تاريخي دوران له نقطه‌نظره هم پخپلو کې توپير لري.

د هر ډول قانون عمل په ټاکلې زياته يا لږه عمومي ساحه کې ترسره کيږي. د ماټرياليستيک ديالکتيک قوانين چې د عمل په ساحه کې يې ټوله نړۍ يعني طبيعت، ټولنه او تفکر شامل دي زيات سره مشترک دي. د ټولنيز پرمختګ د قوانينو په جمله کې هغه تر نورو زيات عمومي قوانين دي چې د دغه يا هغه ټولنيز او اقتصادي فرماسيون څخه صرف‌نظر د ټولنې د موجوديت شرطونه ښيي. لکه څنګه چې وويل شول په دغسې قوانينو پورې هغه قانون ارتباط پيدا کوي چې د هغه مطابق د مادي نعماتو توليد په ټولنيز پرمختګ

کی فیصله کوونکی رول لوبوی. ټولنه که په هره مرحله کی وی تولید تل د هغی د ژوند دپاره ضروری شمیرل کیږی. ځکه خو نو هغه شرطونه په کومو کی چی دا قانون څرګندیږی د ټولنی د عمومی موجودیت د شرطونو سره مطابقت پیدا کوی. په دی شی سره د تاریخ د یوه عمومی قانون په حیث د هغه د عمل ساحه ټاکل کیږی.

د مثال په توګه د اضافی ارزښت قانون د عمل بله ساحه لری. دا قانون په ټاکلو او مشخصو تاریخی شرطونو کی چی د ټولنیز پرمختګ په ځینو مرحلو کی لیدل کیږی عمل کوی. دا شرطونه اول د مالونو تولید او دوهم جنس ته د کارګری قوی اوښتون دی. لوړی شرط د کاپتالیزم په نسبت ډیره موده مخکی منځ ته راغی. مګر سره ددی چی د مالونو تولید د اوږدو پیړیو په موده کی وجود درلود هغه یوازی په کاپتالستی مرحله کی د تولید عمومی شکل ته واوښت او دا هغه وخت و چی کله د منځنۍ پیړۍ د کسبګر او فیودالی بزګر ځای کارګر ته ورکړی شو چی په حقوقی لحاظ آزاد و مګر د تولید له وسایلو څخه محروم و او په دی بنیاد یی خپله کارګری قوه د تولید د وسایلو پر خاوند یعنی پانګوال باندی پلورله. په همدی شی سره د اضافی ارزښت چی د تولید د کاپتالستی طرز د خاص قانون حیثیت لری د قانون د عمل ساحه ټاکل کیږی.

عمومی او خاص قوانین د خپل عمل د تاریخی دوران له مخی هم توپیر لری. عمومی قوانین د تاریخ په ټولو دورانونو کی نفوذ لری، خاص قوانین یوازی د دغه یا هغه فرماسیون د موجودیت په دوران کی موجود وی.

په دی ترتیب مارکسیزم د ټولنیز پرمختګ د قوانینو سره تاریخی برخورد کوی. ددی خبری منل چی ټولنیز او اقتصادی فرماسیون خپل خاص قوانین لری چی د بشری تاریخ په ځینو مودو کی عمل کوی په دی باره کی د مارکسیزم له تیزس سره نه‌شلیدونکی رابطه لری چی پخپله ټولنیز او اقتصادی فرماسیونونه هم په تاریخی لحاظ موقتی او تیریدونکی دی او دا چی بلاتغییره ټولنیز نظام وجود نه لری.

د ټولنی د پرمختګ د قوانینو سره دغسی برخورد د بورژوایی سوسیولوژۍ او سیاسی اقتصاد سره مخالفت لری. حتی هغه بورژوایی

ټولنه پېژندونکي او اقتصادي‌پوهان چې د ټولنيز پرمختګ قوانين نه ردوي معمولاً دا قوانين په غيرتاريخي طرز څېړي. مثلاً له هغوي څخه ځيني د ګډو عمومي، مافوق تاريخي قوانينو په جوړولو مشغول دي چې ګڼي د ټولو ټولنو پرمختګ د هغو تابع دي.

ځيني اقتصادي پوهان او ټولنه‌پېژندونکي کوشش کوي چې د بېلا بېلو ټولنيزو او اقتصادي فرماسيونونو اقتصادي قوانين سره يو شي وشميري. هغوي د کاپيتاليزم قوانين او مفاهيم جاويداني او اصلاً د بشري ټولنې دپاره خاصه شميري او عقيده لري چې ګڼې د توليد پر وسايلو خصوصي مالکيت او پانګه د بشريت په «جاويداني» او «نه‌بدليدونکو» نظمونو پورې تعلق لري.

زيات شمير بورژوايي ټولنه پېژندونکي او اقتصادي‌پوهان پخپله د تاريخي قانون پر مفهوم باندې حمله کوي او وايي چې دا مفهوم په خپل اساس کې متضاد دی. دا حملې معمولاً هغوی ته ددې دپاره په‌کارېږي چې د ټولنيز پرمختګ د قانون‌مندۍ د استقرار د امکان څخه اصلاً انکار وکړي. په دې ضمن کې له هغوی څخه ځيني عقيده لري چې ګڼې د ټولنيز ژوند د شکلونو تغيير او تبدل د ټولنې په تاريخ کې د بدلوونکو قوانينو د استقرار امکان له منځه وړي. نور د تاريخي قانون مفهوم ته ذاتي مفهوم ورکوي چې ورسره مطابقت نه لري.

د تاريخي قانون په مفهوم کې يوه ذره سبجکتويزم وجود نه لري. لکه څنګه چې په تيرو فصلونو کې وويل شول زياتره قوانين نه يوازې په ټولنيز پرمختګ بلکه په طبيعت کې هم (مثلاً د عضوي ژوند قوانين) تاريخي قوانين دي ځکه چې هغه په ټاکلو شرطونو کې چې په ځينو ځايونو او ځينو وختونو کې موجود وي عمل کوي. په دې برخه کې يوازې توپير په دې کې پروت دی چې په ټولنيز ژوند کې د طبيعت په نسبت شرطونه ژر تغيير کوي او ځکه خو نو د ټولنې د پرمختګ د قوانينو زياته برخه د زمان په نسبتاً لنډو مودو کې عمل کوي.

ولې ددې خبرې معنی دا نه ده چې ګڼې د دغو قوانينو عمل په هره شيبه کې بنديدلی شي. د ځانګړو ټولنيزو او اقتصادي فرماسيونونو خاص قوانين د خلکو د غوښتنې او آرزو په نتيجه کې نه بلکه د ټولنې د پرمختګ د عيني شرطونو د بدلون په نتيجه کې په عمل پيل کوي يا له صحنې څخه وځي.

دی کی شک نشته چی پخپله خلک د ټولنیز ژوند شرطونو ته تغییر ورکوی لکن هغوی دا کار نه په هره شیبه او نه په شخصی اراده سره بلکه یوازی هغه وخت ترسره کولی شی چی کله دغسی تغییر په عینی لحاظ ضروری وی ځکه چی د ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو بدلون قانونی پروسه شمیرل کیږی.

هم د ټولنی د پرمختګ عمومی قوانین او هم هغه خاص قوانین چی په ځانګړو ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو کی عمل کوی تاریخی قوانین شمیرل کیږی. توپیر یی یوازی په دی کی دی چی د دغو قوانینو نفوذ د زمان کومه فاصله احتواء کوی یعنی ځانته تاریخی دوره یا د بشری ټولنی د پیدایښت له وخته ټولی دوری.

د عمومی او خاصو قوانینو تر منځ توپیر نسبتی دی. یورنګه قوانین په یوه برخه کی خاص وی مګر په بله برخه کی عمومی وی. مثلاً عمومی سوسیولوژیک قوانین د ماتریالستیک دیالکتیک د قوانینو په مقایسه زیات خاص شمیرل کیږی. له بله پلوه د ځانګړو ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو خاص قوانین د ټولو هیوادونو او ولسونو دپاره چی د همدغه ټولنیز او اقتصادی فرماسیون په سویه کی وی عمومی شمیرل کیږی. مثلاً د کاپټالیزم د پرمختګ قوانین سره ددی چی په هر هیواد کی په ځانته طرز تبارز کوی په ټولو کاپټالستی هیوادونو کی نفوذ لری. عین همدغه خبره د سوسیالیزم د استقرار او پرمختګ په قوانینو پوری تعلق نیسی. دا قوانین د ټولو هیوادونو دپاره چی په سوسیالستی لاره روان دی عمومی شمیرل کیږی ولی په عین زمان کی په هر ځانګړی هیواد کی په خپل طرز تبارز کوی. ددی خبری مثل اصولی اهمیت لری. کمونستی او کارګری ګوندونه مجبور دی چی هم د عمومی قوانینو د تجدید نظر غوښتونکی انحراف پر ضد چی دا نظریه لری چی ګنی هر هیواد پخپل طرز او پخپله خاصه لاره پرمختګ کوی او هم د دګماتیک او قالبی برخورد پر ضد چی د ځانګړو هیوادونو د پرمختګ ځانته خاصه او خصوصیت له نظره غورزوی مبارزه وکړی.

په حقیقت کی د ځانګړی هیواد دپاره چی آیا دا هیواد په کاپټالستی او که په سوسیالستی سیستم پوری تعلق لری ملی قوانین نشته. قوانین د یوه سیستم مطابق وجود لری او په ټولو هغو

هیوادونو کی چی د یوه فرماسیون په مرحله کی وی عمل کوی.
د ځانګړو هیوادونو د پرمختګ په برخه کی د قوانینو (په هغه جمله کی د خاصو قوانینو) د عمومی خصلت مثل نه یوازی نظری بلکه عملی اهمیت هم لری. د هغه له فیضه د ټولنی انقلابی قواوی کولی شی چی خپل سیاست په علمی اساساتو ودروی. و. ای. لینین پخپل «په کمونیزم کی «د کیڼ اړختوب» د کوچنیانو ناروغی» نومی کتاب کی د انګریزی کمونست و. ګالاخیر د لیک په څیړلو کی داسی کتنه څرګنده کړه چی «د لیک لیکونکی کاملاً معقوله نظریه څرګندوی چی په انګلستان کی دی کمونست ګوند باید په علمی اساساتو فعالیت وکړی. علم ددی غوښتنه کوی چی لومړی د نورو هیوادونو تجربه وسنجول شی په تیره بیا که چیری نور هغه هم کاپیتالستی هیوادونه ډیره ورته تجربه تیروی یا یی تیره کړی وی. دوهم هغه ټولی قواوی، ډلی، ګوندونه، طبقی، پرګنی چی د یوه هیواد په دننه کی فعالیت کوی وسنجول شی او دا ایجابوی چی صرف د یوی ډلی یا یوه ګوند یوازی د آرزوګانو او نظریاتو، د آګاهۍ د سویی او مبارزی ته د تیارۍ پر اساس اصلاً سیاست و نه ټاکل شی»*.
لکه څنګه چی وینو و. ای. لینین دلته د کاپیتالیزم د شرطونو سره سم. د ګوند د سیاست د علمی اساساتو په باره کی خپلی مفکوری تدوین کوی. مګر دا مفکوری د سوسیالیزم په شرطونو کی د ګوند د سیاست د علمی اساساتو له مسئلی سره هم مستقیم ارتباط لری. په دی اساس په کار دی چی فکر وشی چی ولی لینین په دوو ټکو باندی غږیږی یعنی د نورو هیوادونو د تجربی سنجش او په یوه هیواد کی د طبقاتو د تناسب سنجش. د لومړی ټکی په برخه کی البته په ځای به وی که ذکر شی چی ددی مسئلی سره لینین د انترناسیونالست په حیث برخورد کوی ځکه چی عقیده لری چی بین‌المللی کارګری طبقه ګډی وظیفی لری، ګډه تجربه لری او هغه ګوند چی په کوم یوه هیواد کی فعالیت کوی باید هغه په نظر کی ونیسی. دا به هم ذکر کړو چی کله کارګری طبقی په روسیه کی سوسیالستی انقلاب ترسره کړ نو نه یی شول کولی چی د نورو هیوادونو له تجربی

---

* و. ای. لینین. کلیات، ۴۱ ټوک، ۶۵ مخ.

څخه پراخه استفاده وکړی ځکه چی روسیه هغه لومړی هیواد و چی د سوسیالیزم خوا ته یی لاره پرانیستله. شوروی خلکو نه شول کولی د پاریس د کمون د تجربی څخه پرته په بله کومه تجربه باندی ډډه ولګوی او هغه تجربه هم سره ددی چی د سوسیالستی دولت د جوړولو دپاره یی اصولی اهمیت دراولود لکن ډیره لنډه وه ځکه چی د پاریس کمون یوازی ۷۲ ورځی عمر درلود. د شتمنی تجربی په نشتوالی کی په شوروی هیواد کی د سوسیالستی ټولنی د جوړولو د وظیفو د ترسره کولو یو مشکل پروت و. مګر که چیری په نړۍ کی د نن ورځی حالات په نظر کی ونیول شی نو د و. ای. لېنین دا مفکوره د سوسیالیزم په برخه کی صدق پیدا کوی ځکه چی نن د یو شمیر سوسیالستی هیوادونو او په لومړۍ مرحله کی د شوروی اتحاد تجربه په هر هیواد کی چی د سوسیالیزم په لاره روان وی له نظره نه شی غورزول کیدلی.

د نورو هیوادونو له خوا د یو شمیر هیوادونو د تجربی څخه د استفادی د امکان او ضرورت د منلو په اساس کی د مختلفو هیوادونو چی د تاریخی پرمختګ په عین مرحله کی واقع دی یا یورنګه وظیفی ترسره کوی د ټاکلی تکرار پیژندنه پرته ده. او دا تکرار د هغو مشترکو قوانینو چی په بیلا بیلو هیوادونو کی چی د ټولنیز او اقتصادی پرمختګ په عین مرحله کی واقع دی عمل کوی په ادراک سره معلومیږی.

د مارکسیستی ګوندونو د پیدایښت څخه مخکی د پخوانیو انقلابونو یوه کمزورتیا په دی کی وه چی د دغو انقلابونو راوستونکی د دغو قوانینو په پوهه سره نه و سنبال شوی. هغوی علمی تیوری چی د انقلابی سیاست اساس تشکیل کړی نه درلوده. و. ای. لېنین ویلی و چی په تاریخ کی داسی مثالونه تیر شویدی چی کله انقلابی طبقی او سیاسی ګوندونو قدرت لاسته وروسته مګر هغه یی اداره کولی نه شو. مثلاً د اتلسمی پیړۍ په پای کی د فرانسی د بورژوایی دموکراتیک انقلاب په زمانه کی انقلابی دموکرات کونوینت (مجلس) چی ستر ټولنیز اقدامات یی اعلان کړی نه پوهیده چی د دغو اقداماتو د ترسره کولو دپاره باید په کومه طبقه او کومو ټولنیزو نواو اتکاء وکړی.

و. ای. لېنین د روسیې (د بلشویکانو) د کمونست گوند په اتمه کنگره کې وویل چې «موږ په زیاتو مساعدو شرطونو کې یو. د یوې تمامې پېړۍ د پرمختګ له برکته موږ پوهېږو چې په کومه طبقه اتکاء کوو. مګر موږ په دې هم پوهېږو چې دا طبقه خورا ډېره غیرکافي عملي تجربه لري. د کارګرې طبقې دپاره او د کارګرې ګوند دپاره اصلي شی واضح و او هغه دا چې د بورژوازۍ واک رانسکور کړي او کارګرو ته واک په لاس کې ورکړي»*.

د مارکسېزم تیورۍ ددې وظیفې عمومي لارې وښودلې لکن د دغو وظیفو د عملي کولو مشخص شکلونه یوازې عملي تجربې ښودلې شول. دا تجربه لومړی په شوروي اتحاد کې چې تر ټولو لومړی یې د سوسیالیزم خوا ته لاره اواره کړه او وروسته د سوسیالستي اتحادیې په نورو هیوادونو کې د سوسیالستي ټولنې په جوړولو سره وښودل شوه. د دغو هیوادونو د کارګرې طبقې ګوندونه د سوسیالستي ټولنې د جوړولو د عمومي قوانینو په پوهه باندې په اتکاء د خپلو هیوادونو د مشخصو اوضاعو مطابق په تخلیقي ډول له دغو قوانینو څخه استفاده کوي او د خپلو هیوادونو ملي خصوصیات په نظر کې نیسي. دا د سوسیالستي ټولنې د جوړولو د موفقیت تر ټولو مهم شرط شمېرل کېږي کوم چې یوازې په شخصي آرزوګانو او تمایلاتو باندې اتکاء نه شي کولی بلکه باید د ټولنیز پرمختګ عیني قوانین په نظر کې ونیسي.

پورته مو چې «په کمونیزم کې «د کیڼ اړختوب» د کوچنیانو د ناروغۍ» د کتاب څخه کومه پارچه رااخیستې وه نو په هغې کې و. ای. لېنین همدغه رنګه په یوه هیواد او په بین‌المللي صحنه کې د طبقاتي قواو د تناسب د جدي عیني تحلیل ضرورت هم یاد کړی و. د دغسې تحلیل په فیض کیدلی شي چې د دغې یا هغې ډلې یا ګوند د آرزوګانو او نظریاتو له مخې نه بلکه په عیني اساساتو باندې سیاست بناء کړی شي. په دې ترتیب و. ای. لېنین په سیاست کې د سبجکتویزم په مقابل کې د ټولو طبقاتي قواو د تناسب د عیني سنجش غوښتنه مقابله کوي. که چیرې د و. ای. لېنین د پورته

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۳۸ ټوک، ۱۹۵ مخ.

ذکر شوی نظریی فلسفی مفهوم واخیستل شی نو دی نتیجی ته رسیدلی شو چی علمی سیاست باید د ټولنی د پرمختګ د عینی قوانینو چی د یوه فرماسیون څخه د تیریدونکی هیواد دپاره مشترک وی د ادراک او له هغو څخه د استفادی او په یوه هیواد کی د مشخصو تاریخی شرطونو د تحلیل په برخه کی د دغو قوانینو د ماهرانه تطبیق په اساس جوړ شی، په سیاست کی دغسی برخورد د سبجکتویزم سره چی د ټولنی د پرمختګ عینی قوانین په نظر کی نه نیسی مخالفت لری.

عمومی قوانین وار د واره نه شی درک کیدلی. په اکثرو مواردو کی خلک له اوله یو شمیر خصوصی او مشخصی پدیدی مطالعه کوی، د هغو قوانین درک کوی او یوازی په دی اساس باندی د عمومی قوانینو کشفولو ته رسیږی. د مثال په توګه به د اضافی ارزښت د قانون د ادراک پروسه راواخلو. انګریزی اقتصادی پوهانو ا. سمیت، د.ریکاردو او نورو ځانګړی مشخص شکلونه مطالعه کړی و په کومو کی چی اضافی ارزښت یعنی صنعتی ګټه، د سوداګری عایدات او سود معلومیدل مګر هغوی و نه شول کولی چی ددی ارزښت ماهیت راوسپړی ځکه خو نو هغوی د هغه په عمومی شکل کی د اضافی ارزښت څیړلو ته و نه شول رسیدلی. مګر ک. مارکس د اضافی ارزښت ماهیت کشف کړ چی د ټولو خصوصی شکلونو دپاره عمومیت لری. ددی کار له فیضه نوموړی وکولی شول چی د اضافی ارزښت قانون کشف کړی، د کاپیتالستی استثمار اسرار توضیح کړی او د کار او پانګی تر منځ د متضادو مناسباتو منبع معلومه کړی.

مګر تر هغه وروسته چی دا مسئله حل شوه د ک. مارکس په وړاندی ګټی ته د اضافی ارزښت د اوښتون د پروسی د معلومولو ضرورت پیدا شو. که چیری د «کاپیتال» په لوموړی ټوک کی د اضافی ارزښت قانون د هغه په عمومی شکل کی فورمول‌بندی شویدی نو په دریم ټوک کی څرګنده شویده چی کومی علتی کړی دا عمومی قانون د مشخصو قوانینو سره یوځای کوی چی د مثال په توګه د ځمکی اجاره، تجارتی ګټی او نور د هغو تابع دی. دا د مجرد څخه مشخص ته د مفکوری د پورته کیدو پروسه ده.

په دی ترتیب د قوانینو په ادراک کی د جز څخه کل ته او له کل څخه جز ته د مفکوری خوځون لیدل کیږی. کله چی قوانین

درک کړی شی نو له هغو څخه استفاده کیږی او د بیلا بیلو مشخصو پدیدو په مطالعه کولو کی تری کار اخیستل کیږی. د ادراک معقول، علمی او دیالکتیک طرز په همدی ولاړ دی چی کله موږ په عمومی قوانینو خپل علم راولو نو د مشخصو پدیدو په مطالعه کولو کی ددی پوهی څخه کار اخلو. څرګنده خبره ده چی په دی کی عمومی قوانین د نقشی کار نه ورکوی بلکه د پدیدو د هری ساحی د مشخصو خصوصیاتو د ادراک وسیله کیږی.

د عمومی او خاصو قوانینو مطالعه کول څه اهمیت لری؟ ولی په ځانګړی توګه یا د عمومی یا د خاصو قوانینو زده کول کفایت نه کوی؟

د مثال په توګه به د سوسیالستی ټولنی پرمختګ راواخلو. د سوسیالستی ټولنی په شرطونو کی د عمومی اقتصادی او سوسیولوژیکو (اجتماعی) قوانینو له منلو څخه انکار د ډیرو اشتباګانو منبع وه.

مثلاً معلومه ده چی په سوسیالستی ټولنه کی د پراخ تجدید تولید د مارکس د تیوری د یوه تر ټولو مهم قانون یعنی د تولید د وسایلو د تولیداتو د زیات رشد د قانون څخه انکار د څه شی موجب شو. ک. مارکس د کاپتالستی اقتصاد د پرمختګ د تحلیل په اساس د ټولنیزو تولیداتو د لومړی او دوهمی برخی (یعنی د تولیدی وسایلو او استهلاکیه شیانو ــ مترجم) د تناسب په باره کی اصول جوړ کړل. ددی نظریی په اساس ځینو اقتصادی پوهانو عقیده درلوده چی دا قانون د سوسیالیزم په برخه کی نه تطبیقیږی او دا چی په سوسیالستی ټولنه کی د استهلاک د وسایلو تولید زیات رشد کوی. دغسی دریځ د واقعیت سره سم نه راته. البته د ټولنیزو تولیداتو د دواړو برخو د پرمختګ د ګړندیتوب تناسب په بیلا بیلو مرحلو کی مختلف وی. د پرمختللی پخی شوی سوسیالستی ټولنی په شرطونو کی چی کله د درانده صنعت بنسټ جوړ شوی وی د استهلاک د وسایلو د تولید د ګړندی رشد دپاره امکانات پیدا کیږی. د زیاتوایستونکو د مادی او کلتوری اړتیاو اعظمی رفع کول د اقتصاد د پرمختګ تر ټولو مهم طولانی لوری ګرزی مګر په دی ضمن کی د روند صنعت د ملی اقتصاد په ټولو څانګو کی د علمی او تخنیکی پرمختګ اساس پاته کیږی.

د نورو عمومی قوانینو په شان دا اقتصادی قانون هم په

کاپټالیزم او په سوسیالیزم کی په مختلفه توګه فعالیت کوی. په کاپټالستی ټولنه کی د لومړی برخی( یعنی د تولیدی وسایلو د تولید) زیات پرمختګ د تجدید تولید د پروسی د ټولو تضادونو د شدت او له استهلاک څخه د تولید د شلیدو موجب کیږی. په سوسیالستی ټولنه کی هغه د ټول ملی اقتصاد د تخنیکی پرمختګ او په دی اساس د دوهمی برخی یعنی د استهلاک د اشیاو د تولید دپاره مادی بنسټ جوړوی.

په دی ترتیب سره د پراخ تجدید تولید قانون چی په هر یوه فرماسیون کی عمل کوی په هغو کی په مختلفه توګه تبارز کوی.

ددی مثال له مخی دا نتیجه اخیستل کیدلی شی چی د عمومی قوانینو د عمل په نظر کی نه نیول یا د هغه ردول د اشتباګانو موجب کیږی او ددی مخه نیسی چی د سوسیالستی ټولنی پر پرمختګ باندی علم راوستل شی.

ددی تر څنګ یوازی د عمومی قوانینو په پوهه اکتفا کول او د خاصو قوانینو نه مطالعه کول هم ناجایز کار دی. دا هم د غټو اشتباګانو موجب کیدلی شی او موجب شویدی.

عمومی قوانین په مختلفو ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو کی په ځانته طرز سره تبارز کوی. دا د پورته ذکر شوی قانون په مثال کی لیدل کیدلی شی. په هغو باندی په اکتفا او په خاصو قوانینو باندی په سترګو پټولو سره موږ د کاپټالستی او سوسیالستی تجدید تولید تر منځ توپیر نه شو لیدلی او د اقتصاد په پرمختګ کی د بورژوازی دولت او سوسیالستی دولت د رولونو تر منځ په تفاوت نه شو پوهیدلی. په دی ترتیب به لکه د کاپټالیزم او سوسیالیزم په شان د دغسی قطعاً مخالفو ټولنیزو سیستمونو ځانته خصوصیت له منځه ولاړ شی.

په دی علت لازمه ده چی د ټولنیزو پدیدو په مطالعه کولو کی عمومی قوانین له خاصو قوانینو څخه بیل نه شی او په کار دی چی د دواړو قوانینو عمل په نظر کی ونیول شی. د ټولنیز ژوند ادراک او په دی بنیاد د ګوند عملی او تحول راوستونکی فعالیت هم د عمومی او هم د خاصو قوانینو ژوره مطالعه غواړی.

کله کله دا پوښته پیدا کیږی چی کوم ډول قوانین یعنی عمومی

که خاص قوانین د ټولنیزو مناسباتو ماهیت څرګندوي؟ تر یوې اندازې
پورې دواړه ډول قوانین یې ښکاره کوي. مګر عمومي قوانین مهم
مناسبات څرګندوي چې صرف نظر د ځانګړو ټولنیزو او اقتصادي
فرماسیونونو د خصوصیاتو څخه د بشري ټولنې خصلت تشکیلوي.
خاص قوانین د یوې ځانګړې اجتماعي اقتصادي ټولنې ماهیت او د
نورو ټولنو څخه د هغې توپیر ښکاره کوي.

قوانین چې د پرمختګ له حیثه او د خپل مشترکوالي د درجې
له مخې توپیر سوې د پدیدو د هماغې ساحې په کومه کې چې دا
قوانین فعالیت کوي د کیفي خصوصیت د ښکارندوي په حیث تبارز
موسي. مثلاً هغه قانون چې د تولید د وسایلو رول ټاکي د بیولوژیکي
موجوداتو د ټولنو په مقایسه د ټولنیز ژوند خصوصیت څرګندوي.
ددې دپاره چې بشري ټولنه د ځارویو له ګلې څخه بیله شي تر ټولو
دمخه په کار دي چې هغه رول معلوم کړې شي چې تولید یې د
خلکو په ژوند کې لوبوي. د ذکر شوي قانون پر خلاف داسې خاص
قوانین لکه مثلاً د اضافي ارزښت قانون عمومي ټولنیز قوانین نه بلکه هغه
مخصوص قوانین چې په یوه وخت کې د ټاکلي ټولنیز او اقتصادي
فرماسیون د پیدایښت او له منځه تلو سره یوځای چې د هغه د
ماهیت درک کول د همدغو قوانینو په پوهیدلو سره ممکن دي
عمل کوي او خپل عمل بندوي.

که چیرې د خاصو قوانینو تر منځ تناسب وڅیړل شي نو دوه
اړخونه باید ذکر کړې شي. ۱) دا قوانین یو د بل ځای نیسي
یعنې دا چې د یوه فرماسیون قوانین د بل فرماسیون قوانینو ته خپل
ځای پریږدي. ۲) د هغو تر منځ د تقابل مناسبات وجود درلودلای
شي. مثلاً د سوسیالیزم خاص قوانین (د منظم او متناسب پرمختګ
رفیقانه همکارۍ او سوسیالستي متقابلې مرستې قانون) د کاپتالیزم د
قوانینو (د تولید د انارشۍ او د رقابت د قانون او د انسان له خوا
د انسان د استثمار د قانون) سره مستقیم مخالفت څرګندوي.

په دې بنیاد خاص قوانین ډول ډول فرماسیونونه یو له بله
په دې معنی جلا کوي چې د هغو کیفي خصوصیات او حدبخشي
ښکاره کوي.

مګر ددې خبرې معنی اصلاً دا نه ده چې دا قوانین له بل

فرماسیون څخه بل فرماسیون ته د انتقال قوانین نه دی. کله کله دا عقیده څرګندیږی چی خاص قوانین چی د مادی د حرکت د دغو یا هغو شکلونو ماهیت ښکاره کوی نه شی کولی چی ددی حرکت د بیلا بیلو شکلونو تر منځ رابطه او د مادی د حرکت د یوه شکل څخه بل شکل ته، د یوه ټولنیز ارګانیزم څخه بل ته د انتقال شرطونه کشف کړی. مثلاً د کاپیتالیزم خاص قوانین د یوه ټولنیز او اقتصادی فرماسیون د پرمختګ ماهیت او تمایل څرګندوی په داسی حال کی چی له کاپیتالیزم څخه سوسیالیزم ته د انتقال ضروری شرطونه د مولده قواو د خصلت او د هغو د انکشاف د سویی سره د تولیدی مناسباتو د مطابقت د قانون په ایجاباتو سره تاکل شویدی.

کله کله په همدی اساس عمومی فلسفی نتیجی اخیستل کیږی ، دا نظریه څرګندیږی چی که چیری خاص قوانین د اشیاو کیفی خصوصیت او د هغو پیمانه څرګندوی، نو عمومی قوانین لوی‌ړی د نړی مادی وحدت، دوهم هغه شرطونه څرګندوی چی په هغو کی د اشیاو د یوه کیفی حالت څخه بل حالت ته انتقال ترسره کیږی . په دی کی د عمومی قوانینو د نړیوالید اهمیت لیدل کیږی.

په دغسی قضاوتونو کی معقوله خبره دا ده چی د نړی وحدت په عمومی قوانینو سره څرګندیږی مګر زموږ په عقیده په هغو کی په ناحقه سره د خاصو قوانینو رول محدودیږی کوم چی ګنی نه شی کولی چی د یوه شکل څخه بل شکل ته د مادی د خوځون د انتقال شرطونه ښکاره کړی. لاندی به موږ په تفصیل سره د مولده قواو د خصلت او د هغو د انکشاف د سویی سره د تولیدی مناسباتو د مطابقت د عمومی قوانینو او د ځانګړو فرماسیونو د خاصو قوانینو تر منځ د ارتباط په باره کی خبری وکړو . اوس خو به دومره ووایو چی له یوه کیفیت څخه بل کیفیت ته د انتقال شرطونه نه یوازی په عمومی بلکه په خاصو قوانینو سره هم ټاکل کیږی، په همدی وجه مارکسیزم هغو خاصو قوانینو ته چی د یوه ټولنیز ارګانیزم پیدایښت، موجودیت، تکامل او مرګ او په بل اوچت ارګانیزم باندی د هغه تعویض د هغو تابع دی اصلی توجه کوی.

بناً باید دا هم زیاته شی چی له یوه فرماسیون څخه بل ته د انتقال شرطونه یوازی د عمومی ټولنیزو قوانینو څخه نه شی راایستل

کیدلی ځکه چې دا انتقال د تاریخي پرمختګ په هره مرحله کی په ځانته ډول ترسره کیږی. مثلاً که موږ د مریییتوب د نظام څخه فیودالیزم ته او د فیودالیزم څخه کاپټالیزم ته د ټولنی پرمختګ مقایسه کړو نو وبه ګورو چې په نوی ټولنیز او اقتصادی فرماسیون باندی د زاړه فرماسیون تعویض اصلاً په یورنګه طرز نه دی ترسره شوی. او په سوسیالیزم باندی د کاپټالیزم بدلون خپل مهم خصوصیات لری چې مثلاً دا چې دا بدلون په یوه خاص انتقالی دوران کی ترسره کیږی په همدغو خصوصیاتو پوری تعلق نیسی. د مولده قواو د خصلت او د هغو د انکشاف د سویی سره د تولیدی مناسباتو د مطابقت عمومی قانون د ټولنیز پرمختګ په ټولو مرحلو کی عمل کوی مګر له یوه فرماسیون څخه بل ته د انتقال مشخص شکلونه د هغو په خاصو قوانینو سره تاکل کیږی. مثلاً سوسیالیزم ته د انتقال خصوصیات د نوی کمونستی ټولنیز او اقتصادی فرماسیون د استقرار په خاصو قوانینو سره تاکل کیږی.

له یوه کیفیت څخه بل کیفیت ته د انتقال په هر ډول تکامل کی نه یوازی د عمومی ټولنیزو قوانینو بلکه د ماتریالستی دیالکتیک عمومی قوانین هم مثلاً د نفی د نفی کولو قانون عمل کوی. معلومه خبره ده چې ک. مارکس په «کاپټال» کی له بورژوازۍ څخه د تولید د وسایلو د مصادره کولو د حتمی پروسی په تحلیل کی ددی قانون په عمل باندی ډېره لګوی. په عین زمان کی څرګنده ده چې سوسیالیزم ته له کاپټالیزم څخه د انتقال مشخص شکل ددی عمومی قانون څخه نه شی راوتلی ځکه چې د اشیاو د هر ډول دپاره «د نفی خپل خاص ډول» موجود دی*. کټ مټ په همدی ترتیب ویل کیدلی شی چې په نوی ټولنیز او اقتصادی فرماسیون باندی د زاړه فرماسیون تعویض بیشکه د عمومی ټولنیز قانون له عمل څخه سرچینه اخلی چې د نوو مولده قواو سره د تولیدی مناسباتو د مطابقت ایجاب کوی مګر د هر فرماسیون دپاره ددی غوښتنی د ترسره کولو خاص طرز موجود دی.

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۲۰ ټوک، ۱٤٦ مخ.

عمومی او خاص قوانین زموږ په نظر یو له بله اصلاً په دی نه بیلیږی چی عمومی قوانین له یوه څخه بل فرماسیون ته د انتقال شرطونه ښئی او خاص قوانین یی نه ښئی، د هغو تر منځ توپیر په دی کی پروت دی چی عمومی قوانین په کلی توگه د ټولنی د مترقی انکشاف لوری او د هغی د مرحلو تسلسل ښکاره کوی مگر خاص قوانین البته داسی نه شی ښودلی. هغه یوازی د یوه فرماسیون د فعالیت، انکشاف او سقوط شرطونه څرگندوی.

په پورته ذکر شوو خبرو پوری به په سوسیالیزم کی د ټولنیز پرمختگ د قوانینو څخه چی په هغو باندی د کمونست گوند سیاست ولاړ دی د یوه تر ټولو مهم قانون یعنی د مولده قواو د خصلت او د هغو د انکشاف د سویی سره د تولیدی مناسباتو د مطابقت د قانون د عمل د خصوصیاتو په باره کی ځینی کتنی علاوه کړو.

دا قانون د ټولنیز پرمختگ اصلی شرط څرگندوی. ددی قانون له مخی باید تولیدی مناسبات د مولده قواو د پرمختگ مطابق تغییر وکړی او د هغو تر منځ پیدا کیدونکی عدم مطابقت باید له منځه یووړل شی.

د مولده قواو د خصلت او د هغو د انکشاف د سویی سره د تولیدی مناسباتو د مطابقت عمومی قانون چی د سوسیالستی ټولنی په خاصو تاریخی شرطونو کی عمل کوی د خپل تبارز شکلونو ته تر ډیری اندازی پوری تغییر ورکوی. هغه د متضادو ټولنو په شان د ټولنیزو انقلابونو په شکل کی نه بلکه د پرمختلونکو مولده قواو مطابق د موجودو تولیدی مناسباتو په تدریجی تکامل کی خپل عمل ترسره کوی.

په سوسیالستی ټولنه کی د مولده قواو د خصلت او د هغو د انکشاف د سویی سره د تولیدی مناسباتو مطابقت د کمونست گوند په لارښودنه د ولسی پرگنو د منظم او آگاهانه فعالیت له لاری ترلاسه کیږی.

لا ف. انگلس پیشگویی کړی وه چی په نژدی یا لری آینده کی به «خلک مخکی له مخکی د ټولنیز نظام د بدلون په ضرورت چی د مناسباتو د بدلون مولود شمیرل کیږی خبر وی او د دغښی بدلون

آرزو به پخوا تر دی څرګنده کړی چی هغه د دوی د آګاهی او ارادی څخه پرته ورباندی تحمیل شی»*.

د ټولنی د مادی ژوند د انکشاف مهمی وظیفی چی پخوا د هغو ټولنیزو تضادونو چی خودبخوده پیدا کیدل په نتیجه کی سرته رسول کیدلی اوس د آګاهانه او تنظیم شوی لارښودنی له لاری انجامیږی.

د مولده قواو او د سوسیالستی تولیدی مناسباتو د دغو یا هغو اړخونو تر منځ د تضادونو پیدایښت د خلکو په اراده پوری ارتباط نه لری بلکه د عینی اقتصادی پروسو ښکارندوی شمیرل کیږی. مګر د دغو تضادونو له منځه وړل پرته د هغوی له ارادی څخه نه شی ترسره کیدلی. د هغو په له منځه وړلو کی ذاتی عامل او په لوړه مرحله کی د ګوند او دولت سیاست ستر رول لوبوی.

دا حقیقت ددی خبری په مثال کی چی څنګه د کمونستی ټولنی د جوړولو په پروسه کی د سوسیالستی تولیدی مناسباتو تغییر او تکامل کیږی په څرګنده لیدل کیدلی شی.

د کمونیزم خوا ته د انتقال تر ټولو مهم شرط د مولده قواو ګړندی او موثر پرمختګ دی. ددی پرمختګ لوړی خصوصیت دا و چی هغه د کمونیزم د مادی تخنیکی بنسټ جوړولو ته متوجه دی او دا د ګوند یوه تر ټولو مهمه وظیفه شمیرل کیږی. ددی وظیفی په ترسره کولو پوری د ټولنیز ژوند د ټولو نورو اړخونو بدلون هم ارتباط لری.

د سوسیالیزم څخه کمونیزم ته د انتقال په پروسه کی د مولده قواو رشد په تولیدی او اقتصادی مناسباتو او همدغه رنګه د اقتصاد د اداره کولو په شکلونو کی هم تغییرات ایجابوی. مارکسیزم لینینیزم د خلکو تر منځ مناسبات د راکدو او نه بدلیدونکو مناسباتو په حیث چی له تضادونو څخه تش وی نه تلقی کوی.

ژوند ښئی چی مولده قواوی د خپل انکشاف په ټاکلی مرحله

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۲۰ ټوک، ۶۳۹ مخ.

کې هرو مرو د تولیدي مناسباتو د زړو شکلونو او د اقتصاد د لارښودنې او اداري د تنظیم شوو شکلونو سره په مناقضت کې لوېږي. په وخت د دغو تضادونو لیدل او د هغو د لرې کولو دپاره په معقوله توګه د ضروري اقداماتو ټاکل او په عملي توګه د هغو سرته رسول د مولده قواو د راتلونکې پرمختګ دپاره امکانات برابروي. ګونډ د اقتصادي مناسباتو او د اقتصاد د اداري د زړو شکلونو په له منځه وړلو سره د کمونیزم خوا ته د هیواد وړاندې‌تګ او د کمونستي ټولنې د مادي تخنیکي بنسټ د جوړولو کار ګړندي کوي.

د پرمختللي سوسیالیزم او د کمونستي ټولنې د جوړولو دوره نه یوازې د کمونستي ټولنې د مادي او تخنیکي بنسټ د جوړولو دوره ده. دا همدغه رنګه د سوسیالستي تولیدي مناسباتو د نور تکامل او کمونستي مناسباتو ته د هغو د اوښتون او لا په سوسیالستي ټولنه کې د پاته شوو طبقاتي توپیرونو د له منځه وړلو دوره هم ده.

د کارګري طبقې او کلخوزي بزګرو تر منځ د فاصل حد د بیرته کولو دپاره تر ټولو دمخه په اساسي توګه په ښار او کلي کې د کار د پروسې د اشتراکي کولو د سويې او د سوسیالستي مالکیت د شکلونو تر منځ د تفاوت له منځه وړل ضروري دي. دا پروسه د مولده قواو د اوچت تحکیم په اساس ترسره کیږي کوم چې د مالکیت دواړه شکلونه سره نژدې کوي او د ښار او کلي تر منځ اصلي توپیرونه رفع کوي.

د کمونستي ټولنې د مادي او تخنیکي بنسټ د جوړولو په پروسه کې د تولید د پروسې د اشتراکي کولو چاره هم نور پرمختګ کوي چې د ټولو اجتماعي ډلو په پرله‌پسې نژدیکت کې خپل انعکاس پیدا کوي.

د تولید پر وسایلو د دولتي مالکیت په چوکاټ کې د اقتصادي تشکیل زیات اوچت شکلونه رابرسیره کیږي چې د اداري د موثریت د زیاتولو او د ټولنیزو پلان جوړولو د پروژو د پراختیا دپاره امکانات پیدا کوي.

د تولید د پروسې زیاتیدونکې اشتراکي کول د ښار او کلي په نژدې کیدلو او د هغو تر منځ د اصلي توپیرونو په له منځه وړلو کې ستر رول لوبوي. په کرهنه کې د کار اشتراکي کول د ځانګړو

سترو کلخوزونو* له چوکاټ څخه ووتل او د کلخوزونو تر منځ بې په مختلفو شکلونو چې عملاً په ټولو کلخوزونو کې موجود دي د تعاون پرمختګ ایجاب کړ.

په صنعتي بنسټ باندې د کرهنې د رول د صنعت او کرهنې تر منځ رابطه تقویه کوي. د صنعتي کار برخه چې په ماشینونو او د کار په نورو وسایلو کې چې مثلاً د غلې د تولید دپاره ضرور دي دایماً رشد کوي او د هغه کار برخه چې په پټیو کې مصرفیږي نسبتاً کمیږي. زراعتي کار د صنعتي کار د دوام شکل غوره کوي او د هغه یوه ډول ته اوړي. له بلې خوا صنعتي کار چې د زراعتي محصولاتو په پکارولو باندې مصرفیږي ټول هغه تولیدي جریان بشپړوي کوم چې صنعتي او زراعتي تولید په ترکیبي توګه سره یوځای کوي. دغسې هم‌آهنګي د ښار او د کلي تر منځ د اصلي توپیرونو د له منځه وړلو مادي بنسټ تشکیلوي. د زراعت د صنعتي کولو سره یوځای د عمومي ولسي مالکیت اقتصادي او ټولنیز رول اوچتیږي، په کلي او په ښار کې اقتصادي مناسبات سره نژدې کیږي.

د مولده قواو ګړندی پرمختګ به دا امکان برابر کړي چې دوه اساسي او یو له بله سره کلکې پیوند شوې وظیفې سرته ورسولې شي: ۱) د خلکو دپاره د اوچت کیفیت د محصولاتو او د صنعت دپاره د اومو موادو وفور برابر شي. ۲) د کمونستي ټولنیزو مناسباتو خوا ته د شوروي کلي انتقال تامین شي او د کلي او ښار تر منځ زیاتره توپیرونه له منځه وایستل شي. په دې ضمن کې ټولې پروسې چې د عمومي ولسي مالکیت سره کلخوزي تعاوني مالکیت نژدې کوي یوازې د لازمو اقتصادي شرطونو د موجودیت په صورت کې موفقانه پرمختګ کولی شي. یوازې د کلخوزونو د اقتصادي پرمختګ په اساس د هغو د تولید د اشتراکي کولو درجه اوچتیدلی او په دې اساس د کلخوزونو او هغو موسسو تر منځ چې عمومي ولسي دارایي

---

* کلخوزونه ــ د سوسیالستي ډول زراعتي فارم دی چې په مشترک کار سره د ستر ټولنیز او اوچت میخانیکي شوي زراعتي تولید دپاره پکې زیارایستونکي بزګر په رضاکارانه توګه سره یوځای شویدي.

تشکیلوی توپیرونه په تدریجي توګه لرې کېدلی شي. د شوروي اتحاد په اساسي قانون کې ویل شویدي چې «دولت د کلخوزي کوپراتیفي مالکیت د پرمختګ او د دولتي مالکیت سره د هغه د نژدیکت له پاره سره مرسته کوي» (۱۲مه ماده).

د کرهنې د راتلونکې ترقۍ او په تخنیکي وسایلو باندې د مخې د سنبالولو د زیاتولو دپاره دروند صنعت چې د ملي اقتصاد د ټولو څانګو تر ټولو عمده قوه شمیرل کیږي د پخوا په شان ستر اهمیت لري. د کرهنې زیاتیدونکې تخنیکي تجهیزات د کلخوزي بزګرو او صنعتي کارګرو کار په زیاته اندازه سره یوځای کوي. کرهنه به په انرژۍ سره د سنبالیدو د پیمانې سره سم په تدریجي توګه صنعت ته ورنژدې شي. د صنعت په شان په کرهنه کې هم د تولیدي پروسو عمومي میخانیکي کول ترویج مومي او ددې خبرې معنی دا ده چې تولیدات لا په زیاته اندازه د ماشینونو د سیستم په مرسته ترسره کیږي. د صنعتي کار سره د زراعتي کار نژدیکت خپل تبارز په دې کې پیدا کوي چې د ماشین چلوونکو شمیر زیاتیږي، د نوو مسلکونو کارکوونکې پیدا کیږي چې پخوا هیڅکله په کلي کې موجود نه وو.

د مولده قواو انکشاف د کلي د ژوند د بدلون او هوسایۍ دپاره مادي بنسټ ایجادوي. د کلیو د زیاتو ګټورو نقشو له مخې د معاصرو کورونو اعمار او د کلیو د کلتوري سویې اوچتیا به د ښارونو او کلیو د اوسیدونکو د ژوند د شرطونو تر منځ توپیر په تدریجي توګه له منځه یوسي.

څرنګه چې مطلب د اقتصادي مناسباتو په بدلون باندې دی د مولده قواو د خصلت او د هغو د پرمختګ د سویې سره د تولیدي مناسباتو د مطابقت د قانون عمل د ښار او کلي تر منځ د مهم توپیر د لرې کولو په پروسه باندې اغیزه کوي. یوازې د همدغه قانون د ایجاباتو له نقطه نظره مثلاً سړی کولی شي چې په هغو اقداماتو باندې پوه شي چې په وروستیو کلونو کې د کلخوزونو د لویولو، د دولت او کلخوزونو تر منځ د اقتصادي مناسباتو د بدلون او د زراعتي او صنعتي توحید د انکشاف په برخه کې ترسره شوي دي.

په عين حال کې په ټولو دغو تحولاتو کې د سوسياليزم د خاصو قوانينو عمل هم تبارز مومي، سوسيالستي ټولنه په کوم مقصد د مولده قواو سره د توليدي مناسباتو د متوافق کولو غم خوري؟ په دې مقصد چې د مولده قواو د انکشاف دپاره نور امکانات پيدا کړي، توليدات زيات کړي او د ټولنې اړتيا په پوره ډول رفع کړي. په دې بنياد کله چې موږ دا وظيفې سرته رسوو نو د سوسياليزم د اساسي اقتصادي قانون مطابق عمل کوو. همدغه د خلکو د مادي او کلتوري اړتياو د پوره لرې کولو سره علاقمندي او د همدې مقصد په نامه د مولده قواو د ګړندي پرمختګ دپاره د شرطونو د برابرولو ضرورت چې د سوسياليزم په اساسي اقتصادي قانون کې څرګند شويدي شوروي وګړي دې ته تشويقوي چې د مولده قواو د خصلت او د هغو د پرمختګ د سويې سره د توليدي مناسباتو د تطبيق د قانون ايجابات ترسره کړي، توليدات پرله‌پسې پراخ کړي او د هغو د رشد له لارې څخه ټول خلګونه له منځه يوسي.

په دې ترتيب ددې عمومي قانون ايجابات په سوسيالستي ټولنه کې د هغې د خاصو قوانينو له لارې او د هغو سره په متقابل عمل کې ترسره کيږي.

## ۲. د عمومي او خاصو قوانينو متقابل مناسبات

په مارکسيستي ادبياتو کې د عمومي او خاصو قوانينو د متقابلو مناسباتو مسئله په کافي پراخه توګه څيړل شويده. ددې څيړنې په نتيجه کې معلومه شوه چې لکه څنګه چې په عمومي قوانينو کې د خاصو قوانينو مدغمول (يا برعکس په خاصو قوانينو کې د عمومي قوانينو ورننه کول) ناسم کار دی، دغسې يو له بله د هغو سره شلول هم نامعقول کار دی.

کله کله خاص قوانين د عمومي قوانينو د تبارز د شکل په حيث ګڼل کيږي. ددې نظريې مطابق عمومي قوانين شته چې ديالکتيک ماترياليزم يې مطالعه کوي او خاص قوانين د عمومي قوانينو ځانته ډول تبارز شميرل کيږي.

دغسې نظریه د خاصو قوانینو د نسبتي خپلواکۍ د ردولو او د عمومي قوانینو پوازې تغییر شوي شکل ته د هغو د اوښتون موجب کیږي. په دې ترتیب باید خاصه او مشخصه پدیده د عمومي پدیدې مولود وشمیرل شي. مګر ف. انګلس «د طبیعت په دیالکتیک» کې لیکلي وو چې خلک پوازې په رښتوني توګه د موجودو بیلا بیلو اشیاو او د حرکت د اشکالو سره سروکار لري. په عمومي ډول ماده د اشیاو، جسمونو او پدیدو مجموعه ده له کومو څخه چې دا مفهوم اخیستل شویدې. حرکت د حرکتونو د ټولو مشخصو شکلونو له مجموعي څخه پرته بل شی نه دی*. عمومي پدیده رښتیا هم وجود لري مګر د هغې موجودیت د خاصې پدیدې څخه بهر نه بلکه په هغې کې دننه دی.

د حرکت مشخص ډولونه لکه میخانیکي او عضوي انکشاف، د ټولنې تاریخ او داسې نور صرف د کوم عمومي حرکت د تبارز شکلونه نه دي. ځکه خو نو د عمومي او خاصو قوانینو تر منځ تناسب او ارتباط د دغسې ترتیب لاندې نه شي راوستل کیدلی. مثلاً آیا د فزیک، کیمیا، بیولوژۍ د قوانینو ماهیت په دې کې پروت دی چې هغه د دیالکتیک د قوانینو د تبارز شکلونه شمیرل کیږي؟ دا قوانین ځانته مشخص او خاص مضمون لري او د عمومي قوانینو د شکلونو په حیث تلقي نه شي کیدای.

د همدې نقطه نظره به د ټولنیز پرمختګ قوانین هم راواخلو. دا قوانین البته د ماتریالستي دیالکتیک د عمومي قوانینو سره توپیر لري او دا توپیر تر ټولو لوړې په دې کې پروت دی چې دا قوانین د عمل ځانته ساحه لري چې هغه بشري ټولنه ده. مګر ټولنه «پخپل ذات کې»، هماغسې تجریدي تصور دی لکه ماده چې «پخپل ذات کې» ده. ټولنه تل د ټاکلو، مشخصو ټولنیزو او اقتصادي فرماسیونونو په شکل، د خاصو اجتماعي ارګانیزمو (هیوادونو، ولسونو او داسې نورو) په څیر وجود لري. ددې خبرې معنی دا نه ده چې د «ټولنې» مفهوم تش تصور دی چې د مشخصې محتوی څخه خالي دی. دا

---

* ودې کتل شي: ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۲۰ ټوک، ۵۵۰ مخ.

مفهوم هغه عمومی او اصلی خاصیتونه چی صرف نظر د خپلو ځانته سمیزاتو څخه د ټولو ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو خاصه شمیرل کیږی ځرگندوی.

د ټولنیز پرمختگ عمومی قوانین په ټاکلو او مشخصو پروسو کی د یوه فرماسیون د خاصو شرطونو مطابق عمل کوی.

آیا ددی خبری معنی دا ده چی ځانته ډول او خاص قوانین هم تل هغه شکل دی په کوم کی چی عمومی قوانین ځرگندیږی؟ نه د دغو قوانینو تر منځ مناسبات ډیر متنوع دی.

دلته باید دوه پوښتنی یو له بله سره جلا شی: لومړی دا چی آیا عمومی قوانین کولی شی چی اصلاً د ځانته او خاصو قوانینو په شکل کی عمل وکړی او دوهم دا چی آیا کیدلی شی چی خاص قوانین د عمومی قوانینو د تبارز له شکل سره یوځای کړی شی.

دغو پوښتنو ته یورنگه ځواب نه شی ورکول کیدلی. ک. مارکس د ۱۸۶۸ کال د جولای د ۱۱ نیټی په خپل لیک کی چی ل. کوگیلمان ته یی لیکلی و په دی خبره ټینگار کړی و چی په ټاکلو تناسبونو د ټولنیز کار د ویش ضرورت د ټولنیز تولید په کوم خاص شکل سره نه شی لری کیدلی. مارکس دا عمومی اقتصادی قانون د طبیعت له قوانینو سره مقایسه کاوه کوم چی «اصلاً نه شی محو کیدلی. یوازی هغه شکل په کوم کی چی دا قوانین ځانته لاره پرانیزی په تاریخی لحاظ د ټولنی د مختلفو حالتونو سره سم تغییر موبی. مگر هغه شکل په کوم کی چی د کار دغه متناسب ویش ځانته لاره اواروی د ټولنی په هغه حالت کی چی کله د ټولنیز کار رابطه د کار د انفرادی محصولاتو د خصوصی تبادلی په شکل وجود لری، نو همدغه شکل د دغو محصولاتو د تبادلی ارزښت شمیرل کیږی»*.

لکه څنگه چی وینو عمومی قانون چی د کار د ویش د ټاکلی تناسب ضرورت ځرگندوی د کاپیټالیزم په شرطونو کی د مالونو د تولید د خاص قانون یعنی د ارزښت د قانون په حیث عمل کوی

---

* ک. مارکس او ف. انگلس. د آثارو مجموعه، ۳۲ ټوک، ۴۶۱ مخ.

چې په طبیعي توګه یوازې د یوې ټاکلې سودې دپاره او صرف د اخلال شوي توازن د بیا برقرارېدو په نتیجه کې دا تناسب ټینګوي.
دا مثال ښئي چې د عمومي او خاصو قوانینو تر منځ داسې مناسبات وجود درلودلی شي چې کله خاص قوانین د عمومي قوانینو د ځانګړي او مخصوص شکل په څیر تبارز کوي. په دې ضمن کې البته چې مطلب د قانون د تبارز په ظاهري شکل باندې نه دی کوم چې د پدیدو په سطح کې ښکارېږي. هر قانون مهم روابط ښکاره کوي او د عمومیت یو شکل شمیرل کېږي. دا په خاصو قوانینو پورې هم تعلق لري. هغه هم عمومي رنګ لري چې په مشخص شکل کې په ځانګړو پدیدو کې د بېلا بېلو هیوادونو په پرمختګ کې خپل تجسم مومي.
مګر آیا داسې استدلال کېدلی شي چې هر خاص قانون د عمومي قانون د څرګندولو معنی لري؟
نه، داسې استدلال غلط دی. په دې باره کې مفکوره چې عمومي قوانین هیڅکله د خپل تبارز د خاصو شکلونو څخه بهر نه څرګندېږي سمه مفکوره ده مګر دا خاص شکلونه د خاصو قوانینو معنی نه لري. دا خاص قوانین د ټولنیز ژوند مشخصې پروسې دي چې په هره پروسه کې هم عمومي او هم خاص قوانین خپل عمل څرګندوي.
لکه څنګه چې په شوروي فلسفي او اقتصادي ادبیاتو کې څرګنده شویده د عمومي او خاصو قوانینو تر منځ مناسبات متنوع دي. عمومي قانون د یوه یا څو خاصو قوانینو له لارې عمل څرګندولی شي مګر دا حتمي نه ده چې کوم خاص قانون دی د عمومي قانون سره مطابقت ولري یا برعکس. مثلاً د مولده قواو د خصلت او د هغو د انکشاف د سویې سره د مطابقت عمومي سوسیولوژیک قانون په ټاکلو، مشخصو شکلونو کې چې په مختلفو ټولنیزو او اقتصادي فرماسیونونو کې یورنګه نه وي حتماً څرګندېږي. مګر دا قانون چې په مختلفو شکلونو کې څرګندېږي په هر ځانګړي فرماسیون کې د کوم یوه ځانته او خاص قانون په حیث تبارز نه کوي. له بله پلوه د اوسېدونکو مخصوص قوانین چې په بېلا بېلو فرماسیونونو کې عمل کوي د عمومي تاریخي قانون د څرګندېدو خاص شکل نه دی. ک. مارکس په «کاپیتال» کې لیکلي وو چې د نفوسو مجرد (یعني عمومي)

قانون تر هغه وخته پوری چی په دی ساحه کی انسان داخل نه شی یوازی د نباتاتو او حیواناتو دپاره وجود لری. هغه څه چی په بشری ټولنه پوری تعلق لری نو د تولید د هر ډول طرز او وسایلو دپاره «د نفوسو ځانته خاص او د تاریخی خصلت خاوند قوانین شته دی»*.

لکه څنگه چی پورته وویل شول عمومی او خاص قوانین د مختلف ترتیب روابط ښکاره کوی. د هر ډول ټولنی د موجودیت د شرطونو ټاکلی مجموعه شته او دا شرطونه په عمومی قوانینو کی څپل مظهر مومی. پرته له دی د یوه فرماسیون د موجودیت خاص شرطونه هم موجود دی. عمومی قوانین په خاصو قوانینو کی شامل دی مگر خاص قوانین هیڅکله د عمومی قوانینو د تغییر معنی نه لری. دا قوانین ځانته او خاص دی چی له هر بل خاص قانون څخه توپیر لری.

په دی ترتیب د دی مسئلی په څیړلو کی باید له دوو اشتباگانو څخه ځان وژغورل شی. لومړی اشتباه په دی کی پرته ده چی سړی خاص قوانین له عمومی قوانینو او برعکس عمومی له خاصو قوانینو سره یو شی وگڼی. دوهمه اشتباه دا ده چی عمومی قوانین له خاصو څخه وشلول شی او داسی فکر وشی چی دا دواړه یو له بل سره پیوند نه لری او یو له بله کاملاً جلا فعالیت کوی.

په حقیقت کی که هر څومره د عمومی او خاصو قوانینو متقابل مناسبات متنوع هم وی د هغو تر منځ دایماً باطنی رابطه موجوده ده. په همدی وجه په هر ځانگړی فرماسیون کی د عمومی قوانینو د عمل ترتیب د خاصو قوانینو د سنجش څخه پرته نه شی معلومیدلی.

د عمومی قوانینو عمل د ځانگړو فرماسیونونو د ټاکلو شرطونو له مخی تغییر کوی او دا ټاکلی شرطونه د فرماسیون په خاصو قوانینو کی ښکاره کیږی.

د مثال په توگه به د تاریخی پرمختگ یو عمومی قانون واخلو چی د ک. مارکس له خوا تدوین شوی و. هغه دا چی د «تاریخی فعالیت د مضبوطیدو سره یوځای به د پرگنو چی دا فعالیت د هغو

---

* ک. مارکس او ف. انگلس. د آثارو مجموعه، ۲۳ ټوک، ۶٤٦ مخ.

چاره شمیرل کیږی حجم هم پراخ شی*. دا قانون په ټولو فرماسیونونو او په ټولو انقلابی تحولاتو کی چی په ټولنه کی پیش شویدی څیل عمل ښکاره کوی. هر څومره چی انقلابی تحولات ژور وی، هر څومره پیچلی او په تاریخی لحاظ ستری وظیفی چی ددی تحولاتو په ذریعه اجرا شی په هماغه اندازه زیاتی پراخی پرگنی د دغو تحولاتو د آگاهانه او تاریخی ایجادگرو په حیث رابرسیره کیږی. مگر د تاریخ په مختلفو مرحلو کی ددی قانون د عمل په څانته خصوصیت باندی سترگی نه شی پټیدلی. په بورژوازی انقلابونو کی دا قانون په عمده توگه د سیاست په ساحه کی او هغه هم د پرگنو په هغه ویجاړوونکی کار کی چی پر فیودالی نظام باندی یی برید کړی وی څرگندیږی. د سوسیالستی انقلاب په دوران کی پرگنی نه یوازی زوړ نظام له منځه وړی بلکه نوی ټولنیز نظام جوړوی. د زیارایستونکو پرگنی چی د کارگری طبقی د گوند له خوا لارښودل کیږی د ټولنی هم د نوی سیاسی او هم د اقتصادی نظام جوړوونکی دی. سوسیالستی انقلاب د بی‌سارو تاریخی وظیفو په عملی کولو سره د پخوانۍ زمانی د هر بل انقلاب په نسبت په تاریخی فعالیت کی د دایمی خلاق گډون چاری ته د خلکو بیشمیره پراخی پرگنی راپورته کوی. په دی ضمن کی هغه عوامل چی د خلکو پرگنی موثر تاریخی فعالیت ته تشویقوی په بورژوازی او سوسیالستی ټولنو کی یو له بله بنیادی توپیر لری. له استثمار څخه د کار آزادیدل، د سوسیالستی تولید د رشد په اساس د زیارایستونکو د مادی سوکالۍ اوچتیا، د رفیقانه همکارۍ او د سوسیالستی متقابلی مرستی د مناسباتو پیدایښت او انکشاف، د دولتی واک د خصلت بدلون چی پخپله د خلکو واک ته اوړی — دا د سوسیالستی ټولنی ځینی خاص شرطونه دی چی د پرگنو د خلاق فعالیت بی‌ساری رشد تامینوی.

لکه څنگه چی ددی مثال څخه لیدل کیږی عمومی قوانین د خاصو قوانینو سره په نه شلیدونکی پیوند کی عمل کوی او یو په

---

* ک. مارکس او ف. انگلس. د آثارو مجموعه، ۲ ټوک، ۹۰ مخ.

بل کې نفوذ کوي. ځکه خو نو دا تصور سم نه دی چې دا هغه دوه موازي قوانین دي چې بېخي په مستقلانه توګه او یو له بله جلا څرګندېږي.

عمومي او خاص قوانین دواړه یوه معنی نه لري مګر په عین حال کې باید دواړه په وحدت کې سره وڅېړل شي.

په عین زمان کې د هغو پیوند او وحدت تل په نظر کې نه نیول کېږي. دا خبره په تیره بیا د عمومي او خاصو قوانینو د عمل تر منځ د اختلافونو د مسئلې په تعبیر کې څرګندېږي. ځینو پوهانو عقیده درلوده چې په ټولو ټولنیزو او اقتصادي فرماسیونونو کې تر هغه وخته پورې چې نوموړي فرماسیونونه د خپل پرمختګ په صعودي کرښه کې وي، خاص قوانین د عمومي قوانینو سره سم عمل کوي. مګر کله چې ټولنیز او اقتصادي فرماسیون د خپل پرمختګ په نزولي کرښه کې واقع وي نو خاص قوانین د عمومي قوانینو پر ضد کار کوي. ددې نظریې د اثبات دپاره په دې حقیقت استدلال کېده چې مثلاً د معاصر کاپیتالیزم په شرطونو کې د مولده قواو د خصلت او د هغو د انکشاف د سویې سره د تولیدي مناسباتو د مطابقت عمومي قانون د تولیدي مناسباتو بدلون ایجابوي او د تولید پر وسایلو د خصوصي مالکیت له منځه وړل غواړي مګر د کاپیتالیزم خاص قوانین مثلاً د کاپیتالستي پاسرې کولو کلي قانون د شخصي مالکیت د رشد او تحکیم موجب کېږي یعنی دا چې د عمومي قانون پر ضد عمل کوي.

زموږ په عقیده دا نظریه اساسي تعدیلات غواړي. آیا کېدلی شي چې د قوانینو د عمل تر منځ تضاد موجود وي؟ البته چې هو. که چېرې موږ داسې تصور وکړو چې ټول قوانین پخپل عمل کې یو له بله سره ضدیت نه لري نو دا به یو ډول همآهنګي وي چې پخوا له پخوا ټاکل شوې ده خو دا د واقعیت سره مطابقت نه لري. په ژوند کې متضادي پروسې وجود لري او ځکه خو نه شي کېدلی چې د قوانینو تر منځ چې دا پروسې د هغو تابع دي تضادونه وجود ونه لري.

د ځینو عمومي او خاصو قوانینو تر منځ هم تضادونه وجود درلودلی شي. او دا تضادونه هغه وخت لیدل کېږي چې کله د

یوه ټولنیز او اقتصادي فرماسیون د تولید محدود تاریخي هدف د تاریخي پرمختګ د عمومي تمایلاتو سره په نقاضت کې واقع شي.

د «کاپیتال» په دریم ټوک کې ک. مارکس ویلي دي چې څرنګه چې تولید د انسان او طبیعت تر منځ پروسه ده نو ددې پروسې ساده عناصر د ټولنې د پرمختګ په ټولو شکلونو کې لیدل کیږي. لیکن ددې پروسې هر ټاکلی تاریخي شکل د هغې مادي اساساتو او د هغې ټولنیزو شکلونو ته نور انکشاف ورکوي. یو تاریخي شکل چې د پخیدو ټاکلی حد ته ورسیږي نو لا اوچت شکل ته خپل ځای پریږدي. د دغسې بدلون د ضرورت د رسیدو شیبه په دې کې لیدل کیږي چې د تولیدي مناسباتو د موجوده شکل او مولده قواو تر منځ تضاد ډیر شدت پیدا کوي. ک. مارکس په پای کې لیکي چې په هماغه وخت کې د تولیداتو د مادي پرمختګ او هغه د ټولنیز شکل تر منځ شخړه ناڅاپه پیدا کیږي.

څرنګه چې مطلب په دې شخړه باندې دی نو دلته د هغو عمومي قوانینو چې د تاریخي انکشاف شرطونه څرګندوي او د یوه ټاکلي فرماسیون د خاصو قوانینو تر منځ چې ددې تاریخي انکشاف پر ضد عمل کوي تضاد لیدل کیږي.

مګر په کار دی چې لوسږي دا شي په نظر کې ونیول شي چې دلته مطلب اصلاً د عمومي او خصوصي قوانینو په باره کې نه بلکه د بیخي ټاکلو قوانینو تر منځ د تضاد په باره کې دی.

دوهم دا چې د دغه تضاد معنی دا نه ده چې د عمر خوړلې ټولنیز او اقتصادي فرماسیون مرګ یوازې د عمومي قوانینو د عمل مولود شمیرل کیږي. داسې نظریه شته چې خاص قوانین یو فرماسیون ټینګوي او عمومي قوانین د هغه د تهلکې موجب کیږي. دا یو ساده تصور دی.

عین هماغه خاص قوانین د پرمختګ په یوه مرحله کې یو ټاکلی فرماسیون ټینګولی شي او په بله مرحله کې د هغه د تهلکې موجب کیدلی شي. د مثال په توګه آیا ویلی شو چې د کاپټالیزم سقوط یوازې د مولده قواو د خصلت او د هغو د انکشاف د سویې سره د تولیدي مناسباتو د مطابقت د عمومي قانون څخه سرچینه اخلي؟ آیا کاپټالیزم باید د خپلو خاصو قوانینو پر عکس هلاک شي؟

برعکس لکه څنګه چې مخکې وویل شول ک. مارکس د کاپیټالستي نظام د له منځه وړلو ضرورت پخپله د کاپیټالیزم د قوانینو په عمل کې لیده، او دا پوره څرګنده خبره ده. د هرې عمر خوړلې پدیدې په شان کاپیټالیزم هغه تمایلات پخپله زیږوي کوم چې د هغه د نیستي موجب کیږي.

د کاپیټالیزم خاص قوانین (مثلاً د کاپیټالستي پاسرې کولو قانون، د اضافي ارزښت قانون او نور) بالاخره د کاپیټالستي ټولنې د تضادونو د نهایت شدت او د هغه د حتمي تهلکې موجب کیږي. د کاپیټالیزم د اساسي اقتصادي قانون عمل چې د امپریالیزم په شرطونو کې د تولید پرمختګ د اوچتو انحصاري ګټو د تر لاسه کولو تابع کوي د مولده قواو او تولیدي مناسباتو تر منځ د مناقشې د زیاتیدو موجب کیږي. په دې وسیله د کاپیټالیزم د سحو کیدو دپاره شرایط برابریږي. ددې قانون د عمل یوه نتیجه د پانګوالانو په لاسونو کې د لویو ثروتونو راټولیدل او بله نتیجه ئې د کاپیټالستي نظام پر ضد د زیارایستونکو د انقلابي کرکې زیاتیدل دي. اوچته انحصاري ګټه د سترو پانګوالانو له خوا د زیارایستونکو د تاراج، په اقتصادي لحاظ د بیرته‌پاته او لاس لاندې هیوادونو د استثمار، د اقتصاد د نظامي کولو او داسې نورو لارو راایستل کیږي. دا خبره د هیواد په دننه کې طبقاتي تضادونه، د بیرته‌پاته او لاس لاندې هیوادونو او د امپریالستي هیوادونونو تر منځ او همدغه رنګه پخپله د امپریالستي دولتونو تر منځ تضادونه زیاتوي.

په دې ترتیب ددې قانون عمل د امپریالیزم د ټولو تضادونو د شدت موجب کیږي او د هغه نیستي حتمي کوي.

له دې ځایه دا استنتاج کیدلی شي چې د ځینو عمومي او خاصو قوانینو د عمل تر منځ تضادونه وجود درلودلی شي مګر هغه باید په ساده توګه تلقي نه شي یعني په دې معنی تلقي نه شي چې دا قوانین ګنې یو له بله په جلا او خپلواکه توګه عمل کوي.

د عمومي او خاصو قوانینو د سره جلا کولو غلط تمایل د هغو څخه د استفادې د مسئلې په حل کولو کې هم خپله اغیزه کوي. مثلاً داسې نظریه هم وړاندې شوې وه چې حاکمه طبقه د خپل فرماسیون په خاصو قوانینو چې تر ټولو زیات د هغې د طبقاتي ګټو سره سمون

لری اتکاء کوی او نوی انقلابی طبقه د عمومی تولنیزو قوانینو په عمل باندی ډډه لگوی. د دغسی نظریی پلویانو د عمومی او خاصو قوانینو تر منځ فاصله دی حد ته ورسوله چی هغه بی د بیلا بیلو طبقاتو «په اختیار کی» واچول.

داسی فکر کول چی د ټولو عمومی قوانینو عمل د حاکمی طبقی له گټو سره ضدیت لری او خاص قوانین د دغو گټو سره توافق لری اشتباه ده. په حقیقت کی دا خبره دومره ساده هم نه ده. مثلاً مشکله ده چی دا ثابته شی چی د کاپتالیزم دغسی خاص قانون لکه د گټو د اندازی د کموالی د تمایل قانون دی د بورژوازی له گټو سره مطابقت ولری.

خاص قوانین داسی عواقب درلودلی شی چی د حاکمی طبقی له گټو سره متضاد وی. د مثال په توگه به د اوچتو انحصاری گټو د ترلاسه کولو پورته ذکر شوی قانون یاد کړو. البته چی بورژوازی ددی قانون له عمل سره علاقمندی لری. مگر په عین زمان کی دا قانون نور عواقب هم له ځانه سره راوړی چی د بورژوازی دپاره نامطلوب دی. هر څومره چی بورژوازی د خپل هیواد او د نورو هیوادونو د زیارایستونکو د استثمار له لاری، د اقتصاد د نظامی کولو له لاری خپلی گټی زیاتوی په هماغه اندازه د کاپتالیزم تضادونه چی د هغه مرگ حتمی کوی زیاتیږی.

اوس به وگورو چی پرولتاریا د کاپتالیزم له خاصو قوانینو سره څه ډول برخورد لری؟

پرولتاریا، څرنگه چی دا قدرت لری نو تلاش کوی چی د هغو اقتصادی قوانینو چی د کاپتالستی استثمار مناسبات څرگندوی د عمل ساحه محدوده کړی. مثلاً په کاپتالستی ټولنه کی د نفوسو د نسبتی زیاتوالی قانون اعتبار لری چی د هغه په نتیجه کی د بیکارانو احتیاطی اردو جوړیږی. ک. مارکس لیکلی وو چی کارگران هلی ځلی کوی چی «د کارگری اتحادیو او نورو سازمانونو له لاری د کار لرونکو او بیکارانو تر منځ منظم متقابل تاثیر برقرار کړی تر څو چی د خپلی طبقی دپاره د کاپتالستي تولید ددی طبیعی قانون

تباه کوونکی عواقب له منځه یوسی یا یی کم کړی»*. د کاپیتالیزم په شرطونو کی پرولتاریا ددی توان نه لری چی ددی قانون اعتبار فسخ کړی مګر هغه کولی شی چی په یوموټی کیدو او د خپلو مسلکی سازمانونو په جوړولو سره تر ټاکلی اندازی پوری ددی قانون عواقب کمزوری او محدود کړی.

د بل مثال په حیث به د کارګری قوی د ارزښت قانون راواخلو. ف. لاسال نظریه درلوده چی ګنی په کاپیتالستی ټولنه کی د «کار د مزد فولادی قانون» اعتبار لری چی د هغه په نتیجه کی د کارګرو هر ډول اقتصادی موفقیت پخپله د هغوی پر ضد رااوړی. که چیری هغوی د معاش زیاتوالی ترلاسه کوی نو په دی ترتیب دا د کارګری قوی د عرضی د رشد او متعاقباً د معاش د کمیدو موجب کیږی. په دی اساس د هغوی اقتصادی مبارزه نتیجه نه ورکوی.

مارکسیستان په تقدیر باندی د اعتقاد د دغسی دریځ سره مخالفت لری. هغوی عقیده لری چی د معقولی لارښودنی له فیضه کارګری طبقه پخپله منظمه مبارزه سره د کارګرو د معاش د ټیټولو خوا ته د کاپیتالیزم د نیتونو مخه نیولی شی.

کارګری طبقه چی کله غواړی د کاپیتالیزم د یو شمیر قوانینو عواقب محدود یا کمزوری کړی نو په خپله اقتصادی مبارزه کی په څه شی اتکاء کوی؟ څرنګه چی پرولتاریا د یوه مخصوص مال او هغه هم د خپلی کارګری قوی مالک دی نو کولی شی چی د خپلی کارګری قوی په عرضه باندی د اغیزی کولو له لاری له پانګوالانو څخه د خپل معاش زیاتوالی ترلاسه کړی. کله چی کارګران اعتصاب اعلانوی نو د اقتصادی نقطهٔ نظره ددی خبری معنی دا ده چی هغوی د کار په بازار کی د کارګری قوی د عرضی د کمولو له لاری پانګوالان دی ته اړ باسی چی د هغوی د کارګری قوی بیه اوچته کړی. په دی اساس هغوی زیار باسی چی د تقاضا او عرضی د قانون عمل چی د کارګری قوی په بیه باندی اغیزه کوی د هغوی په مقابل کی ودروی.

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۲۳ ټوک، ۶۵۵ مخ.

مگر یوازی اقتصادی مبارزه کارگری طبقی ته له استثمار څخه خلاصون نه شي ورپه برخه کولی. کارگری طبقه یوازی په هغه شرط خپل اقتصادی وضعیت ته اصلی تغییر ورکولی شی چی د کاپتالستی استثمار پر ضد مبارزه وکړی. ددی وظیفی د ترسره کولو دپاره تر ټولو لومړی د پرولتاریا سیاسی مبارزه ضرور ده چی د هغی د طبقاتی مبارزی تر ټولو اوچت شکل شمیرل کیږی. پرولتاریا په خپلو انقلابی جگړو کی د کاپتالیزم د رانسکورولو په غرض د مولده قواو د خصلت او د هغو د انکشاف د سویی سره د تولیدی مناسباتو د مطابقت د عمومی قانون څخه استفاده کوی. ولی پرولتاریا د کاپتالستی ټولنی د خاصو قوانینو د عمل په نتیجو باندی هم اتکاء کوی ځکه چی دا قوانین د تولید د اشتراکی کولو په زیاتیدونکی پروسه او د کاپتالیزم د تضادونو چی حتماً سوسیالستی انقلاب ته ختمیږی په شدت کی خپل تبارز پیدا کوی.

د امپریالیزم په دوران کی د سوسیالستی انقلاب د زمینی برابریدل د کاپتالستی هیوادونو د اقتصادی او سیاسی انکشاف د بی‌توازنۍ د قانون په عمل پوری تعلق لری. پرولتاریا دا قانون پخپل خدمت کی نه شی گمارلی ځکه چی د هغه خصلت دا اجازه نه ورکوی. هغه دا توان هم نه لری چی ددی قانون پر عمل باندی اغیزه وکړی. مگر پرولتاریا کولی شی چی ددی قانون له پوهی څخه کار واخلی څو چی د امپریالستی ځنځیر په تر ټولو کمزوری کړۍ کی خپلی قواوی سره راټولی کړی کومه چی د کاپتالستی انکشاف د بی‌توازنۍ په نتیجه کی د انقلابی قوتونو دپاره تر ټولو نامحفوظ ځای شمیرل کیږی. د روسیی کارگرو او زیارایستونکو بزگرو چی په ۱۹۱۷ کال کی د کمونست گوند په لارښودنه تر ټولو لومړی پر امپریالیزم باندی د یرغل دپاره پورته شول همدغسی کار وکړ.

۷ فصل

# د ټولنيزو او اقتصادي فرماسيونونو د بدلون عمومي قانونمندي او د بيلا بيلو هيوادونو او ولسونو د پرمختګ ځانته خصوصيت

د ځانګړو هيوادونو او ولسونو د تاريخ پرمختګ د عمومي قانونمندۍ او ځانته خصوصيت د تناسب مسئله مهم نظري او عملي اهميت لري. ددې مسئلې څېړل بايد د ټولنيز او اقتصادي فرماسيون د مفهوم له تحليل څخه پيل شي. دا مفهوم امکان ورکوي چې تاريخي پروسه په فلسفي طرز وڅېړل شي او د هغو تاريخي حوادثو چې د بيلابيلو هيوادونو او سيمو، بيلا بيلو زمانو او دورو تاريخ تشکيلوي په بې‌نهايته تنوع کې وحدت معلوم شي. د ټولنيز ساختمان هر عنصر چې که اقلاً د داسې اقتصادي مفهوم څخه پيل شي لکه پانګه او د شخصيت په ټولنيزو ډولونو او د هغوی په معنوي تشکل باندې ختم شي يوازې د ټاکلو ټولنيزو او اقتصادي فرماسيونونو سره چې نوموړی عنصر يې محصول بلل کيږي په ارتباط کې تحليل کيدلی او د پوهيدلو وړ ګرځيدلی شي.

د تاريخ علم د ټولنيزو او اقتصادي فرماسيونونو په تعليماتو کې د تر ټولو سترو تاريخي دورو او تر ټولو د مخه د معاصرې دورې چې دا په تيره بيا د ګوند د عملي فعاليت د پاره خاص اهميت لري او په نړيوال مقياس د کاپيتاليزم د زوال او د سوسياليزم او کمونيزم د پيدايښت دوره شميرل کيږي د اساسي مفهوم او مضمون د راسپړلو وسيله د سړي لاس ته ورکوي.

## ۱. د ټولنیز او اقتصادي فرماسیون مفهوم

د تاریخي انکشاف د عمومي قوانینو او د بیلا بیلو ولسونو د پرمختګ تر منځ د تناسب د معلوسولو د پاره نظري اساس د ټولنیزو او اقتصادي فرماسیونونو په باره کې د مارکسیزم او لېنینیزم په تعلیماتو کې پروت دی. ددې تعلیماتو له فیضه دوو مهمو پوښتنو ته ځواب ورکول کیدلی شي. ۱) په بشري تاریخ کې د مختلفو دورو د تبدیلي قانوني تسلسل یعنې دا چې د تاریخي پروسې عمومي لوري په څه شي سره ټاکل کیږي. ۲) د بیلا بیلو هیوادونو او ولسونو په تاریخ کې چې د انکشاف عین مرحله تیروي قانوني تکرار په څه شي کې څرګندیږي.

د تاریخي انکشاف مشخص تعبیر یوازې هغه وخت ممکن دی چې کله «پخپل ذات کې» د ټولنې په باره کې د مجردو قضاوتونو پر ځای چې د بورژوایي سوسیالوژۍ خصلت شمیرل کیږي د ټولنیز او اقتصادي فرماسیون مفهوم وټاکل شو. مارکسیزم د ټولنې تاریخ د ټولنیزو او اقتصادي فرماسیونونو د انکشاف او تبدیلي په حیث تلقي کوي.

د تاریخي ماټریالیزم جوړوونکو ک. مارکس او ف. انګلس دا حقیقت کشف کړ چې د دولت حقوقي مناسبات او شکلونه د ټولنې د ژوند په شرطونو کې چې مجموعاً د «مدني ټولنې» تر عنوان لاندې توحید موندلی شي او د «مدني ټولنې» ساختمان باید په سیاسي اقتصاد کې ولټول شي. د مارکس او انګلس په یوه لومړي اثر «آلماني ایدیولوژۍ» کې ویل کیږي چې مدني ټولنه د ټول تاریخ رښتوني مرکز او صحنه شمیرله کیږي. دا ټولنه «د مولده قواو د انکشاف په ټاکلې مرحله کې د افرادو ټول مادي معاشرت احتوا کوي» او «په ټولو زمانو کې د دولت زیربنا تشکیلوي»*. د مارکس او انګلس په قول د تاریخ د ماتریالستي او ایدیالستي تعبیرونو اختلاف په دې کې پروت دی چې پخپله د ژوند د مادي تولید په سنجش د تاریخ د اساس په حیث په مختلفو مرحلو کې د معاشرت (مدني ټولنې) هغه شکل چې د تولید

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. فویرباخ. د ماتریالستي او ایدیالستي نظریاتو اختلاف. مسکو، ۱۹۶۶، ۹۵، ۹۶ مخونه.

ددی طرز مولود شمیرل کیږی او ورسره رابطه لری وځیړل او درک شی او وروسته د هغه له مخی د دولتی ژوند پرمختګ او همدغه رنګه د شعور ټول شکلونه لکه دین، فلسفه، اخلاق او نور توضیح شی. ک. مارکس په خپل اثر کی «اجرتی کار او پانګه» لیکی چی «تولیدی مناسبات په مجموعی توګه هغه څه تشکیلوی چی د ټولنیزو مناسباتو او ټولنی په نامه یادیږی او په ضمن کی هغه ټولنه جوړوی چی د تاریخی انکشاف په ټاکلی مرحله کی واقع وی، هغه ټولنه چی ځانته مخصوص خصلت لری»*.

یوازی په دی نظریه سره په دی خبره باندی پوهیدل ممکن و چی ټولنه مصنوعی نه بلکه طبیعی تاریخی تشکل دی. د ټولنیز او اقتصادی فرماسیون د مفهوم د تدوین سره یوځای د بشری ټولنی د مختلفو ډولونو چی په نړیوال تاریخ کی یو بل تبدیلوی دقیق بیلوالی هم ممکن شو.

هر ټولنیز او اقتصادی فرماسیون د تولیدی مناسباتو ټاکلی قسم لری کوم چی هغه ته ځانته شکل ورکوی او د نورو فرماسیونونو څخه هغه بیلوی.

مګر ددی خبری معنی دا نه ده چی ټولنیز او اقتصادی فرماسیون یوازی د ټولنی د اقتصادی ساختمان په بنا جوړیږی. په دی مفهوم کی هغه روبنا شامله هم ده چی په اقتصادی زیربنا باندی منځ ته راځی. و. ای. لېنین لیکلی و چی په انکشافی حالت کی د تولیدی مناسباتو پلټنه د «کاپیتال» یوازی سکلیت جوړوی. لېنین وړاندی لیکی چی سربیره پر دی مارکس په دی سکلیت باندی بسیا نه شو بلکه روبنا ته یی چی د تولیدی مناسباتو سره مطابقت لری ژوندی وجود ورکړ. ددی په نتیجه کی «کاپیتال» لوستونکو ته «د یوه ژوندی فرماسیون په حیث د هغه د ورځنیو پدیدو سره، د طبقاتو د ربنتونی ټولنیز نقاضت سره چی په تولیدی مناسباتو کی لیدل کیږی، د بورژوایی سیاسی روبنا سره چی د پانګوالانو د طبقی باداری ساتی، د آزادۍ،

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ٦ ټوک، ٤٤٢ مخ.

برابری۔ او داسی نورو بورژوایی مفکورو او د بورژوایی کورنیو مناسباتو سره ټول کاپتالستی ټولنیز فرماسیون وښود»*.

کله کله دا پوښتنه کیږی چی آیا د ټولنیز او اقتصادی فرماسیون په مفهوم کی مولده قواوی هم شاملیږی که نه؟

ځینی دی پوښتنی ته منفی ځواب ورکوی او یوازی د ټولنی اقتصادی نظام او د هغی مربوطه روبنا په فرماسیون کی شاملوی. مگر آیا کیدلی شی چی د اقتصادی مناسباتو انکشاف چی د یوه فرماسیون خصلت تشکیلوی وڅیړل شی د هغو د مادی اساس څخه پرته؟

په دی کی شک نشته چی هر ټولنیز او اقتصادی فرماسیون ځانته مادی او تخنیکی بنسټ او یا که واضح وویل شی د مولده قواو ټاکلی خصلت لری. مثلاً کاپتالیزم کوچنی او مشتت تولید چی د کار د لاسی وسایلو په استفاده بنا و په ستر ماشینی تولید بدل کړ.

معمولاً هر ټولنیز او اقتصادی فرماسیون له اوله د هغو مولده قواو په بنسټ پیدا کیږی کومو چی د پخوانی فرماسیون په بطن کی رشد کړی وی او یوازی د خپل راتلونکی انکشاف په جریان کی د ځان مطابق تخنیکی اساس جوړوی. مثلاً په صنعت کی کاپتالستی مناسبات له اوله د کار د تعاون او د مانوفاکتور د تولید چی لاسی صنعت یی اساس تشکیلاوه پر مخ تلل. یوازی هغه وخت چی کله درانده صنعت ماشینونه د ماشینونو په ذریعه تولید کړل نو د ک. مارکس په قول یی د ځان مطابق تخنیکی بنسټ جوړ کړ.

د معاصر کاپتالیزم په شرطونو کی د تولید اتوماتیکی کیدل انکشاف کوی. مگر کاپتالستی تولیدی مناسبات د تخنیکی پرمختگ مخه نیسی او په کلی توگه د ټولنیز تولید د اتوماتیکی کولو امکان له منځه وړی. ددی مقصد تر لاسه کول به کمونیزم یعنی هغی ټولنی ته له انتقال سره ارتباط لری کومه چی د مولده قواو په غښتلی پرمختگ باندی په اتکاء سره د ښار او کلی، د دماغی او جسمانی کار د خلکو تر منځ اصلی توپیرونه له منځه یوسی، د مادی نعمتونو

---

* و. ای. لینین. کلیات، ۱ ټوک، ۱۳۹ مخ.

پوره وفور او ددی اصل تر سره کول به تامین کړی چې وايي «له هر چا څخه د استعداد مطابق – هر چا ته د ضرورت مطابق».

کمونستي ټولنيز او اقتصادي فرماسيون لکه د هر بل فرماسيون په شان بيله مادي تخنيکي بنسټ څخه چې له هغو سره مطابقت ولري ناممکن دی. د کمونيزم د جوړولو د ټولو اصلي مقاصدو تر لاسه کول' يعنی د مادي او کلتوري نعمتونو د وفور برابرول چې د خلکو د زياتيدونکو اړتياو د لرې کولو د پاره په کار دی، د کار د خصلت بدلون، د شخصيت د هراړخيز انکشاف د پاره د شرطونو تامينول، د طبقاتي توپيرونو د بقاياو له منځه وړل او نور تر ټولو د مخه او په عمده توگه د سوسيالستي ټولنی د مولده قواو په انکشاف پوری تعلق لري.

د ټاکلو مولده قواو په اساس د هغو مطابق توليدي مناسبات تشکل موسی او د هری ټولنی د توليدي مناسباتو سيستم د هغی اقتصادي ساختمان او د هغی سکليت جوړوی کوم چې روحاً او جسماً د سياسي ـ حقوقي او ايدیالوژيکي روبنا په شکل چې پخپله زيربنا باندی رشد کوی رابرسره کيږی.

په دی ترتيب ټولنيز او اقتصادي فرماسيون د ټولنی په پرمختگ کی په تاريخي لحاظ ټاکل شوی مرحله ده چې د توليد طرز چې يوازی ددی مرحلی خصلت شميرل کيږی د هغی اساس تشکيلوی. دا «پخپل ذات کی» ټولنه نه بلکه د ټاکلی ډول ټولنه ده لکه يا فيوډالی يا کاپيتالستي يا کمونستي ټولنه او داسی نور.

د فرماسيون مفهوم د ټولنيز او اقتصادي نظام چې په بيلا بيلو هيوادونو کی موجود وی تر ټولو مهم او اصلی خصوصيات تعميم کوی. ځکه خو نو دا مفهوم د ټولنی په تاريخ کی د تکرار د پيژندلو وسيله شميرل کيږی. په دی مفهوم کی هغه څه نغښتي دی چې د بيلا بيلو هيوادونو د پاره چې د تاريخي پرمختگ د عين مرحلی څخه تيريږی مشترک شميرل کيږی.

دا مفکوره به په ځينو مثالونو کی څرگنده کړو. معلومه ده چې سورخينو د هغو بيلا بيلو ولسونو چې د بشری ټولنی په لومړنيو دورو کی يی ژوند کاوه د رواياتو، عاداتو او ټولنيزو رسوسو په مطالعه کولو کی د هغو تر منځ حيرانوونکی شباهت پيدا کړ.

ددی شباهت علت څه شی دی؟ دا علت د یو شمیر ولسونو له خوا د نورو ولسونو د رسومو په اخیستلو کی نه بلکه په دی کی پروت دی چی هغوی ټول د ټولنیز او اقتصادی پرمختګ په یو رنګه مرحله کی میشت و سره ددی چی هغوی دا مرحله په بیلا بیلو وختونو او مختلفو مشخصو اوضاعو کی تیره کړی وی. دا مرحله د ابتدایی ټولنی نظام دی چی د بشریت په تاریخ کی تر ټولو لومړی ټولنیز او اقتصادی فرماسیون شمیرل کیږی.

هماغه پدیدی چی د کاپتالیزم د انکشاف په وجه په انګلستان کی لیدل کیدلی لکه د کوچنیو مولدینو افلاس، د کارګری طبقی فقر، اقتصادی بحرانونه او داسی نور باید په ټولو هغو نورو هیوادونو کی چی دا مرحله یی تیروله تکرار شوی وای او په رښتیا هم تکرار شولی.

ځرګنده خبره ده چی په هر ځانګړی هیواد کی کاپتالستی انکشاف خپل خاص خصوصیت لری. په انګلستان، فرانسه، آلمان او روسیه کی کاپتالیزم خاص خصوصیتونه درلودل چی باید په نظر کی ونیول شی.

حتی د اقتصادی مناسباتو شکلونه (د بانکونو، شرکتونو، کارتلونو، اتحادیو او داسی نورو تشکیلات) په بیلا بیلو کاپتالستی هیوادونو کی پوره سره یو رنګه نه دی. په تیره بیا د سیاسی نظام شکلونه متنوع دی (په یو شمیر هیوادونو کی مشروطه سلطنت، په نورو هیوادونو کی پارلمانی جمهوریت، په دریمه ډله هیوادونو کی ریاستی جمهوریتونه او داسی نور دی). د دغسی خصوصیت ردول لویه اشتباه ده. مګر سره ددی هم د خاص ټولنیز او اقتصادی فرماسیون په صفت د کاپتالیزم عمومی خصوصیات په ټولو کاپتالستی هیوادونو کی یو رنګه دی.

په دی ترتیب د ټولنیز او اقتصادی فرماسیون مفهوم د بیلا بیلو هیوادونو د ټولنیزو رسومو د مقایسی او د تاریخی پرمختګ د هغی مرحلی په کونه کی چی دغه هیوادونه ژوند کوی د ټاکلو د پاره عین محک په لاس راکوی. ددی له فیضه موږ کولی شو چی هغه مشترک شی پیدا کړو چی د دغو هیوادونو په ټولنیزو رسومو کی وجود لری او په عین حال کی د هغو تر منځ هغه توپیرونه چی د هماغه فرماسیون په دننه کی تطابق پیدا کوی غوره کړو.

هر ټولنیز او اقتصادی فرماسیون خاص اجتماعی ارګانیزم دی چې د خپل پیدایښت، انکشاف او بل فرماسیون ته د انتقال ځانته قوانین لری.

د تولید ټاکلی طرز د هر فرماسیون اساس تشکیلوی. که چیری دا طرز د تولید په بل طرز سره بدل شی نو په بل فرماسیون سره د هغه د بدلیدو موجب کیږی. د تولید د یوه طرز د سویې او د انکشاف د مرحلی په تغییر سره د هماغه فرماسیون د انکشاف مرحله هم تغییر مومی.

مګر د تولید د اصلی طرز تر څنګ چې د یوه فرماسیون څیره او قیافه ټاکی د هغه په بطن کی د اقتصاد د مخصوصو شکلونو په څیر د تولید د زړو طرزونو بقایا یا د نوو طرزونو زړی وجود درلودلی شی او وجود لری.

په دی وجه طبعاً د فرماسیون په دننه کی د نظامونو د تناسب او د ډول ډول مناسباتو چې موږ یی په ټولنیز ژوند کی ګورو د پیچلی اختلاط په باره کی مسئله وړاندی کیږی. مګر دا اختلاط که هر څومره پیچلی هم وی تل ددی امکان او ضرورت شته چې اصلی نظام غوره کړی شی. که چیری فرماسیون تشکل موندلی او ټاکلی تکامل ته رسیدلی وی نو دا نظام به په اقتصاد کی اصلی او مهم نظام دی. که چیری فرماسیون تازه شکل مومی یا ټولنه له انتقالی دوری څخه تیریږی نو نظام کولی شی چې د خپل مخصوص وزن له مخی لا برتری ونه لری مګر تل لارښوونکی رول لوبوی او د ترقۍ په لاره کی د ټولنی د انکشاف اساسی لوری ټاکی. مثلاً سوسیالستی نظام په شوروی روسیه کی له کاپټالیزم څخه د سوسیالیزم خوا ته په انتقالی دوره کی دغسی رول لوباوه. د اقتصاد اصلی معاریج ددی نظام په اختیار کی متمرکز شوی و په داسی حال کی چې د اوسیدونکو لویه برخه له اوله د مالونو له کوچنی تولید سره لا تړلی وه.

د فرماسیون د جوړښت په مسئله پوری د زیربنا او روبنا، اقتصاد او سیاست د تناسب مسئله هم تعلق لری. ځینی پوهان د ماقبل کاپټالستی ټولنو په تعرفولو کی د هغو پر اقتصادی اساساتو پرده اچوی او په کاپټالیزم کی د مادی مناسباتو برعکس شخصی مناسباتو ته اول ځای ورکوی. دا مفکوره په دی ترتیب تفسیر کیږی چې

د ماقبل کاپتالستی فرماسیونونو د اقتصادی اساس په باره کی مسئله دوهم ځای نیسی. ولی د مارکسیزم او لېنینیزم بنسټ ایښودونکو په ماقبل کاپتالستی فرماسیونونو کی د غیراقتصادی مجبوریت د رول په تعریف کی د هغه اقتصادی اساسات هم له نظره هیڅکله نه غورزول . ف. انگلس د «انتی‌دیورینگ» او «د کورنی، خصوصی مالکیت او دولت د پیدایښت» په خپلو آثارو کی د مریتوب د پیدایښت پخپل تحلیل کی ددی موقف په تیره بیا دفاع کوله.

په بیلا بیلو فرماسیونونو کی د ټولنیزو پدیدو د اقتصادی دیترمنیزم په ترتیب کی د ټولو توپیرونو سرهسره په هر فرماسیون کی د اقتصادی زیربنا اصلی رول لیدل کیږی په کومه باندی چی سیاسی، حقوقی او ایدیالوژیکه روبنا رشد کوی. ځکه خو نو د مارکسیزم او لېنینیزم بنسټ ایښودونکو هم د اقتصادی زیربنا د اصلی رول د ایدیالستیک تردید او هم په میخانیکی طرز د روبنا د رول څخه د انحراف پر ضد مبارزه کوله.

د و. ای. لېنین په قول مارکسیزم ټولنه «(په میخانیکی توگه د سره نښلول شوی شی په حیث چی په همدی وجه د ځانگړو ټولنیزو عناصرو پخپل سر ترکیب مجاز شمیری نه) بلکه د ژوندی ارگانیزم په حیث څیړی چی دایماً په انکشاف کی وی او د هغی د مطالعی د پاره د تولیدی مناسباتو چی یو ټاکلی ټولنیز فرماسیون تشکیلوی، عینی تحلیل او د هغه د فعالیت او انکشاف د قوانینو پلټل په کار دی»*.

د ټولنیز او اقتصادی فرماسیون مفهوم امکان برابروی چی سړی د ټولنی د انکشاف د ټاکلی مرحلی په کیفی توپیر، خصوصیاتو او د ځانته خصوصیاتو څرنگوالی معلوم کړی او پری پوه شی او له یوی مرحلی څخه بلی مرحلی ته تاریخی خوځون مطالعه کړی.

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۱ ټوک، ۱۶۵ مخ.

## ۲. د تاریخی انکشاف په حیث د ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو پرلهپسی تبدیل. فرماسیون او دوره

په تاریخ کی د ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو پنځه اساسی ډولونه معلوم دی یعنی د انسانانو لومړنۍ ګډه ټولنه، د مریتوب ټولنه، فیوډالی ټولنه، کاپتالیزم او بالاخره کمونیزم (سوسیالیزم د کمونستی ټولنی لومړۍ مرحله شمیرل کیږی).

د ټولنیزو اقتصادی فرماسیونونو د تبدیلی تسلسل د تاریخی پرمختګ اساسی لوری او د ټولنیز انکشاف اصلی مرحلی دی. څکه خو نو د ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو په باره کی تعلیمات د دورانونو د توصیف عینی اساس چی د تاریخی علم د پاره ضروری شمیرل کیږی زموږ په اختیار کی اچوی.

د فرماسیونونو تبدیلی طبیعی تاریخی پروسه ده. ک. مارکس د خپل «پر سیاسی اقتصاد باندی انتقاد» نومی اثر په مشهوره مقدمه کی عمومی قانونمندی څرګنده کړه چی د هغی له مخی هیڅ یو ټولنیز او اقتصادی فرماسیون تر هغه وخته پوری نه محو کیږی تر څو چی ټولی مولده قواوی یی انکشاف ونه کړی د کومو د پاره چی نوموړی فرماسیون کافی امکانات برابروی. او نوی اوچت تولیدی مناسبات پخوا تر دی چی پخپله د پخوانۍ ټولنی په زمینه د هغو د موجودیت د پاره مادی شرایط برابر نه شی هیڅکله نه پیدا کیږی. د قاعدی سرهسم له یوه فرماسیون څخه بل فرماسیون ته انتقال د ټولنیزو انقلابونو له لاری تر سره کیږی او دا انقلابونه د مربوطو شرایطو سرهسم مختلف مشخص شکلونه لری.

په نورو فرماسیونونو باندی د فرماسیونونو د تعویض علت د تولید د طرز په بدلون کی پروت دی. د مولده قواو د خصلت او د هغو د انکشاف د سویی سره د تولیدی مناسباتو د مطابقت قانون دی پوښتنی ته چی ولی ټولنیز او اقتصادی فرماسیونونه تعویضیږی ځواب ورکوی. ددی قانون سرهسم نوی مولده قواوی چی د زړی ټولنی په بطن کی یی رشد کړی وی د خپل حالت مطابق د تولیدی

مناسباتو ایجاب کوی. پخوانی تولیدی مناسبات چې د ټولنې د انکشاف مخه نیسي باید له منځه یوړل شي او نوی مناسبات د هغو ځای ونیسي ځکه چې پرته له دې راتلونکې ګړندی انکشاف او د مولده قواو آزادانه او بې‌خنډه پرمختګ ناممکن دی.

په دې ترتیب د مولده قواو او تولیدی مناسباتو تر منځ مخالفت د زاړه ټولنیز او اقتصادی فرماسیون د له منځه وړلو او نوی فرماسیون ته د هغه د انتقال د ضرورت مهم علت شمیرل کیږي.

ځکه نو د ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو تبدیلي د تاریخي انکشاف په لاره د ټولنې حرکت ښیي. د ټولنیز او اقتصادی فرماسیون مفهوم د تاریخي انکشاف د مرحلو د تشخیصولو د پاره محک پیدا کوی. ک. مارکس لیکي چې «په عمومي توګه د تولید آسیایي، لرغونی، فیوډالي او معاصر بورژوایي طرزونه د ټولنیز او اقتصادی فرماسیون د مترقي دورانونو په حیث بلل کیدای شي. بورژوایي تولیدی مناسبات د تولید د ټولنیزې پروسې وروستی متضاد شکل دی. په بورژوایي ټولنیز فرماسیون سره د بشری ټولنې د ظلمت دوره پای ته رسیږي»*. لکه څنګه چې ک. مارکس او ف. انګلس پیشګویي کړې وه ددې دورې په ځای کمونستي ټولنیز او اقتصادی فرماسیون راپیدا کیږي چې رښتوني بشری تاریخ پرانیزي. ک. مارکس او ف. انګلس په خپلو وروستیو آثارو کې د انسانانو لومړنۍ ګډه ټولنه په تاریخ کې لومړی ټولنیز او اقتصادی فرماسیون بللی و چې ټولو ولسونو بې له استثناء هغه له خپله سره تیر کړیدی. «د کورنۍ، خصوصي مالکیت او دولت د پیدایښت» په نامه د ف. انګلس په اثر کې ددې فرماسیون

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۱۳ ټوک، ۷ — ۸ مخونه. په دغه اقتباس کې ک. مارکس د تولید آسیایي طرز د لرغوني طرز سره (نه د مریتوب له طرز سره) مقایسه کوی چې په دې اساس ویل کیدلی شي چې د تولید آسیایي او لرغوني طرزونه د تولید یوه طرز انواع دی. د تولید د ځانته آسیایي طرز د موجودیت په باره کې مسئلې په راوروسته مارکسیستي تاریخي ادبیاتو کې بحث تولید کړ. دا مسئله باید د عمومي نظری ملاحظاتو له لارې نه بلکه د مشخصو تاریخي موادو د راټولولو په اساس حل کړی شي.

مفصل تحلیل شویدی او دا تحلیل تر ډیری اندازی پوری د ل. مورګان په کشفیاتو باندی چی د نوموړی په «لرغونی ټولنه» نومی کتاب کی (۱۸۷۷) ذکر شویدی او همدغه رنګه په نورو ماخذو باندی استناد کوی.

د تاریخ په معاصره بورژوایی فلسفه کی او سوسیولوژۍ کی داسی نظریی او تیورۍ خپری شویدی چی تلاش کوی چی اصلاً د ترقی مفکوره رد کړی. دا البته د ډیری توجه وړ خبره ده. که چیری د کاپیتالیزم په ارتقایی دوره کی د هغه مفکوره جوړونکو لکه مثلاً ژ. کندورسی د بی‌نهایته ترقۍ* د مفکوری دفاع کوله نو د کاپیتالیزم په نزولی دوره کی ګڼ شمیر بورژوایی مفکوره جوړوونکی لکه څنګه چی هغوی وایی په ترقۍ باندی «ساده ایمان» ردوی او عقیده لری چی د «فلسفی» نقطه‌نظره بشر په یوه ځای کی منجیږی یا د خپل انکشاف عین دوری تکراروی. اکثراً د پرمختګ مفکوره د ګردی څرخ په کوم کی چی ټولنه چورلیږی په مفکوره اړول کیږی. د تاریخ د معاصری بورژوایی فلسفی او سوسیولوژۍ د ګڼ شمیر نمایندګانو نظریات علنی بدبینانه خصلت لری. هغوی د کاپیتالیزم حتمی تهلکه یا د بشریت له تهلکی یا د هغه د په شا تللو سره یو شی بولی.

د دغسی نظریاتو تر ټولو څرګند مثال د انګریزی مورخ ا. ټاینبی د تاریخ فلسفه ده. دا فلسفه د ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو په باره کی د مارکسیستی تعلیماتو پر ضد متوجه ده او په هغی کی معکوساً د «فرماسیون» مفهوم د «تمدن» په مفهوم سره تعویض شویدی. د ا. ټاینبی په عقیده د هغی نقشی پر ځای چی تاریخ د یوی تنی په حیث ترسیموی بله نقشه پکار ده چی د هغی ونی شکل ولری چی تمدنونه پری د څانګو په شان یو د بل تر څنګ پیدا کیږی. د ا. ټاینبی په عقیده د دغسی تمدنونو شمیر تر ۲۶ پوری رسیږی او د هغه ځینی پیروان دا شمیر تر دی هم زیاتوی. هر تمدن انفرادی دی، ځانته خصوصیت لری او نه‌تکراریدونکی دی. مګر په

---

* ژ. ا. کندورسی. د بشری ذهن د ترقۍ د تاریخی منظری ایسکیچ. مسکو، ۱۹۳۶، ٥ مخ وګوریٔ.

عین حالکی ا. ټاینبي د هغو تر منځ شباهت هم ګوري او دا شباهت په دې کې پروت دی چې هر تمدن د زیږېدنې، ودې، انحطاط او هلاکت دوره تیروي. ا. ټاینبي د هغو ولسونو چې په یو رنګه تاریخي مرحله کې واقع وي د پرمختګ د مهمو خصوصیتونو د ردولو سره په عین حال کې د بېلا بېلو دورو تر منځ، د تمدنونو او د هغو د تاریخي شخصیتونو د سرنوشتونو تر منځ په ډېر ټولو سطحي توګه په شباهت باندې ټینګار کوي مثلاً د روسیې لوی پیتر د پونتي د باچا میتریدات سره مقایسه کوي او داسې نور. د ا. ټاینبي د تاریخ فلسفه د ګردې څرخ د مفکورې سره د ټولنیز پرمختګ د مترقي خصلت پر ضد متوجه ده.

څرګنده خبره ده چې مارکسیزم دا خبره نه ردوي چې د تاریخي پروسې ځانګړې برخې په ټاکلو مرحلو کې یو له بله سره ارتباط نه لري او د ځانګړو ټولنو مترقي پرمختګ په نزول یا سقوط سره تبدیلېدلی شي. مګر په دې استدلال سره په هیڅ صورت د بشري تاریخ په نسبت دا عمومي نظریه نه رد کیږي چې هغه تاریخ واحده قانوني تدریجي پرمختلونکې پروسه بولي چې د پیړیو پیړیو طبقاتي او ملي ستم څخه وروسته د انسان له خوا د بل انسان د هر ډول استثمار د له منځه تلو خوا ته تیریږي.

د هغو پخوانیو مستعمرو او نیمه‌مستعمره هیوادونو چې د خپلواک تاریخي پرمختګ لار یې غوره کړیده او یا یې غوره کوي د تقریباً یو سلو ولسونو په وړاندې په تیره بیا د تاریخي پرمختګ څخه د ښکاره انکار بې‌اساسي برملا څرګندیږي. دې خبرې بورژوایي ټولنه پېژندونکې دې ته اړ ایستل چې په خپل ذوق د ترقۍ مفکوره له سره جوړه کړي. په دې ترڅ کې د ترقۍ مفکورې ته اکثراً پوره یوا ړخیز څرنګوالی ورکول کیږي. د دغسې تیوریو پلویان چې تخنولوژیک عوامل په لومړي ځای کې دروي او د ټولنیزو عواملو څخه تیریږي دا ثابتول غواړي چې د پرمختګ سمه او طبیعي لاره د کاپیتالیزم لاره ده. په هغه جمله کې مثلاً د امریکایي ټولنې پېژندونکي او اقتصادي پوهاند و. روستاو د اقتصادي رشد تیوري د یادولو وړ ده (چې د علم او تخنیک تر څنګ د رشد د مرحلو د بېلولو د محک په حیث د استهلاک او مصرف سویه او یو لړ نور عوامل هم وړاندې

کوی). د «واحدی صنعتی» او «مابعد صنعتی» ټولنی تیوری، په معاصره ټولنه باندی د عنعنوی ټولنی د «بدلولو» تیوری او نوری تیوری هم په دی جمله کی شامل دی. د دغسی تیوریو اساسی عیب د ټولنی د فیصله کوونکی شاخص په حیث د تولیدی مناسباتو په له نظره غورزولو کی پروت دی.

دا مسئله چی کوم هیوادونه د تاریخ په دغه یا هغه مرحله کی د تاریخی ترقی په سر کی واقع دی په علمی تخنیکی پرمختګ کی د هغوی یوازی د رول په اساس نه شی حل کیدلی. پکار دی چی مولده قواوی او تولیدی مناسبات چی د نوی ټولنیز نظام زیربنا تشکیلوی په وحدت کی سره راواخیستل شی. د بشریت په وړاندی نوی لاره هغه هیوادونه پرانیزی چیری چی مترقی ټولنیز نظام منځ ته راځی.

تاریخی پرمختګ په نهایت کی د مولده قواو په پرمختګ باندی معلومیږی. لیکن په طبقاتی ټولنه کی علمی او تخنیکی پرمختګ او ټولنیز انکشاف بی‌توازنه تر سره کیږی. محافظه کار او حتی عمر خوړلی ټولنیز نظام هم په موقتی ډول کولی شی چی په علم او تخنیک کی زیات پرمختګ تر لاسه کړی. هغه وختونه چی کله د امریکا متحدو ایالتونو د ټولنیز پرمختګ نوی لاری پرانیستی د اتلسمی پیړی د پای د امریکایی انقلاب سره یوځای تیر شول.

زموږ په زمانه کی د بشریت په تاریخ کی هغه هیوادونه نوی دوران پرانیزی په کومو کی چی سوسیالیزم منځ ته راغلی یا منځ ته راځی او دا هغه ټولنیز نظام دی چی د ټولنیز عدالت او بشردوستی سره د مولده قواو د پرمختګ د پاره تر ټولو زیات مساعد شرطونه برابروی.

د مولده قواو په انکشاف کی توارث د بشریت په تاریخ کی د مسلسلو مرحلو د رابطی مادی اساس دی. مګر ټولنیز انکشاف د تولیدی مناسباتو د داسی ډول برقراریدل غواړی چی د مولده قواو د خصلت سره مطابقت ولری. د زړو تولیدی مناسباتو او د عمر خوړلی نظام ساتنه نه یوازی د مولده قواو د پرمختګ خنډ وی بلکه د بشریت د پاره د سترو تباهیو او د لویو ضایعاتو موجب کیږی.

د تولیدی مناسباتو تر ټولو اوچت ډول هماغه مناسبات دي چی

د مولده قواو د انکشاف د پاره ستر امکانات پیدا کوی او د هغه د پاره زیات گړندیتوب تأمینوی. مثلاً د خصوصی مالکیت د مختلفو شکلونو بدلون چې د طبقاتی فرماسیونونو په تاریخ کې تر سره شویدی، په عمومی توگه تر هغه وخته پورې د مولده قواو د پرمختگ د پاره زمینه پراخوله تر څو چې هغه داسی سرحلی ته ورسیدلی چې د تولید پر وسایلو یې تر هر ډول خصوصی مالکیت څخه راواوښتلی او په اشتراکی مالکیت باندی یې د هغه تعویض ایجاب کړی.

د تولیدی مناسباتو د مترقی‌توب د درجی په باره کې سړی کولی شی چې ددی له مخې قضاوت وکړی چې هغه د ولسی پرگنو د ژوند د پاره کوم شرطونه برابروی او د مولده قواو د رشد د پاره څه عوامل منځ ته راوړی. د تولیدی مناسباتو هر ډول د تولید تاکلی محرکه قواوی او داسی عوامل خلق کوی چې انسانان کار ته تشویقوی.

د طبقاتی فرماسیونونو په تاریخ کې د اصلی مولدینو د تابع کولو دری اساسی شکلونه تبارز کوی لکه مریتوب، سرواژ (یعنی نیم‌مریتوب) او اجرتی کار. یو په بل پسی د طبقاتی استثمار د دغو دریو شکلونو په څیړلو سره لیدل کیدلی شی چې یو په بل باندی د هغو تعویض په اقتصادی متابعت باندی د کارکوونکی د شخصی متابعت د تدریجی بدلون معنی لری. د ټولنیز انکشاف په پروسه کې د کار تشویقونکی عوامل هم بلاتغییره نه پاته کیږی.

د کاپتالستی ټولنی او همدغه رنگه د مریتوب او فیوډالی ټولنو د تولیدی مناسباتو محدودیت په دی کې پروت دی چې هغه اهداف چې په دغو ټولنو کې اجتماعی تولید د هغو تابع دی د ټولې ټولنی اهداف نه بلکه یوازی د حاکمی او استثمارگری طبقی اهداف دی. یوازی په سوسیالستی ټولنه کې د تولید هدف چې د سوسیالیزم په اساسی اقتصادی قانون کې څرگند شویدی د درستی ټولنی او د ټولو زیارایستونکو له گټو سره مطابقت لری. په دی شی سره د سوسیالستی تولیدی مناسباتو چې د مولده قواو د بی‌نهایته پرمختگ د پاره شرایط برابروی مترقی‌توب تشخیص کیږی.

له استثمار څخه د زیارایستونکو آزادی چې د سوسیالیزم په ذریعه تر سره کیږی د کار زښت ډیر غښتلی تشویقوونکی نوی عوامل

ایجادوی او د تولید له پرمختګ سره د کارکوونکو ربښتونی علاقمندی تأمینوی ځکه چی هغوی د طبقاتی ستم د زرګونو کلونو څخه وروسته د لوړی ځل لپاره کولی شی چی د ځان او د خپلی ټولنی د پاره کار وکړی.

د درستی ټولنی د اړتیاو پرله‌پسی لری کول او د تولید د بلاوقفی پرمختګ او تکامل پر اساس چی د مترقی علم او تخنیک د ټولو راویستونونو څخه استفاده کوی د زیاراېستونکو د مادی سوکالی رشد د سوسیالستی تولید د انکشاف غښتلی عامل شمیرل کیږی.

د تاریخ په ټاکلو مرحلو کی د تولید پرمختګ د کارکوونکی چی (په تیره بیا په لاسی صنعتی تولید او وروسته په کاپتالستی فابریکه کی) د تولید د وسایلو ضمیمی ته اړول کیده د قرایحو په یوااړخیزه استفاده سره لاسته راته. مګر د علم او تخنیک نور پرمختګ د فرد د هرااړخیز پرمختګ ضرورت ته وااړاوه. په همدی علت لکه څنګه چی ک. مارکس پیشبینی کړی وه د بشریت پرمختګ «سره ددی چی په اوله کی د اکثرو بشری افرادو او حتی د تمامو بشری طبقاتو په حساب تر سره کیږی بالاخره به دا تضاد له منځه یوسی او د هر ځانګړی فرد له پرمختګ سره به مطابق پیدا کړی»*. مارکس ویلی و چی د تولید انکشاف به بالاخره د فرد د پرمختګ زیاتی اوچتی مرحلی ته ورسیږی. د ک. مارکس په نزد تولید «د بشریت د مولده قواو د تکامل یعنی د مقصود په حیث د بشری فطرت د شتمنیو د تکمیلیدو» په حیث تبارز کوی. د انسان دغه هرااړخیز تکامل د کمونستی ټولنی تر ټولو اوچت هدف شمیرل کیږی.

د کاپتالیزم پر خلاف سوسیالیزم او کمونیزم د انسان رفاهیت د ټولو شیانو په نسبت اوچت بولی. د شخصی ښه‌ایتوب مغرضانه ګټی نه بلکه د ټولنی ګټی چی له شخصی ګټو سره هم‌آهنګ شوی دی د سوسیالستی اقتصاد غښتلی محرک دی.

نوی ټولنیز او اقتصادی فرماسیون د ژوند خپل طرز (که چیری

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۲۶ ټوک، دوهمه برخه، ۱۲۳ مخ.

په طبقاتو ویشل شوی وی نو طرزونه) او د خلکو د حیاتی ارزښتونو او د فعالیت د جهتونو خپل سیستم جوړوی.

ځکه خو نو په دی باره کی مارکسیستی اصول چی د تاریخی پرمختګ تر ټولو اوچت محک د مولده قواو پرمختګ دی باید په ساده توګه تلقی نه شی. ددی خبری هیرول هم پکار ندی چی پر زړه ټوانه باندی د نوی ټولنی برتری چی د مولده قواو زیات ګړندی پرمختګ تأمینوی د هغی له اقتصادی نظام، د ټولنیز او سیاسی جوړښت او د کلتور د اصلی خصوصیاتو څخه سرچینه اخلی. ځکه خو نو د نوی ټولنی دا ټول خصوصیتونه د هغی د مترقی‌توب مشخصات شمیرل کیږی.

د ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو د تبدیلۍ د پرله‌پسی‌توب کشفولو د تاریخی پروسی د دورانونو د تشخیص او په اساسی تاریخی دورانونو باندی ددی پروسی د ویشلو د پاره اساس پیدا کړ. له یوه فرماسیون څخه بل فرماسیون ته انتقال یا د یوه فرماسیون د مرحلو بدلون تل د نوی تاریخی دوری خوا ته د انتقال معنی لری.

تاریخی دوری په خودسرانه توګه نه شی تشخیص کیدلی. مارکسیزم او لېنینیزم په بورژوایی تاریخ پوهنه کی د بشری تاریخ د دورو په برخه کی ذاتی برخورد ردوی.

تاریخی پروسه ډیر اړخیزه ده او هره دوره د ټولنیز ژوند د ډیرو اړخونو ځانته خصوصیت لری. مګر ددی خبری معنی اصلاً دا نه ده چی دغه اړخونه متحدالمفهومه دی او هر اړخ ګنی د مورخ د ذوق او تمایلاتو له مخی د دوری د توصیف د پاره د اساسی اصل په حیث غوره کیدلی شی. هره دوره خپل اصلی مضمون لری، خپل اصلی خصوصیات لری چی د تاریخی پرمختګ اساسی لوری ښیی او هم د نوموړی دوری د بیلا بیلو اړخونو او حوادثو او هم په خپله د تاریخ د دورو د تشخیص د پاره عینی اساس په لاس راکوی.

د دورانونو د تشخیص اساسی او عینی ټاکونکی محک کوم دی؟ مارکسیزم او لېنینیزم د ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو قانونی بدلون دغسی محک شمیری. دا محک له لومړی سره د تاریخی پروسی په تعبیر کی ذاتیت له منځه وړی.

تاریخی پرمختګ دا یا هغه هیوادونه یا ولسونه د تاریخ صحنی

ته راایستلی شی، مګر د نړیوال تاریخ دورانونه په جغرافیوی یا ملی مشخصاتو باندی نه ټاکل کیږی. هغه په ټولنیز او اقتصادی نظام باندی چی په مترقی هیوادونو کی ټینګیدونکی وی ټاکل کیږی. د ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو تبدیلی او د فرماسیونونو په دننه کی د ځانګړو مرحلو او د هغو د پرمختګ د پوړیو بدلون د تاریخ د دورانونو د تشخیص یوازنی علمی اساس دی.

مګر د «تاریخی دوران» مفهوم باید د «ټولنیز او اقتصادی فرماسیون» له مفهوم څخه بیل شی. ټولنیز او اقتصادی فرماسیون د ټولنی په پرمختګ کی د ټاکلی مرحلی معنی لری مګر تاریخی دوران د تاریخ ټاکلی زمانی فاصله ده چی د هغی په جریان کی د تاریخی پروسی د بی‌توازنۍ په وجه په موقتی توګه ډول ډول فرماسیونونه وجود درلودلی شی.

که چیری د فرماسیونونو تبدیلی د ټولنی په تاریخ کی د اصلی دورو د تفریقولو د پاره اساس بدی نو د تاریخ د دغو سترو نړیوالو تاریخی دورو په دننه کی د ټولنیز ژوند د ځانګړو اړخونو په پرمختګ کی دورانونه یا کوچنۍ زمانی چی معمولاً هغه هم د دورو په نامه یادیږی غوره کیږی. مثلاً د کاپټالیزم په پرمختګ کی د هغه د زیات وړاندی‌تګ او نزولی حرکت، د هغه د زوال او سقوط دوری شته دی. د «پردی بیرغ لاندی» په مقاله کی چی په ۱۹۱۵ کال کی و. ای. لېنین لیکلی وه په کلونو سره د هغو تاریخی دورو چی څو څو واره په مارکسیستی ادبیاتو کی ذکر شویدی معمولی ویش ته اشاره کړیده. لومړۍ دوره لکه چی و. ای. لېنین توضیح کړیده او د ستر فرانسوی انقلاب څخه د فرانسی او پروشیا تر منځ تر جګړی پوری د تاریخ برخه نیسی د بورژوازۍ د اوج او د هغی د پوره بری زمانه ده. دوهمه دوره د بورژوازۍ د پوره تسلط او زوال دوره، ارتجاعی او تر ټولو ارتجاعی پانګوالۍ ته د انتقال دوره ده. دریمه دوره بورژوازی په داسی وضعیت کی اچوی په کوم کی چی فیوډالان د لومړی دوری په وخت کی و. دا د امپریالستی هیجانونو چی پخپله له امپریالیزم څخه سرچینه اخلی او د انقلابونو دوره ده*.

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۲۶ ټوک، ۱۴۳ مخ وګورئ.

لکه څنګه چې وینو د نوی زمانی د تاریخ د دورانونو د تشخیص اساس د کاپتالیزم د پرمختګ له دورو څخه عبارت دی چې له اوله یې د هغه پرمختلونکی خوځون او وروسته د تهلکی خوا ته د هغه حرکت لیدل کیږی. تر ټولو وروستۍ دوره چې د لوښی عمومی جګړی سره ارتباط لری د کاپتالیزم د عمومی بحران دوره شمیرله کیږی. د کاپتالیزم عمومی بحران تر ټولو مهم عامل لکه څنګه چې وروستیو پیښو وښوودله د اکتوبر ستر سوسیالستی انقلاب و.

له همدی زمانی څخه د بشر په تاریخ کی نوی دوران پیل شو چې وړاندی د نوی ټولنیز او اقتصادی فرماسیون د استقرار د دورو په ذریعه ټاکل کیږی. په دی مناسبات د عمر خوړلی فرماسیون د تهلکی د مرحلو تر څنګ د نوی فرماسیون د پیدایښت مرحلی چې لوښې درجه اهمیت لری د معاصر تاریخ د دورانونو د تشخیص اساس تشکیلوی. دا د بشریت په تاریخ کی د نوی دوری فیصله کوونکی عامل شمیرل کیږی.

موږ چې د نړیوال تاریخ د اصلی دورانونو په تعریف کی د ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو تبدیلۍ ته لوښی ځای ورکوو نو البته چې مجبوریږو چې دا په نظر کی ونیسو چې دغه تبدیلی د بیلا بیلو ولسونو په تاریخ کی په مختلفو وختونو کی تر سره کیږی. ددی په نتیجه کی په هر ستر تاریخی دوران کی د انسانانو د لوښې ټولنی د نظام له انحطاط څخه نیولی زموږ تر ورځو پوری اکثراً ډول ډول ټولنیز او اقتصادی فرماسیونونه په ګډه موجود و. مګر ددی خبری معنی دا نه ده چې د نړیوال تاریخ په مطالعه کولو کی د هغه فرماسیون چې د یوه دوران اصلی مضمون تشکیلوی او د بشریت د پرمختګ عمده تمایل څرګندوی د غوره کولو امکان نشته. د طبقاتی ټولنی د تاریخ د دورانونو له تشخیص سره علمی برخورد هغی طبقی ته د اشاری کولو غوښتنه کوی چې د یوه عصر په مرکز کی ولاړه وی او د هغه اصلی مضمون او عمده خصوصیات تشکیلوی.

مورخ چې کله د هر دوران خصوصیت ټاکی نو د ځانګړو هیوادونو د تاریخ د پیښو څخه تیریږی او هغه عمومی شی غوره کوی چې د بیلا بیلو ولسونو تاریخ سره پیوندوی. په دی ضمن کی د «تاریخی دوران» مفهوم د «ټولنیز او اقتصادی فرماسیون» د مفهوم په مقایسه

په زیاته مشخصه توګه رابرسیره کیږي. که چیري د «ټولنیز او اقتصادي فرماسیون» په مفهوم کې د ټولنیز نظم اصلي خصوصیتونه تعمیم کیږي چې په هغو ټولو هیوادونو کې موجود وي کوم چې د یوه ټولنیز او اقتصادي پرمختګ په ټاکلې مرحله کې واقع وي نو د «تاریخي دوران» مفهوم د یوې ټاکلې دورې، د تاریخ د یوې ټاکلې فاصلې ځانته خصوصیت څرګندوي. دا مفهوم د نوموړي دوران خاصې پدیدې غوره کوي مګر فرعي پدیدې هم په نظر کې نیسي او په دې ترتیب د هغو تاریخي پروسو تنوع ښیي کومې چې په یوه دوره کې تر سره کیږي. و . ای. لېنین لیکلي و چې «دوران خو ځکه دوران بلل کیږي چې هغه هم د اصلي هم د فرعي، هم د لویو هم د کوچنیو، هم د هغو چې د پرمختللو او هم د هغو چې د وروسته‌پاته هیوادونو خاصه شمیرل کیږي د مختلفو پدیدو او جګړو مجموعه احتوا کوي»*.

په ټولنیزو او اقتصادي مناسباتو کې هغه بدلونونه چې د ټولنیزو فرماسیونونو له تبدیلۍ سره تر سره کیږي زیاته یا لږه اوږده پروسه ده چې په کومه ځانګړې تاریخي پیښه سره افاده کیدلی نه شي. مګر په تاریخ کې داسې پړاوونه هم شته چې کله ځینې تر ټولو سترې تاریخي پیښې د بشریت په پرمختګ کې د بدلوونکو نقطو په حیث تبارز کوي. اکثراً سترې سیاسي پیښې یعنې انقلابونه (کله کله هم جګړې) دغسې حدود تشکیلوي. د دغسې تاریخي پړاوونو غوره کول د شخصي ارادې محصول نه دی بلکه په تاریخ کې پخپله د هغو په عیني رول او د بشر په راتلونکې تاریخ باندې د هغو د رول په ذریعه ټاکل کیږي. د ۱۷۸۹ — ۱۷۹٤ کلونو د فرانسوي انقلاب په باره کې و . ای. لېنین ویلي و چې دې انقلاب د خپلې طبقې، د بورژوازۍ د پاره دومره ډیر کار وکړ چې «ټوله نولسمه پیړۍ یعنې هغه پیړۍ چې ټول بشریت ته یې مدنیت او کلتور ور په برخه کړ د فرانسوي انقلاب تر عنوان لاندې تیر شو. دې پیړۍ د نړۍ په ټولو ګوټونو کې یوازې همدا کار کاوه چې قسماً یې هغه څه پر مخ بیول او تر سره کول یې چې د بورژوازۍ سترو فرانسوي

---

* و . ای. لېنین. کلیات، ۳۰ ټوک، ۸٦ — ۸۷ مخونه.

انقلابیونو ایجاد کړی و»*. د اکتوبر د ستر سوسیالستی انقلاب کوم چې د بشر په تاریخ کې اصلی بدلون راوست تاریخی اهمیت بې‌نهایته ستر دی. و. ای. لېنین په ۱۹۲۱ کال کې ویلی و چې «موږ حق لرو چې وویاړو او موږ په دې ویاړو چې دا نیکمرغی زموږ په برخه شوه چې د شوروی دولت په جوړولو پیل وکړو او په دې ترتیب د نړیوال تاریخ نوی دوره پرانیزو، د نوی طبقې چې په ټولو کاپټالستی هیوادونو کې یې ستم ګاللی دی او په هر ځای کې د نوی ژوند خوا ته، پر بورژوازۍ باندی د بری خوا ته، د پرولتاریا د دیکتاتورۍ خوا ته، د پانګې له جغ او د امپریالستی جګړو څخه د انسان د خلاصون خوا ته روانه ده د حکومت دوره پیل کړو»**.

و. ای. لېنین د اکتوبر د انقلاب بری نه یوازې د روسیې په تاریخ بلکه په نړیوال تاریخ کې د نوی فصل پیل وګاڼه. په روسیه کې د شوروی حکومت د برقراریدو د تاریخی اهمیت په باره کې ده په ټینګار ویل چې «اوس مشکله ده چې سړی دا ونه‌وینی چې دا د بلشویکانو «ماجرا» او «خپل سری» نه وه بلکه د دوو نړیوالو تاریخی دورانونو یعنی د بورژوازۍ د دوران او د سوسیالیزم د دوران د جهانی تبدیلۍ پیل و»***.

د اکتوبر سوسیالستی انقلاب چې د کاپټالیزم ایدیالوژۍ «غیرقانونی» او «تصادفی» اعلان کړی و په عمل کې د تاریخ د نه‌ګرځیدونکی وړاندی‌تګ چې په ټوله نړۍ کې د کاپټالیزم د سقوط او د سوسیالیزم د بری موجب کیږی ښکارندوی ته واوښت. شوروی هیواد دا انقلاب تر سره کړ او هغه لاره یې پرانیستله په کومه باندی چې نن ډېر هیوادونه روان دی او په آینده کې به هم نوی او نوی هیوادونه روان شی.

زموږ په عصر کې حتی هغه کسان چې له مارکسیزم او کارګری نهضت څخه لری دی سوسیالستی ټولنې ته د انتقال په ضرورت باندی پوهیږی. هغه استنتاج چې د خپل مرګ څخه لږ پخوا مشهور نړیوال

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ۳۸ ټوک، ۳۶۷ مخ.
** و. ای. لېنین. کلیات، ٤٤ ټوک، ۱٤۸ مخ.
*** و. ای. لېنین. کلیات، ۳۸ ټوک، ۲۲۰ مخ.

پوهاند ا. اینشتین کړی و د یادولو وړ دی. په هغه مقاله کی چی «ولی سوسیالیزم» نومیده نوموړی څرگنده کړی وه چی د کاپتالیزم د نقاضتونو یعنی د تولید د گډوډی، د اکثریت په حساب د لږ شمیر کسانو د شتمن کیدو، بیکاری او نورو څخه د خلاصون یوازنی لاره سوسیالیزم دی. ا. اینشتین لیکلی و «زه یقین لرم چی د دغو ټولو مهیبو مصایبو د له منځه وړلو یوازی یوه لاره موجوده ده او هغه د پوهنی د داسی سیستم سره په گډه چی ټولنیز مقاصد پخپل وړاندی ږدی د سوسیالستی اقتصاد جوړول دی»*. کاپتالیزم تر دومره حده پوری خپل ځان رسوا کړ او د زیاترایستونکو په نظر کی یی خپل حیثیت له لاسه ورکړ چی اوس هغه مجبور دی چی «د ولسی کاپتالیزم» تر نقاب لاندی ځان پټ کړی او د هغه مدافعین مجبور دی چی پرگنو ته ووایی چی گنی کاپتالستی نظام له منځه تللی دی او بل ټولنیز نظام ته اوښتی دی.

د معاصر دوران مهم خصوصیت د هغه انتقالی خصلت شمیرل کیږی. ددی دوران شروع په روسیه کی د سوسیالستی انقلاب بری و او انجام به یی په ټوله نړۍ کی د سوسیالیزم او کمونیزم بری وی. پخوا تر دی چی هغه راورسیږی د دغسی انتقالی دوری حتمی‌والی په نظری لحاظ د و. ای. لېنین له خوا ثابت شوی و. لکه څنگه چی و. ای. لېنین په داهیانه توگه په ۱۹۱۵ کال کی پیشگویی کړی وه سوسیالستی انقلاب په عین وخت کی په سترو کاپتالستی هیوادونو کی د امپریالیزم د رانسکورولو له لاری نه بلکه له اوله په یوه هیواد یا څو هیوادونو کی د امپریالیزم په جبهه کی د درز اچولو له لاری بری ته رسیږی. له کاپتالستی سیستم څخه تر ټولو د مخه هغه هیوادونه جلا کیږی چی د امپریالیزم په عمومی ځنځیر کی تر ټولو کمزوری کړۍ شمیرل کیږی. له دی ځایه په جهانی مقیاس له کاپتالیزم څخه سوسیالیزم ته د انتقال د تمامی تاریخی دوری یا عصر ضرورت سنځ ته راځی. د سوسیالیزم بری په ټوله نړۍ کی حتمی دی مگر له کاپتالیزم څخه سوسیالیزم ته انتقال د یوه وخت عمل ندی

Dzwa:k Mənd

---

* «Monthly Review», vol. 7, June 1955, p. 49 — 50

بلکه د ټولنې د انقلابي بدلون داسې پروسه ده چې تمامه تاریخي دوره احتواء کوي.
نوې ټولنیز او اقتصادي فرماسیون تل له اوله په ځانګړو هیوادونو یا د هیوادونو په یوه ډله کې ټینګیده چې د هغو تر څنګ داسې هیوادونه پراته و چې په هغو کې به زاړه نظامونه لا موجود و. ځکه خو نو د تاریخي پرمختګ تنوع نه یوازې د بیلا بیلو هیوادونو د مشخصو شرطونو په اختلاف سره بلکه په عین وخت کې د بیلا بیلو ټولنیزو او اقتصادي فرماسیونونو د موجودیت په ذریعه چې د تاریخي پرمختګ د ګړندیتوب د تفاوت نتیجه ده منځ ته راځي. د انسانانو د لوسړنۍ ټولنې د له منځه تللو څخه نیولې د تاریخ په ټولو اوږدو کې د هغو هیوادونو چې پر مخ تلل او د هغو هیوادونو تر منځ چې پخپل پرمختګ کې وروسته پاته کیدل متقابله اغیزه موجوده وه. د دغسې متقابلې اغیزې پلټنه زموږ سره مرسته کوي چې په دې پوه شو چې څنګه د ولسونو او د بشریت تاریخ واقعاً نړیوال تاریخ ته واوښت او ددې له فیضه موږ کولی شو چې د معاصرې نړیوالې انقلابي پروسې په ډیرو خصوصیاتو باندې پوه شو.
نړیوال سوسیالستي سیستم د تاریخ په ټول جریان باندې لا زیاته اغیزه کوي او د بشرې ټولنې د پرمختګ فیصله کوونکی عامل ته اوړي. امپریالیزم اوس په قطعي توګه باداری نه شي کولی او ددې قدرت نه لري چې د بشرې ټولنې د پرمختګ اصلې لورې وټاکي. د پرمختګ دا اصلې لورې نړیوال سوسیالستي سیستم او هغه قواوې ټاکي چې د کاپتالیزم پر ضد او د ټولنې د سوسیالستي بدلون په لاره کې مبارزه کوي.
په نړۍ کې دا ټول غټ بدلونونه د اوسنې دوران د خصلت په تعریف کې چې د کمونستي او کارګري ګوندونو د کنفرانس په اعلامیه کې او د شوروي اتحاد د کمونست ګوند په پروګرام کې بیان شویدي. «اوسنی دوران چې اصلي ماهیت یې له کاپتالیزم څخه سوسیالیزم ته انتقال دی د دوو مخالفو ټولنیزو سیستمونو د مبارزې دوره، د سوسیالستي او د ملي آزادۍ د انقلابونو دوره، د امپریالیزم د زوال، د استعماري سیستم د له منځه تللو دوره، په سوسیالستي لاره د لا نوو او نوو

ولسونو د انتقال دوره، په ټوله نړۍ کې د سوسیالیزم او کمونیزم د بری دوره ده» *.

د دې تعریف څخه معلومیږي چې کومه طبقه زموږ د دوران په مرکزي برخه کې واقع ده، هغه په نړۍ کې د طبقاتي قواو تناسب ټاکي او د معاصر تاریخ خوځوونکي قواوې څرګندوي. هغه ولسونه چې سوسیالستي او کمونستي ټولنه جوړوي، په کاپتالستي هیوادونو کې د کارګري طبقې انقلابي نهضت، د مظلومو ولسونو د ملي آزادۍ مبارزه عمومي دموکراتیک نهضتونه — دا ټول د معاصر دوران ستري قواوې دي کومې چې په یوه عمومي جریان کې سره یو ځای کیږي او نړیوال امپریالستي سیستم ړنګوي او محو کوي یې. په دې ضمن کې کارګري طبقه او د هغه اصلي مولود یعنې نړیوال سوسیالستي سیستم په معاصر دوران کې مرکزي ځای نیسي. ددې سیستم موفقانه پرمختګ د کاپټالیزم عمومي بحران زیاتوي او د هغه زوال ښيي.

په معاصر دوران کې کاپتالیزم چې له تاریخي صحنې څخه په زوال محکوم ټولنیز نظام دی هیله لري چې د فریب او زور له لارې د بشریت ارتقایي پرمختګ ودروي.

د شوروي اتحاد د کمونست ګوند په ۲۶ مه کنګره کې ل. ای. بریژنف وویل چې «ماجراغوښتنه او د خپلو مغرضانه مقاصدو په نامه د بشریت په حیاتي ګټو باندې د لوبې کولو د پاره تیاري — هغه شیان دي چې د امپریالیزم د تر ټولو تیري کوونکو ټولنو په سیاست کې په تیره بیا بربنډ ښکاریږي. هغوی دا ولسونو د حقوقو او آرزوګانو په نسبت د پوره غفلت په څرګندولو سره تلاش کوي د ولسي پرګنو آزادي‌غوښتونکي مبارزه د «تروریزم» د مظهر په حیث ترسیم کړي. هغوی په ربښتیا سره د نه تر لاسه کیدونکي هدف حصول ته لاسونه ورته کړي دي او هغه دا چې په نړۍ کې د مترقي تحولاتو په لاره کې بندیز واچوي او د خلکو د سرنوشت د ټاکونکي رول ځانته بیرته ورګرزوي» **.

---

* «د شوروي اتحاد د کمونست ګوند پروګرام». مسکو، ۱۹۷۶ کال، ۹ مخ.

** د شوروي اتحاد د کمونست ګوند د ۲۶ کنګرې مواد. مسکو، ۱۹۸۱ کال، ۲۰ — ۲۱ مخونه.

مگر هیڅ یوه زوال کیدونکی نظام ونه‌شول کولی چی د تاریخی پرمختگ په لاره کی بندیز واچوی. هغوی د ټولنیز پرمختگ په جریان سره له منځه ولاړل. کاپتالیزم هم نه شی کولی چی له دی بخت څخه وتښتی.

### ۳. د تاریخی پرمختگ عمومی کرښه او د ځینو هیوادونو او ولسونو دپاره په خپل پرمختگ کی د ځینو طبقاتی فرماسیونونو څخه د تیریدو امکان

د ټول تاریخ په اوږدو کی هیوادونو په بیلا بیلو طرزونو سره پرمختگ کاوه. ددی خبری سبب د هیوادونو د داخلی او بهرنیو شرطونو ځانته خصوصیت و چی د هغو د جغرافیوی موقعیت خصوصیتونه (په تیره بیا د تاریخ په لومړیو مرحلو کی)، د نورو هیوادونو سره د اقتصادی او کلتوری روابطو د پرمختگ درجه، د بیلا بیلو دولتونو متقابل سیاسی مناسبات او مخصوصاً هغه څه چی ډیر مهم دی — د هیواد په دننه کی د طبقاتو د مبارزی جریان شمیرل کیږی. په تاریخ کی داسی مثالونه شته چی کله د کورنی ارتجاع بری یا بهرنی یرغل د ډیری مودی د پاره د هیوادونو یا ولسونو پرمختگ ځنډولی دی. له بلی خوا د مساعدو شرطونو په نتیجه کی د ځینو ولسونو پرمختگ ګړندی شویدی.

ټولنیزو انقلابونو چی عمر خوړلی ټولنیز او اقتصادی نظام یی له منځه وړی او نوی ټولنیز اقتصادی او سیاسی نظام یی ټینګ کړی و د تاریخی پروسی په ګړندی کولو باندی ستره اغیزه کړی وه. او دی خبری چی انقلاب په کوم شکل تر سره کیده او له زاړه نظام څخه نوی نظام ته انتقال تر سره کیده هم د بیلا بیلو هیوادونو او ولسونو د پرمختگ په ګړندیتوب باندی اغیزه کوله. د قاعدی سرسم هغو هیلوادونو ګړندی پرمختگ کاوه چی په هغو کی زاړه مناسبات له منځه ایستل کیدل. په بیلا بیلو هیوادونو کی د تاریخی پروسی د ګړندیتوب تفاوت تر دی اندازی پوری زیات و چی په ځینو مواردو کی هغوی په مختلفو وختونو کی د ټولنیز او اقتصادی پرمختگ عین مرحلی تیری کړی وی.

ف. انګلس په «د کورنی، شخصی مالکیت او دولت پیدایښت» نومی

اثر کې د لرغونو یونانیانو، روسیانو، آلمانیانو او سره پوستکو چې د خیلیز نظام په مرحله کې واقع و مقایسه کوی. د یونانیانو د خیلیز نظام د ارتقا دوره چې وروسته یې انحطاط پیل کیږي — دا هغه دوران دی چې تر میلاد د مخه د اتمې پیړۍ څخه شروع کیږي او د آلمانیانو خیلیز نظام زموږ د عصر په لومړیو پیړیو پورې تعلق لري. د سره پوستکو خیلیز نظام د امریکا د کشفولو تر زمانې پورې وساتل شو او حتی تر هغه وروسته یې دوام کاوه.

څرنګه چې ډول ډول قومونه او ولسونه کولی شي چې په مختلفو زمانو کې د تاریخي پرمختګ عین مرحله تیره کړي نو په تاریخ کې د مختلفو ټولنیزو او اقتصادي مناسباتو اختلاط لیدل کیږي. د لرغونې نړۍ تاریخ معمولاً د مریيتوب د نظام د تاریخ په حیث څیړل کیږي. مګر د مریيتوب د دولتونو سره یوځای چې د میشت شوو سیمو نسبتاً کوچنۍ برخه یې اشغالوله داسې هیوادونه هم موجود و چې په هغو کې د انسانانو د لومړنی جمعیت نظام حکمفرما و. په دغو هیوادونو کې زیاتو خلکو ژوند کاوه.

منځنۍ پیړۍ اساساً د فیوډالیزم د پرمختګ دوران دی. په دې دوران کې فیوډالي دولتونه د مریيتوب د دولتونو په نسبت زیاته سیمه اشغالوی، زیات خلک پکې اوسیږي مګر په دې دوران کې هم د تمامو لویو وچو په ساحه کې مثلاً لکه په افریقا، امریکا، آسترالیا کې د مریيتوب مناسبات یا د انسانانو د لومړنی جمعیت د نظام مناسبات حکمفرما دی.

نوی زمانه د کاپتالیزم د پرمختګ دوران دی چې په نړیوال مقیاس کې بری موسی او د پخوانیو فرماسیونونو پر خلاف نړیوال سیستم تشکیلوی. مګر په دې سیستم کې مستعمري او نیم‌مستعمري هیوادونه شاملیږي په کومو کې چې فیوډالي، نیم‌فیوډالي او په ځینو ځایونو کې حتی ماقبل فیوډالي مناسبات ساتل کیږي.

بالاخره نوی تاریخ موږ ته په عین وخت کې د سوسیالیزم او کاپتالیزم د سوجودیت منظره څرګندوی او دا هغه وخت دی چې کله په ځینو هیوادونو کې نوی سوسیالستی سیستم ټینګ شوی یا ټینګیږي او چې کله په نورو هیوادونو کې کاپتالستی او په یو شمیر هیوادونو کې حتی ماقبل کاپتالستی مناسبات لا موجود دی.

لنډه یې دا چې د بېلا بېلو هېوادونو د تاریخي پرمختګ د مختلف سرعت او ګړندیتوب په نتیجه کې نه یوازې ډول ډول ټولنیز او اقتصادي فرماسیونونه بدلیدلي بلکه اکثراً یو د بل تر څنګ ژوند هم کولی شي.

د تاریخي ګړندیتوب ددې توپیر څخه د بېلا بېلو هېوادونو او ولسونو په پرمختګ کې د فرماسیونونو تبدیلۍ د عمومي قانونمندۍ د شکل د تغییر امکان او همدغه رنګه دا امکان پیدا کیږي چې ځینې هېوادونه د دغو یا هغو طبقاتي فرماسیونونو څخه تیر شي.

ټولو ولسونو یو رنګه‌والی حالت درلود یعنې دا چې د لومړنیو انسانانو د جمعیت نظام یې درلود. په دې برخه کې په تاریخ کې استثنا نشته ده.

د لومړنیو انسانانو د جمعیت د نظام د انحلال په نتیجه کې طبقاتي ټولنه او تر ټولو د مخه د مریيتوب ټولنه منځ ته راغله.

په بېلا بېلو هېوادونو کې د لومړنیو انسانانو د جمعیت د نظام انحلال په مختلفو طرزونو تر سره کیده. مثلاً په لرغوني یونان او روم کې د خیلیز نظام بقایا په زیات کلک طرز سره له منځه یووړل شول. په آتن کې د دغو بقایاو په له منځه وړلو کې هغو تحولاتو ستر رول ولوباوه چې په سولون پورې او په روم کې په سیروی تولي پورې تعلق نیسي. د خیلونو د مخورو د جادارۍ د ړنګولو په نتیجه کې د مریيتوب ټولنه د هغې په خاص شکل کې پیدا شوه.

په ختیز کې مریيتوب د لومړنیو انسانانو د جمعیت د نظام د ړنګیدو په نتیجه کې پیدا شو. لکن هلته د خیلیزې ټولنې ډیر زیات بقایا پاتې شول. ددې خبرې سره د مریيتوب زیات ابتدایي شکلونه او د پرمختګ د پروسې عاطل خصلت ارتباط لري چې د یونان او روم په نسبت په کم ګړندیتوب سره تر سره کیده.

د مریيتوب د نظام په هر یوه نوموړي شکل کې ټولنیزو مناسباتو ځانته خصوصیت درلود. مثلاً ک. مارکس د مریيتوب په ټولنه کې د کلیوالي جمعیتونو دوه تر ټولو اصیل شکلونه سره بیلول چې هغه ختیز یا آسیایي شکل او آنتیک (د آنتیک په نامه هغه څه یادیږي چې په لرغوني روم او یونان پورې تعلق لري — مترجم) شکل و. د آسیایي شکل خصوصیت په دې کې پروت و چې دلته ځمکه او اوبه د ټول

جمعیت مال و چې د مارکس په قول «د ختیز د استبداد ټینګ بنسټ» * تشکیلاوه. برعکس په آنتیک جمعیت کې شخصي ملکیت او په هغه جمله کې د کر ځمکې زیات رواج پیدا کړی و.

د ځانګړو ولسونو د تاریخي پرمختګ ځانته خصوصیت د ټولنیزو او اقتصادي فرماسیونونو د تبدیلۍ په تسلسل پورې هم تعلق نیسي. ټولو ولسونو د انسانانو د لومړي جمعیت له نظام څخه طبقاتي ټولنې ته انتقال کړیدی مګر په هر ځای کې د مریيتوب ټولنه نه وه موجوده. او ځینو ولسونو پرته له دې چې د مریيتوب د نظام مرحله طی کړي نیغ په نیغه فیوډالي نظام ته راواوښتل.

مثلاً د آلماني قبایلو زیاتي برخې چې د رین او الب تر منځ په سیمو کې یې ژوند کاوه دغسې لاره طی کړیده. په هغه زمانه کې چې کله آلمانیان د روم سره په شخړه کې و هغوی لا د لومړنیو انسانانو د جمعیت په حالاتو کې ژوند کاوه خو ددې نظام د ړنګیدو پروسه روانه وه. د پدرشاهي مریيتوب مناسباتو هم پراختیا موندله ولې سره ددې هم هغه د آنتیک یا د ختیز د مریيتوب د دورې مناسباتو ته ورونه رسیدلی.

د طبقاتي ویش منځ ته راتللو همدغه رنګه په دې تبارز موندلی چې د آزادو خلکو تر منځ مالي نابرابري پیدا شوه او د خیلونو مخور پیدا شول چې پخپلو لاسونو کې یې ډیر څاروي او لويي ځمکې متمرکزې کړې. لا په هماغه وخت کې دایمي فوځي ټولګې موجود و چې په سر کې یې عسکري آمر ولاړ و.

ف. انګلس د لرغونو آلمانیانو ټولنیز او سیاسي نظام د «نظامي دموکراسۍ» نظام بولي. دا د لومړنیو انسانانو د جمعیت څخه د طبقاتي ټولنې خوا ته انتقالي مرحله وه.

په عین زمان کې د روم خلک د مریيتوب د ټولنې د پرمختګ له وروستۍ مرحلې څخه تیریدل. مریيتوب خپل عمر خوړلی و او د روم د امپراطورۍ په بطن کې د تولید د فیوډالي طرز د تدارک پروسه روانه وه. په دې باره کې مثلاً د کولونات د سیستم پیدایښت شاهدي ورکوي. کولون هغه مریي و چې په دغه یا هغه بادار پورې نه بلکه په ځمکه پورې نښتی و.

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۹ ټوک، ۱۳۵ مخ.

د تولید فیوډالی طرز د هغو پروسو د متقابل تاثیر په نتیجه کی انکشاف وکړ چی د روم د خلکو او د آلمانی قبایلو په منځ کی روانی وې. که څیری له اوله د روم امپراطورۍ په موفقیت سره د بربریانو تاړاکونه ردول نو د خپل موجودیت په وروستیو پیړیو کی هغې د دښمن د یرغلونو د ردولو قدرت ورو ورو له لاسه ورکړی و. په عین وخت کی دا امپراطوری له دننه څخه د مریبانو او تابع بزګرو په پاڅونونو سره کمزوری کیدله. ټولی دا خبری د روم د امپراطورۍ د زوال موجب شوی. آلمانی قبایلو چی دا امپراطوری تسخیر کړه نو د رومی مځورو د ځمکو دوه دریمی برخی یی ونیولی او پخپلو منځو کی یی وویشلی. دا ویش د تولید د هغه طرز مطابق تر سره کیده چی هغوی ته معلوم و.

ددی په نتیجه کی د اوسیدونکو تر ټولو لویه پوړۍ هغه آزاد بزګر و چی په کلیوالی جمعیتو کی سره یوځای شوی و. مګر ددی تر څنګ د فاتحانو په منځ کی د لا زیات ټولنیز ویش پرله‌پسی پروسه حتمی پدیدی ته واوښته.

د آلمانی مځورو له محیط څخه لوی زمینداران راووتل چی بزګر په تدریج سره د هغوی په متابعت کی کښیوتل.

د مولده قواو د پرمختګ سرهسم په دی موقع کی هم نوی تولیدی مناسبات منځ ته راتلل. مګر دا مولده قواوی نه یوازی په هغه سطح سره چی آلمانی قبایلو تر څلورمی او پنځمی پیړیو پوری لاسته راوستی وه بلکه په هغه سطح سره هم چی د روم د امپراطورۍ په قلمرو کی د هغوی د راتګ په وخت کی موجوده وه تاکل کیدلی. ک. مارکس او ف. انګلس په «آلمانی ایدیالوژۍ» کی لیکلی و چی «د ټولنی هغه شکل چی میشت شوو فاتحینو منلی و باید د مولده قواو د پرمختګ له هغې سویی سره مطابقت ولری چی د هغوی په وخت کی موجوده وی او که له اوله دغسی مطابقت وجود ونه‌لری نو د ټولنی دا شکل باید د موجودو مولده قواو مطابق تغییر وکړی» *.

لکه څنګه چی ک. مارکس او ف. انګلس وښودله فیوډالیزم له

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. فویرباخ. د ماتریالستیک او ایدیالستیک نظرونو تضاد، ۹۱ مخ.

آلمان څخه په تیار شکل نه و راوړل شوی. یوازې د فتوحاتو څخه وروسته او د هغو مولده قواو چې په فتح شوو هیوادونو کې پیدا شوې وې د اغیزې له فیضه د پردیو تالانګرو قبایلو تشکیل ریښتونی فیوډالیزم ته واوښت.

آلمانې قبایل هغه یوازنی خلک نه و چې د مریتوب د تولنی څخه پرته یې د انسانانو د لوړنی جمعیت څخه فیوډالیزم ته انتقال کړیدی. مثلاً په اروپا کې لویدیزو او ختیزو سلاویانو، په آسیا کې کوریاپانو، یو لړ ترکي قومونو او منګولانو هم همدغسې لاره طی کړیده*.

دغو قبایلو او قومونو په مختلفو شرطونو کې پرمختګ کړیدی او ځانته خصوصیات یې درلودل چې خاصه مطالعه غواړي.

باطني علتونه او تر ټولو د مخه مولده قواوې په عمومي توګه د تاریخ پروسې اساسي لورې او د ټولنیزو او اقتصادي فرماسیونونو مسلسله تبدیلي ټاکي. مګر ددې عمومي قانونمندۍ د شکل تغییر او د هغو ځانګړو ولسونو چې د دغه یا هغه طبقاتي فرماسیون مرحلې نه تیروي د پرمختګ ځانته خصوصیت د ولسونو تر منځ د متقابلو روابطو د سنجش څخه پرته یوازې په باطني علتونو باندې نه شي توضیح کیدلی. د دغو ولسونو څخه د ځینو د پاره ددې امکان چې دغه یا هغه طبقاتي مرحله تیره نه کړي (زموږ په خیړل شوو مثالونو کې د مریتوب نظام دی) د نړیوال تاریخ د عمومي بهیر سره په نه‌شلیدونکي پیوند کې منځ ته راځي او یوازې په ټاکلو دورانونو کې لیدل کیږي.

لنډه یې دا چې د تاریخ تجربه ښيي چې ځینې قبیلې او ولسونه کولی شي چې دا یا هغه طبقاتي فرماسیونونه تیر نه کړي. په ځانګړو هیوادونو کې د فرماسیونونو د تاریخي تسلسل دغسې تغییر د نړیوال تاریخ عمومي قانونمندۍ نه فسخ کوي بلکه دا کار یوازې په همدې اساس ممکن دی. همدغه سبب دی چې د تاریخي پروسې په عمومي ارتقایي سیر کې یو شمیر ټولنیز او اقتصادي فرماسیونونه خپل عمر خوري او نور د هغو ځای نیسي او د هغو ولسونو د پاره چې پخپل پرمختګ کې ځنډیدلي وې امکان پیدا کیږي چې لنډه لاره طی کړي او د دغو یا هغو

---

* «نړیوال تاریخ»، ۳ ټوک، مسکو، ۱۹۵۷ کال، ۹ مخ ته رجوع وکړي (په روسي ژبه چاپ).

فرماسیونونو مرحلې چې د بشریت په تاریخ کې تیرې شوي یا تیریدونکي مرحلې بلل کیږي تیرې نه کړي*. مگر دا امکان همیشه موجود نه وي. دا امکان هغه وخت پیدا کیږي چې کله د تولید هغه طرز چې بو ولس یې تیروي د هغو ولسونو په نزد چې وړاندې تللي وي خپل عمر خوړلی وي یا یې خوري او د تولید نوی طرز یا خو موجود وي او یا اقلاً د هغوی په نزد راژوندی کیږي.

په دې اساس په تاریخ کې د عمومي قانونمندۍ تغییر ممکن دی مگر د هغې څخه تخلف یا د هغې الغا ناممکنه ده. د نړیوال تاریخ په پروسه کې د ټولنیزو او اقتصادي فرماسیونونو د تبدیلۍ تسلسل بل ډول نه شي کیدلی. د هغه بدلون یوازې د مخانګړو ولسونو په تاریخي پرمختګ کې امکان لري.

مارکسیستانو هیڅکله پر تقدیر د اعتقاد پیروي نه ده کړې د کوم مطابق چې ټول هیوادونه له پخوا څخه په یوه ټاکلې لاره روانیږي. ک. مارکس په هغه لیک کې چې د «وطني یادداشتونو» د مجلې تحریریه هیئت ته یې استولی و «د هغې عمومي لارې په باره کې چې ټول ولسونه تیر د خپلو حیاتي شرطونو څخه مجبور دي په هغې باندې ولاړ شي تاریخي فلسفي ته» په لویدیزه اروپا کې د کاپتالیزم د پیدایښت په باره کې دده د تاریخي مضمون د اړولو د کوششونو پر خلاف اعتراض کړی و. مارکس لیکلي و چې د مخانګړو ولسونو د هر تحول په مطالعه کولو او وروسته د هغو د پرمختګ په مقایسه کولو سره د تاریخي پروسو د مفهوم د درک کولو وسیله په آسانۍ سره په لاس راتلای شي مګر سوړ به هیڅکله «د کومې عمومي تاریخي او فلسفي تیورۍ په

---

* څرګنده خبره ده چې په دې مورد کې موږ هغه مواقع په نظر کې نه نیسو چې کله د انکشاف په لحاظ بیرته پاته ولسونو په دې وجه د پرمختګ ټاکلې مرحله نه ده تیره کړې چې د استعمار مورد ګرزیدلی دی (یا تر ډیرې اندازې د استعمارګرانو له خوا زمولل شویدي لکه د مثال په توګه په شمالي امریکا کې سره پوستکي او په استرالیا کې بومي قبایل او داسې نور).

خیر د عمومی وسیلې په استفاده چې تر ټولو اوچته ښېگڼه یې په ماقبل تاریخیت کې پرته ده» دا مفهوم درک نه شو کړای*.
ک. مارکس و. ای. زاسولیچ ته د خپل لیک په مسوده کې (۱۸۸۱ کال) لیکي چې د ټولنې د پرمختګ سره یوځای د کلیوالی جمعیت زمینداری په ټولو ځایونو کې له منځه ولاړه. ک. مارکس لیکي چې ددې تر څنګ روسي کلیوالي جمعیت کولی شي چې ددې بخت څخه ځان خلاص کړي ځکه چې هغه د کاپټالستي تولید معاصره ټولنه ده او کولی شي چې پرته له دې چې ددې تولید آفات وزغمي د هغه له موفقیتونو څخه استفاده وکړي. روسیه د معاصرې نړۍ څخه بیله شوې نه وه او په عین زمان کې د ختیز هندوستان په څیر د پردیو فاتحینو د ښکار مورد نه وه. ک. مارکس لیکلي و «که چیرې د کاپټالستي سیستم روسي طرفدارانو د دغسې تحول نظري امکان رد کړي وای نو ما به له هغوی څخه دا پوښتنه کړې وای چې آیا ددې د پاره چې پخپل وطن کې ماشینونه، بیړۍ، ګانې، د اورګاډي پټلۍ او داسې نور ولرې روسیه مجبوره وه چې د لویدیز په شان د ماشین تولید د پرمختګ اوږد مصنوعي دوران تیر کړي وای؟ پریږدئ چې هغوی دې ماته په عین وخت کې دا خبره توضیح کړي چې څنګه هغوی وکولی شول چې د تبادلې ټوله دستګاه (بانکونه، د کریدیت شرکتونه او داسې نور) چې عیارولو یې په لویدیز کې تمامې پیړۍ وغوښتلې په خپل وطن کې باب کړي؟»**
د کلیوالي جمعیت د دغسې تحول د نظري امکان په ثابتولو سره ک. مارکس لیکلي و چې دا تحول یوازې په مشخص شرط سره واقعیت ته اوښتلی شي یعنې دا چې ددې د پاره چې کلیوالي جمعیت ته نجات ورکړي شي روسي انقلاب ته ضرورت لیدل کیږي. دا انقلاب چې د مطلق العنانۍ پرضد اړم دی باید په لویدیز کې د پرولیتاري انقلاب سره یوځای شي او د هغه سګنال ته باید واوړي. یوازې په دې شرط د بیلا بیلو کاپټالستي هیوادونو د پرولتاریا په مرسته د داسې ټولنې

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۱۹ ټوک، ۱۲۱ مخ.
** ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۱۹ ټوک، ۴۰۱ مخ.

ټخه د سوسیالستی مناسباتو خوا ته به د سمدم انتقال د پاره لاره پرانیستی شي.

د روسي ټولنې د سرنوشت د مسئلې په باره کې د ک. مارکس او ف. انګلس فیصله د «نارودنیکانو» (ولس‌دوستانو) له موقف سره هیڅ مشترکه وجه نه لري. «نارودنیکانو» په ټولنه کې د روسيې د اقتصادي نظام د «ځانګړتیا» نښې نښانې لیدلې او د مفکوره جوړوونکو د ذاتي سنجش مطابق يې د هغې د پاره د غیرکاپټالستی لارې امکان رابرسیره کاوه. لکن مارکسیزم د یو شمیر ولسونو د پاره د غیرکاپټالستی لارې عیني قانونمندي استدلال کوي چې په اصلي توګه د «نارودنیکانو» له مختلفو تیوریو څخه هغه بیلوي.

ف. انګلس روسي ټولنیزو شخصیتونو ته په خپلو لیکونو کې لیکلي و چې دا په تاریخي لحاظ ناممکنه ده چې هغه ټولنه چې د اقتصادي پرمختګ په زیاته ټیټه سویه کې واقع وي هغه وظیفې تر سره کړي او مناقشې حل کړي چې په لا زیاته لوړه سویه کې منځ ته راځي. هر اقتصادي فرماسیون خپلې وظیفې لري چې پخپله د هغه څخه سرچینه اخلي. مګر کله چې نړیوال پرمختګ د لا اوچت فرماسیون خوا ته انتقال آماده کړي نو د بیرته پاته ولسونو د پاره د لنډې لارې امکان رابرسیره کیږي. ک. مارکس او ف. انګلس د ځینو هیوادونو د پاره د غیرکاپټالستی پرمختګ امکان ددې قانونمندۍ سره مربوطاوه چې د پرمختللو ولسونو د کارګري طبقې له خوا له هغوی سره د مرستې پیشبیني کوي.

ک. مارکس او ف. انګلس هیڅکله دا مرسته د نوي نظام د تحمیلولو په حیث نه ده ارزیابي کړې. ف. انګلس لیکلي و چې په پرمختللو هیوادونو کې د سوسیالیزم بري داسې مثال ورکوي چې نیم‌متمدن ولسونه پخپله په هغو پسې ورځي. اقتصادي ایجابات به پخپله دا ضرورت پیدا کړي. «یوازې یو شی مسلم دی او هغه دا چې پرتمین پرولتاریا هیڅ یوه پردي ولس ته هیڅ ډول نیکمرغي نه شي ورتپلې تر څو چې په دې وسیله خپل بري په خطر کې وانه‌چوي» *.

لنډه يې دا چې ک. مارکس او ف. انګلس په صراحت او مستقیم

---

* ک. مارکس او ف. انګلس. د آثارو مجموعه، ۳۵ ټوک، ۲۹۸ مخ.

دوول سره د «انقلاب د صدور» پر ضد نظریې څرګندې کړېدې کوم چې د مارکسیزم مخالفین یې تر اوسه پورې کوشش کوي په هغه پسې وتړي. مارکسیستان عقیده لري چې هر ولس د خپل باطني پرمختګ په اساس باندې انقلابي تحولات تر سره کوي او حق نه لري چې خپل تولنیز نظام حتی که تر ټولو پرمختللی هم وي پر بل ولس باندې تحمیل کړي. د نورو ولسونو په نسبت زور ګیرې د کارګرې طبقې د وظیفو سره مخالفت لري او د پرولتاري انترناسیونالیزم له اصولو سره جوړ نه راځي.

په روسیه کې د کاپتالیزم پرمختګ د جمعیت د انحلال موجب شو. په دې ترتیب د ک. مارکس او ف. انګلس تیوریتیکو حدسیاتو خپل عملي مصداق پیدا نه کړ. مګر لکه څنګه چې د دوهم انترناسیونال اپورتونیستانو چې د لویدیزې اروپا د کاپتالستي هیوادونو په تاریخي پرمختګ کې یې د ټولو ولسونو د پاره یواځنۍ مثال لیده نظریه څرګندوله ددې خبرې معنی دا نه وه چې د غیرکاپتالستي لارې په باره کې مسئله له منځه ایستل شوې وه.

د اسپریالیزم په دوران کې د بیرته پاته ولسونو د پاره د غیرکاپتالستي لارې د امکان مسئله نه یوازې له منځه تللې نه وه بلکه برعکس خاص اهمیت یې پیدا کړی و. په دې دوران کې د اساسي تضاد چې د پرمختګ په ټولو مرحلو کې د کاپتالیزم ملګرې وي یعنی د کار او پانګې تر منځ د تضاد د شدت تر څنګ نوې تضادونه هم زیات شول او هغه د اسپریالستي دولتونو تر منځ چې د نړۍ د بیا ویش په غرض هلې ځلې کوي او همدغه رنګه د استعماري دولتونو او مستعمره هیوادونو تر منځ تضاد دی. د کاپتالیزم پرمختګ ځانګړي هیوادونه سره وتړل او هغوی یې د اسپریالیزم د عمومي ځنځیر په کړیو تبدیل کړل. لکه څنګه چې و. ای. لېنین ښودلې ده په دغسې شرطونو کې له اوله په څو هیوادونو او حتی په یوه ځانګړي هیواد کې د اسپریالیزم په جبهه کې د درز اچولو او د سوسیالستي انقلاب د برې امکان برابر شو. څرګنده خبره ده چې د لېنین دغه پیشګویي پوره تایید شوه.

د اکتوبر د انقلاب برې نوې عصر پرانیست چې هغه په کاپتالستي هیوادونو کې د سوسیالستي انقلاب او په لاس لاندې او مستعمره هیوادونو کې د استعمار پر ضد د ملي انقلابونو عصر دی. د پرمختللو هیوادونو

د پرولتاریا او د مستعمرو د ستمګالونکو ولسونو د مبارزې د واحدې جبهې د پاره شرطونه برابر شویدي چې پخپله مبارزه سره د محاذ له شا څخه د امپریالیزم سیستم رنګوي. د یو شمیر بیرته پاته ولسونو چې د امپریالیزم له جغ څخه آزاد شویدي د پرمختګ د غیر کاپتالستي لارې د پاره ریښتوني امکانات منځ ته راغلي دي.

و . ای. لېنین د کومینترن په دوهم کنګرس کې د ملي او مستعمراتي مسئلو په باره کې پخپل راپور کې په تیورتیک لحاظ دا خبره مستدله کړه. ده وویل چې «که چیرې پرتمین انقلابي پرولتاریا د هغوی په منځ کې (د بیرته پاته ولسونو په منځ کې – مولف) منظم تبلیغات وکړي او شوروي حکومتونه په هغو ټولو وسایلو سره چې پخپل اختیار کې يې لري د هغوی مرستې ته ورودانګي نو هغه وخت دا اټکل سم نه دی چې د بیرته پاته قومونو د پاره د پرمختګ کاپتالستي مرحله حتمي ده. بیرته پاته هیوادونه پرته له دې چې د پرمختګ کاپتالستي مرحله طی کړي شوروي نظام ته او د پرمختګ د مشخصو مرحلو څخه وروسته کمونیزم ته انتقال کولی شي» *.

و . ای لېنین د بیرته پاته قومونو له زیارایستونکو سره چې اکثراً د محلي استثمارګرو تر نفوذ لاندې دي د محتاطانه برخورد پر لزوم، د هغوی د ژوندانه د شرایطو، د ملي خصوصیاتو، د اقتصادي پرمختګ د مرحلې او نورو عواملو د دقیق سنجش پر ضرورت باندې ټینګار کړی و. ده خبرداری ورکړی و چې ددې قومونو په ژوند کې به بې‌سنجښه مداخله د هغوی د پرمختګ پروسه یوازې ودروي کومه چې د پرمختللو هیوادونو د کارګري طبقې له خوا باید د رفیقانه مرستې په اثر ګړندۍ شي.

معلومه خبره ده چې په غیرکاپتالستي لاره باندې د پخوانیو بیرته پاته هیوادونو پرمختګ یوازې د بهر څخه د اغیزې د نتیجې په حیث نه شي ګڼل کیدلی. مګر په عین حال کې دی کې شک نشته چې مثلاً په ۱۹۲۱ کال کې په منګولیا کې چې د سره اردو په مرسته د امپریالستانو او سپین ګارد د پلویانو له جغ څخه آزاده شوې وه د سوسیالیزم خوا ته د انتقال اقتصادي ضرورت لا ونه‌لیدل شو. هلته حتی کارګري طبقه چې د سوسیالیزم د مفکورې یواځنی علمبردار دی موجوده نه وه. په دې

---

* و . ای. لېنین. کلیات، ٤١ ټوک، ٢٤٦ مخ.

صورت کی د پرمختللو هیوادونو بریالی شوی پرولتاریا چی د سوسیالیزم خوا ته په حرکت کی د بیرته پاته ولسونو سره مرسته کوی په کومو داخلی قواو باندی اتکاء کوی؟

د سوسیالستی انقلاب لېنینی تیوری دی پوښتنی ته ځواب ورکوی چی په واحد ضداسپریالستی بهیر کی د ډول ډول انقلابی نهضتونو یعنی د پرولتاریا د سوسیالستی انقلابونو، ضدفیوډالی دموکراتیکو انقلابونو چی په سوسیالستی انقلابونو باندی بدلیږی، د ملی آزادی د نهضتونو او د ملی ضداستعماری او ضداسپریالستی انقلابونو د سره یوکیدو عینی ضرورت یی کشف کړیدی.

ستمګالونکی ولسونه چی په خپل پرمختګ کی شا ته پاتی شویدی او د اسپریالیزم پر ضد مبارزه کوی د لا پرمختللو هیوادونو د پرولتاریا له ملاتړ سره علاقمندی لری ځکه چی دا مرسته د استعماری اسارت څخه د هغوی له خلاصیدو سره کمک کوی*. او پرولتاریا د سوسیالیزم په لاره کی پخپله انقلابی مبارزه کی د ستمګالونکو ولسونو د ملی آزادی‌بخښونکی او ضداسپریالستی مبارزی له خوا د ملاتړ سره علاقمندی لری. په دی ترتیب د کارګری طبقی چی سوسیالستی انقلاب تر سره کوی او د ستمګالونکو ولسونو د زیاراېستونکو پرګنو تر منځ چی د اسپریالیزم او فیوډالی مناسباتو پر ضد مبارزه کوی د اتحاد د پاره کلک بنسټ وجود لری. دا اتحاد چی له اوله د اسپریالستانو او فیوډالانو پر ضد د ګډی مبارزی په اساس پیدا شویدی وروسته د ملی سیاست د انکشاف په مقیاس، د ملی کارګری طبقی د پیدایښت او ودی سره‌سم داسی اتحاد ته اوړی چی د سوسیالیزم خوا ته ظفرناکه پرمختګ تأمینوی.

بیلا بیل ولسونه په ډول ډول دولتی شکلونو کی د پرمختګ غیرکاپتالستی لاره وهی. مثلاً د منګولیا ولسی جمهوریت د شوروی اتحاد په مرسته د اولی فیوډالی ټولنی څخه د سوسیالستی ټولنی د جوړولو خوا ته انتقال وکړ. په دی صورت کی هغه ولس چی خپلواک دولت یی

---

* د اسپریالستی نړیوال سیستم پخپله کمزورتیا چی د سوسیالستی انقلاب په ذریعه د اسپریالیزم د جبهی د ړنګیدو او د کاپتالستی سیستم څخه د یوه یا څو ګونو هیوادونو د وتلو نتیجه شمیرل کیږی د هغوی د مبارزی له بریالیتوب سره مرسته کوی.

15*

جوړ کړي و د هغه سوسیالستي هیواد چي نژدي ورته پروت و د مستقیمي مرستي په استفاده د کاپتالستي پرمختګ مرحله له سره ووهله. په نورو شکلونو کي د شوروي اتحاد یو شمیر ولسونو د پرمختګ غیرکاپتالستي لاره طي کړیده. هغوي د واحد ډیر ملتیز سوسیالستي دولت په چوکاټ کي خپل ملي دولتي سازمان جوړ کړ.

د پرمختګ د غیرکاپتالستي لاري * مسئله همدغه رنګه د سوسیالستي ملتونو له تشکل سره ارتباط لري. سوسالستي ملتونه هم د بورژوایي تولني د ملتونو د بدلون له لاري (په هغو ولسونو کي چي د پرولتاري انقلاب په درشل کي د کاپتالیزم په مرحله کي ولاړ وي) او هم په سوسیالستي ملتونو کي د قومونو د توحید له لاري (په هغو ولسونو کي چي د پرمختګ په ماقبل کاپتالستي مرحلو کي و) جوړیږي.

په روسیه کي د اکتوبر د انقلاب تر شروع پوري تقریباً ۱۱۰ ملیونه خلک او په هغه جمله کي ۷۵ ملیونه روسان، ۳۰ ملیونه اوکرایینان، بیلوروسان، ارمینان او نور د پرمختګ په کاپتالستي مرحله کي و.

بله ډله هغه ولسونه و چي یا خو د پرمختګ په ماقبل کاپتالستي مرحله کي و یا دا چي کاپتالستي پرمختګ یي پیل کړي و او هغه یي لا نه و بشپړ کړي. په زیاترو دغو قومونو کي د پدرشاهۍ او فیوډالي مناسبات حکمفرما و. په هغه جمله کي مثلاً د منځنۍ آسیا، شمالي قفقاز او نورو سیمو یو لړ قومونه شامل و.

---

* «د پرمختګ د غیرکاپتالستي لاری» مفهوم زموږ په ادبیاتو کي مختلف تعبیر لري. مثلاً یو لړ مولفین نه یوازي هغه ولسونه چي په خپل انکشاف کي تر شا پاتي شویدي او د کاپتالیزم مرحلي یي تیري کړي نه دي بلکه ماقبل کاپیتالستي نظمونه چي په هغو هیوادونو کي چي د سوسیالیزم خوا ته روان دي په دغه مفهوم کي مشتملوي. نور مولفین د غیرکاپتالستي لاري مفهوم یوازي د بیرته پاته هیوادونو چي دموکراتیکي وظیفي سرته رسوي په مقدماتي مرحلو محدودوي او د سوسیالیزم د اساساتو د جوړښت پروسه له دي مفهوم څخه وباسي. ددي مفهوم تحلیل او پر دغسي تصوراتو انتقاد د م. احمدووا په هغه کتاب کي شویدي چي «غیرکاپتالستي لاره او د تیوري او پراکتیک ځیني پرابلمونه» نومیږي (د تاشکند چاپ، ۱۹۷٦ کال).

د هغو ولسونو په جمله کی چی د پرمختګ په ماقبل کاپيټالستی مرحله کی و (په لری شمال، لری ختيز کی) داسی قومونه او ولسونه هم و چی د فيوډاليزم دوره يی نه وه تيری کړی او د خپليز نظام د انحلال دا يا هغه مرحله يی تيرولی.

په روسيه کی تقريباً ۳۰ مليونه اوسيدونکی په هغو ولسونو او قومونو پوری مربوط و چی د پرمختګ کاپيټالستی مرحله يی نه وه تيره کړی. هغوی د خاص ټولنيز او اقتصادی فرماسيون په حيث د کاپيټاليزم د مرحلی د تيرولو څخه پرته سوسياليزم ته انتقال وکړ. څرګنده خبره ده چی کاپيټالستی مناسباتو تر يوی اندازی پوری د دغو ولسونو په محيط کی نفوذ کړی و او د اکتوبر د انقلاب تر بری څخه وروسته هم د اقتصاد کاپيټالستی ترتيب په هغوی کی يوه اندازه پرمختګ کړی و. مګر هغوی د اقتصاد د حاکم شکل او د مخصوص فرماسيون په حيث له کاپيټاليزم څخه تير نه شول.

څرنګه چی د هيواد د يو لړ ملی څنډو د اوسيدونکو اکثريت بزګر و او خپله ملی کارګری طبقه يی تقريباً بيخی نه درلوده نو نه يوازی د هيواد د مرکزی برخی د روسی بزګرو سره بلکه د غيرروسی يعنی د نورو مليتونو له بزګرو سره هم د روسی کارګری طبقی د اتحاد برقرارولو ډير لوی اهميت درلود. د کارګری طبقی د لارښوونکی رول په زمينه کی د دغسی اتحاد برقرارولو په شوروی اتحاد کی د ملی مسئلی د حل کولو طبقاتی اساس او د نوو سوسيالستی ملتونو د جوړښت طبقاتی اساس کښيښود.

د ملی دولتی سازمان ايجادول د سوسيالستی ټولنی د جوړښت سره د پخوانيو بيرته پاته ولسونو د بلديدو غښتلی وسيله وه. دا کار د هغوی د پاره يوازی په شوروی نظام کی ممکن شو.

د قومونو د دولتی تشکل په جريان کی د هغوی د خاورو حدودبندی هم تر سره کيده چی د ملتونو د توحيد سره يی مرسته کوله.

د سوسيالستی ټولنی د جوړولو په جريان کی فيوډالی او پدرشاهی مناسبات او د خپليز ژوند بقايا له منځه يووړل شوی. په منځنی آسيا کی د ځمکی او اوبو اصلاحاتو چی د اوبو او ځمکی د ملی کولو چاری ته يی خاتمه ورکړه په دی کار کی ستر رول ولوباوه. د استثمارګرو څخه اخيستل شوی ځمکی او اوبه زيارايستونکو بزګرو ته د استفادی

د پاره ورکړی شوی. ددی ریفورم له فیضه بزگر د فیوډالانو او بایانو له استثمار څخه خلاص کړی شول.

د ملی څنډو د اقتصادی مناسباتو په اوښتون کی سوسیالستی صنعت او وروسته د کرهنی اشتراکی کولو چی د کولاکانو (د کولاکانو په نامه هغه بډای بزگران یادیدل چی خوار بزگر او مزدوران یی استثمارول — مترجم) باداری ته یی خاتمه ورکړه فیصله کوونکی رول ولوباوه.

د صنعتی کولو په نتیجه کی په ملی څنډو کی خپله کارگری طبقه راپیدا شوه. د روسی ولس مرستی په دغو جمهوریتونو کی د صنعت زیات گړندی پرمختگ تامین کړ چی دا زیاتوالی د هیواد د مرکزی سیمو په نسبت ډیر و او دغو جمهوریتونو ته یی امکان ورکړ چی هغه بیرته پاته والی چی له زاړه نظام څخه پاتی شوی و له منځه یوسی.

د اقتصادی ساختمان تر څنگ په ټولو جمهوریتونو کی کلتوری پرمختگ هم شروع شو چی ددی موجب شو چی په شکل ملی او په محتوی سوسیالستی کلتور ایجاد شی.

د دغو ټولو پروسو په نتیجه کی د سوسیالستی ملتونو وحدت تامین شو او د ولسونو رښتونی نابرابری له منځه یووړل شوه. د شوروی اتحاد د کمونست گوند په پروگرام کی ویل کیږی چی «ټولو ملی شوروی جمهوریتونو یو له بل سره د وروړگلویزی مرستی او تر ټولو لوړی د ستر روسی ملت په مرسته پخپلو ملکو کی معاصر صنعت، د کارگری طبقی او منورینو ملی کدرونه ایجاد کړل او په شکل ملی او په محتوی سوسیالستی کلتور یی پر مخ بوت. زیاتره هغه ولسونه چی پخوا وروسته پاته و د پرمختگ د کاپتالستی مرحلی له تیرولو څخه پرته سوسیالیزم ته ورسیدل» *.

په کاپتالستی نړۍ کی هغه ولسونه چی د پرمختللو هیوادونو څخه پخپل انکشاف کی وروسته پاته وی د قاعدی سره‌سم د پرمختللو ملتونو د حاکمو طبقو تر اسارت لاندی کیوزی او د هغو د استثمار مورد کیږی.

په هغو مواردو کی چی یو شمیر هیوادونه خپل وروسته پاتی والی له منځه یووړلی شی نو دا کار د دولتونو تر منځ د سختی مبارزی په

---

* «د شوروی اتحاد د کمونست گوند پروگرام»، ۱۶ — ۱۷ مخونه.

جریان کی ترسره کیږی. د دولتونو په دننه کی د طبقاتی استثمار تسلط د هغو تر منځ د مبارزی موجب کیږی.

د سوسیالیزم خوا ته د ماقبل کاپتالستی مناسباتو څخه انتقال د دولتونو تر منځ اصلاً بل ډول مناسبات پیشبینی کوی. دا انتقال د ولسونو او د هغو د انقلابی قواو د متقابلی مرستی په اساس تر سره کیږی چی د هغی په نتیجه کی پرمختګ زښت ډیر ګړندی کیږی. هر څومره چی ولسونه په پخوا زمانه کی وروسته پاته وی په هماغه اندازه پرمختللو ولسونو ته د هغوی د رسیدو په منظور زیاته مرسته کیږی.

پخپل وخت کی ن. ګ.چیرنیشیفسکی لیکلی و چی «تاریخ لکه د انا په شان د خپلو وړکوټو لمسیانو سره سخته مینه لری» *. د هغه مطلب له دی څخه دا دی چی هغه ولسونه چی د تاریخی پروسی له ټاکلی مرحلی څخه لږ څه وروسته تیریږی ځینی امتیازات لری. مګر یوازی د سوسیالیزم خوا ته د انتقال په شرطونو کی بیرته پاته ولسونه کولی شی چی په پوره اندازه له هغو څخه استفاده وکړی.

دا امتیازات کوم دی؟

لومړی دا چی غیرکاپتالستی لاره د تاریخی پرمختګ د ستر ګړندیتوب په معنی ده. د شوروی اتحاد زیاترو ولسونو په ۱۵ــ ۲۰ کلونو کی داسی اقتصادی او کلتوری سویی ته ځانونه ورسول چی پخوا ورته سلګونه کلونه پکار و یا اصلاً ورته میسر نه و. هغوی تمامی تاریخی دوری له سره ووهلی. ځینی یی حتی کاپتالستی څه چی فیوډالی نظام هم ونه‌لید. مثلاً د شمال کوچنیو قومونو د انحلال د بیلا بیلو مرحلو څخه او د پدرشاهۍ د نظم څخه د سوسیالیزم خوا ته ګام اوچت کړ.

دوهم دا چی د غیرکاپتالستی لاری برتری په دی کی پرته ده چی د ک. مارکس په اصطلاح په دی لاره باندی د نوی ټولنی د زیږولو مشقتونه آسانیږی. دغسی ټولنی ته انتقال بیله دی چی بزګر په مقدماتی ډول پرولتارانو ته واوړی او په کاپتالستی سیستم کی د اوسیدونکو د اصلی پرګنو د سپیره کیدو څخه پرته تر سره کیږی.

نن ډیرو ولسونو چی د سوسیالیزم خوا ته روان دی د پرمختګ

---

* ن. ګ. چیرنیشیفسکی. منتخب فلسفی آثار. مسکو، ۱۹۵۰ کال، ۴۸۶ مخ.

غیرکاپتالستی لاره آزمویلی ده. د منګولیا د ولسی جمهوریت زیارایستونکی په دی لاره روان شول او نور ولسونه هم په همدی لاره روان دی.

د پخوانیو مستعمره او نیم‌مستعمره هیوادونو له خوا د سیاسی خپلواکۍ تر لاسه کول او د اقتصادی خپلواکۍ د پاره د هغوی مبارزه په نړیوال تاریخ کی د پرمختګ مهم عوامل شمیرل کیږی ځکه چی نړیوال امپریالستی سیستم کمزوری کوی او د هغه په عقبی سیمو باندی ګوزارونه کوی. سره ددی چی په هر ځای کی د ملی آزادۍ نهضت سوسیالستی نهضت ته نه اوړی ولی په مستعمره او لاس لاندی هیوادونو کی د امپریالیزم له سقوط سره مرسته کوی.

په معاصر دوران کی د تاریخی پرمختګ عمومی لوری د ټولو هیوادونو د پاره یو دی او دا لوری د امپریالیزم له جغ څخه ددی هیوادونو د آزادۍ ددی سیستم د ړنګیدو او د سوسیالیزم د بری موجب کیږی. مګر له امپریالستی جغ څخه د آزادۍ پروسه په بیلا بیلو لارو، په مختلفو تاریخی مودو او په زښتو ډیرو مختلفو شکلونو کی تر سره کیږی. و. ای. لېنین لیکلی و چی «په ختیزو هیوادونو کی چی بی‌اندازی زیات نفوس او بی‌اندازی ډیر ډول ډول ټولنیز شرطونه لری راتلونکی انقلابونه به د روسی انقلاب په نسبت لا زیات ځانته خصوصیت ولری» *.

حتی هغه هیوادونه چی د ټولنیز او اقتصادی پرمختګ په یوه تاکلی مرحله کی وی ښیی چی په یو ډول انقلابی تحولاتو کی ګڼ شمیر خصوصیات موجود وی. په دی کی مطلب نه یوازی د سوسیالستی بلکه د دموکراتیکو تحولاتو د شکلونو د تنوع په باره کی دی (مثلاً د ملی آزادۍ د نهضت د شکلونو د تنوع په باره کی).

د هغو دولتونو چی قدرت پکی د ملی بورژوازۍ په لاس کی دی د بورژوایی ملی نهضت ګڼ شمیر لارښوونکی وایی چی هغوی هلی‌ځلی کوی «سوسیالستی ټولنه» جوړه کړی. مګر د «سوسیالیزم» په باره کی د هغوی تصورات له هغه څه نه چی د سوسیالستی ټولنی واقعیت دی اصلاً توپیر لری. د هغوی د شعارونو اصلی مضمون د ملی خپلواکۍ د پاره مبارزه، د ملی اقتصاد د پرمختګ د پاره مبارزه ده. څرنګه چی هغوی د

---

* و. ای. لېنین. کلیات، ٤٥ ټوک، ۳۸۱ مخ.

امپریالیزم پر ضد مبارزه کوی نو ځکه دا مبارزه مترقي مفهوم لري سره ددې هم د ملي بورژوازۍ د شخصیتونو په بې‌ثباتۍ او تنګ‌نظرۍ باندې سترګې نه شي پټیدلی.

پخوانی مستعمره او نیم‌مستعمره هیوادونه د سیاسي خپلواکۍ د تر لاسه کولو څخه وروسته د امپریالستانو د باداري د اقتصادي اساساتو له منځه وړلو، د زراعتي مسئلې د حل کولو، د عمر خوړلو فیوډالي یا نیم‌فیوډالي مناسباتو د له منځه وړلو د ضرورت سره مخامخ کیږي چې ملي بورژوازي یې چې اکثراً د داخلي ارتجاع او امپریالیزم سره د سازشکارۍ خوا ته تمایل څرګندوي نه غواړي یا یې نه شي کولی په قطعي توګه تر سره کړي. ولسي پرګنې په دې یقین پیدا کوي چې د پیړیو پیړیو د بیرته‌پاته‌والي او د هغوی د ژوند د شرطونو د ښه کولو تر ټولو ښه لاره د سوسیالستي پرمختګ لاره ده. په دې لاره باندې وړاندېتګ د هغو اساسي ټولنیزو پرابلمونو حل کول پیشبیني کوي چې د ولسونو په وړاندې د سیاسي خپلواکۍ د تر لاسه کولو څخه وروسته راپورته کیږي او د دغو پرابلمونو په حل کولو کې کارګری طبقه او د بزګرو پراخې پرګنې ستر رول لوبوي.

د کاپتالیزم «د ځوانیدو» په برخه کې د بورژوايي مفکوره جوړوونکو د هیلو پر خلاف دا بې‌شکه خبره ده چې د هغو ولسونو چې د استعماري جغ څخه آزاد شویدي زیاته برخه به ددې آرزو ونه‌لري چې د کاپتالستي پرمختګ لاره ووهي. د تاریخ تجربه خوشې نه ده. دا په تیره بیا زموږ په دوران کې چې کله په نړۍ کې ډیر او ډیر خلک د سوسیالستي اتحادیې چې د زیارایستونکو نه یوازې د ملي بلکه د ټولنیزې آزادۍ وظیفې یې په کامیابۍ سر ته رسولې دي، صدق پیدا کوي. مګر دا خبره په هیڅ صورت دا امکان له منځه نه باسي چې ځینې هیوادونه او ولسونه د کورنیو او بهرنیو ارتجاعي قواو تر تاثیر لاندې او د اشتباګانو او نورو په اثر انحرافونه وکړي او حتی پر شا ولاړ شي.

د پرمختګ غیرکاپتالستي لاره چې عمومي لاره ده نه یوازې په بیلا بیلو هیوادونو کې بلکه لا د یوه هیواد په مختلفو برخو کې ځانته خصوصیتونه لري. دا ځانته خصوصیت د هغو یا دغو دموکراتیکو او سوسیالستي تحولاتو هم په شکلونو، هم په ګړندیتوب او هم په ترتیب کې څرګندیږي.

دا ټولې خبرې د تاریخې پروسې د تنوع په هکله او د بیلا بیلو هیوادونو د پرمختګ د لارو له ټاکلو سره د ایجادې برخورد د اهمیت په باره کې د و. ای.لینین مفکورې تاییدوي.

و. ای. لینین په هغو تلاشونو باندې چې په تقلیدې توګه د تاریخې ماتریالیزم له عمومې اصولو څخه د بیلا بیلو هیوادونو د پرمختګ د خصوصیتونو د سنجش څخه پرته استفاده کول غواړې په ملنډو سره لیکلي و چې «تر دې هیڅ شی په نظرې لحاظ نیستمن او په عملې لحاظ د خندا وړ نه دې چې کله سړې په دې برخه کې په بې‌خونده خړ رنګ باندې «د تاریخې ماتریالیزم په نامه» راتلونکې زمانه ترسیم کړې*.»

د تاریخ د جریان خصوصیت په دې کې پروت دې چې ټولو ولسونو یوه عمومې مبداء درلوده او هغه د انسانانو لوړنې جمعیت دې او د طبقاتې ستم د دورانونو څخه وروسته هغوې د مشترک هدف، د اوچت ټولنیز نظام یعنې کمونیزم خوا ته روانیږي. که چیرې نولسمه پیړۍ د کاپیتالیزم د حاکمیت پیړۍ وه نو اوسنۍ شلمه پیړۍ د کمونستې مفکورو چې په کامیابۍ سره په ژوند کې عملې کیږي د برې پیړۍ ده.

## ٤. سوسیالیزم ته د انتقال عمومې قوانین او ځانته شکلونه

د نوې فرماسیون په حیث په ځانګړو هیوادونو کې د سوسیالیزم او کمونیزم د پرمختګ له خصوصیتونو سره د هغو د عمومې قوانینو مناسبت څه ډول دې؟

د سوسیالیزم خوا ته د انتقال د شکلونو د تنوع مسئله د و. ای. لینین په آثارو کې مطرح او څیړل شوې وه. و. ای. لینین لیکلي و چې «ټول ملتونه به سوسیالیزم ته ورسیږي. دا مسلمه خبره ده. مګر ټول ملتونه په یو رنګ ډول سره انتقال نه کوي. هر ملت د دموکراسۍ په یوه ټاکلې شکل کې، د پرولتاریا د دیکتاتورۍ په ټاکلې ډول کې او د ټولنیز ژوند د بیلا بیلو اړخونو د سوسیالستې تحولاتو په ټاکلې ګړندیتوب

---

* و. ای. لینین. کلیات، ۳۰ ټوک، ۱۲۳ مخ.

کې خپل رنګ اري»*. په عین زمان کې لینین د عمومي قانونمندۍ سره د ځانګړو هیوادونو د پرمختګ د مقابله کولو خبره نامکمله بلله.
سوسیالیزم چې د کمونستي فرماسیون لومړۍ مرحله شمیرل کیږي صرف‌نظر د یوه یا بل هیواد د ممیزاتو او د پرمختګ د خصوصیتونو د ټولو هیوادونو دپاره خپل یورنګه قوانین لري.
دا عمومي قوانین لکه د ټولو نورو قوانینو په شان دوه عمده خصوصیتونه لري یعنې لومړۍ دا چې هغه عیني قوانین دي او د خلکو په شعور او اراده پورې تعلق نه لري. دوهم دا چې هغه عمومي قوانین دي یعنې دا چې د ټولو هغو هیوادونو دپاره چې د سوسیالیزم په لاره روان دي اهمیت لري.
هغه څه چې په لومړۍ خصوصیت پورې تعلق لري نو یوازې په دومره ووایو (ځکه چې دا موضوع موږ توضیح کړې وه) چې د قوانینو عیني‌توب د خپل پرمختګ د لارې په غوره کولو کې د خلکو له امکان سره ضدیت نه لري. البته که چیرې د دغسې انتخاب څخه مقصد هر ډول ټولنیز نظام ته د خپل میل له مخې د انتقال امکان وي نو دا به صرف تخیل وي. په عمل کې د خلکو په وړاندې پیداکیدونکي امکانات کټ‌مټ لکه د هغوی د تعمیل د وسایلو په شان د تاریخ محصول شمیرل کیږي. که چیرې خلکو د رښتوني امکان په استفاده د سوسیالستي ټولنې د جوړولو لاره غوره کړې وي نو دا کار به په عیني توګه دوی د اقتصاد په ټولو څانګو کې د تولید د وسایلو د اشتراکي کولو له وظیفو سره مخامخ کړي. شایي چې د یو لړ مشخصو شرطونو په وجه دا اقدامات (مثلاً د صنعت ملي کول، د کرهنې تعاوني کول) په بیلا بیلو هیوادونو کې مخکې یا وروسته ترسره شي ولې په هر صورت له هغه څخه «سرغړول» اصلاً امکان نه لري. پخپله د سوسیالیزم ماهیت د خلکو د ارادې څخه پرته ددې خبرې غوښتونکې دی. اصلي وظیفه خو دا ده چې دغسې ایجابات د لازمو اقتصادي شرطونو په موجودیت کې پرته له ماجراغوښتونکې سبقت او ځنډ څخه او په هغه صورت کې چې دا شرطونه په اقتصادي لحاظ رسیدلي وي د وروسته‌پاته‌والي څخه پرته په تقلیدي او

---

* و. ای. لینین. کلیات، ۳۰ ټوک، ۱۲۳ مخ.

دوګماتیک طرز نه بلکه په داسی شکلونو کی چی د هر هیواد د مشخصو تاریخی اوضاعو سره مطابقت ولری ترسره شی.

سوسیالیزم ته د انتقال د قوانینو بله مهمه خاصه لکه څنګه چی وویل شول په دی کی پرته ده چی دا قوانین د ټولو هغو هیوادونو دپاره چی په سوسیالستی لاره روان دی عمومی دی. دا عمومی قوانین چی په نظری توګه د مارکسیزم او لینینیزم د بنسټ‌ایښودونکو له خوا تدوین شوی و د لوړی ځل لپاره د شوروی اتحاد په تجربه سره آزمویل شوی او تایید شویدی. ځکه خو د سوسیالستی انقلاب اساسی خصوصیتونه نه خو محلی او نه خاص ملی اهمیت نه لری بلکه بین‌المللی اهمیت لری. د شوروی اتحاد د کمونست ګوند او بین‌المللی کمونستی نهضت په سندونو کی د سوسیالستی انقلاب عمومی خصوصیات او قوانین تعریف شویدی. دا قوانین د اقتصادی قوانینو سره یو شی نه بلل کیږی. سوسیالستی انقلاب د ټولنی هم اقتصادی او هم سیاسی او معنوی ژوند ته بنیادی تغییر ورکوی. ځکه نو ددی انقلاب عمومی خصوصیات او قوانین د ټولنیز ژوند په ټولو یعنی اقتصادی، ټولنیز، سیاسی او معنوی ساحو کی تبارز کوی. دا خصوصیات او قوانین د ځانګړو کسانو او حتی د تمامو ګوندونو د ارادی څخه پرته د ټولنی د سوسیالستی تحولاتو شرطونه ښکاره کوی.

په ټولنیزه او سیاسی ساحه کی د سوسیالستی انقلاب د وظیفو د سرته رسولو عمده شرط د کارګری طبقی سیاسی قدرت دی کومه چی د ټولو زیارایستونکو سره په اتحاد کی فعالیت کوی. هغه د ټولنی د سوسیالستی بدلون اصلی وسیله شمیرله کیږی. د سیاسی قدرت ترلاسه کول په هر هیواد کی د اقتصاد او کلتور د اصلی اوښتون څخه سبقت لری او د ټولنی د سوسیالستی تحولاتو مبداء ده.

د بزګرو د اصلی پرګنو او د زیارایستونکو د نورو قشرونو سره د کارګری طبقی وحدت هم عمومی قانون‌سندی ده ځکه چی په هیڅ یوه هیواد کی سوسیالستی انقلاب کاپتالیزم په «خالص» شکل سره نه شی لیدلی او په هر ځای کی د کارګری طبقی تر څنګ د زیارایستونکو ګڼ شمیر غیرپرولتاری قشرونه او همدغه رنګه نور ټولنیز قشرونه موجود وی. ددی وحدت عینی اساس د کاپتالستی استثمار څخه د آزادیدو سره د کارګری طبقی او زیارایستونکو بزګرو په علاقمندی او د خپلو

قواو د یوسوټی کولو څخه پرته دغه هدف ته د رسیدو په ناشونی توب کی پروت دی. ددی وحدت برقرارول البته چی نه یوازی په عینی شرطونو بلکه په ذاتی عامل پوری یعنی د پرولتاری ګوند په سیاست، د هغه په معقولی لارښودنی او نورو خبرو پوری هم تعلق لری. د بزګرو د اصلی پرګنو او د زیارایستونکو د نورو قشرونو سره د کارګری طبقی د وحدت له فیضه د هغوی په طبقاتی دښمنانو باندی بری او همدغه رنګه د ملی ستم له منځه وړل او د ولسونو تر منځ د حقوقو د برابری او ورورګلویزی دوستی ټینګول امکان پیدا کوی. په دی ترڅ کی د طبقاتی اتحادیو مشخص حدود په بیلا بیلو هیوادونو کی او د هغو د پرمختګ په مختلفو مرحلو کی تفاوت پیدا کولی شی. مثلاً په یو لړ پرمختللو کاپتالستی هیوادونو کی له سوسیالستی تحولاتو سره برخورد د ټولنی د بیلا بیلو قشرونو چی د حاکمو انحصاراتو پر ضد عمل کوی د متحدو قواو په ذریعه د ضدانحصاری وظیفو په ترسره کولو آماده کیدلی شی.

د سوسیالستی ټولنی د جوړولو اساسی وظیفی د زاړه نظام پر ضد د پرولتاریا او د هغی په رهبری د زیارایستونکو بزګرو او د زیارایستونکو د نورو قشرونو د طبقاتی مبارزی په جریان کی سرته رسول کیږی. دا مبارزه چی کارګری طبقه یی د خپلی دیکتاتوری په زمانه کی په مختلفو شکلونو پرمخ بیایی له کاپتالیزم څخه د سوسیالیزم خوا ته د انتقال قانونمندی او خوځوونکی قوه بلل کیږی. د پرولتاریا سیاسی قدرت ددی مبارزی وسیله ده کومه چی د سوسیالستی انقلاب د کورنیو او بهرنیو طبقاتی دښمنانو څخه د سوسیالیزم د موفقیتونو د دفاع او د کاپتالستی او نورو استثمارګرانو د ټولنیز او اقتصادی حاکمیت د له منځه وړلو دپاره ضروری ده.

په اقتصادی ساحه کی د ټولنی د سوسیالستی بدلون عمومی خصوصیتونه او قوانین د تولید پر اساسی وسایلو د کاپتالستی مالکیت په له منځه وړلو او د سوسیالستی مالکیت په ټینګولو کی، د صنعت او ټول اقتصاد په منظم پرمختګ کی چی په عمومی توګه د ټولنی ګټو، د سوسیالیزم او کمونیزم جوړولو، د زیارایستونکو د ژوندانه د معیار اوچتولو او د کرهنی د تدریجی سوسیالستی بدلون چاری ته وقف شوی وی رابرسیره کیږی. هیڅ یو کمونستی او کارګری ګوند که چیری په رښتیا غواړی چی سوسیالیزم بریالی شی نو نه شی کولی چی د دغو وظیفو د سرته

رسولو نه سر وغړوی. په سوسیالستی مالکیت باندی د کاپتالستی مالکیت د اوښتون غوښتنه د مارکسیستانو له خوا اختراع شوی نه ده بلکه هغه د معاصری ټولنی د اقتصادی پرمختګ د عینی ایجاباتو ښکارندویه ده او په همدی علت د ټولو هغو هیوادونو دپاره چی له کاپتالیزم څخه سوسیالیزم ته انتقال کوی حتمی ده. د دغو تحولاتو شکلونه لکه چی تجربه ښیی ډیر متنوع دی.

د ټولنی د معنوی ژوند په ساحه کی هم د سوسیالستی تحولاتو د ترسره کولو عمومی خصوصیتونه او شرطونه هم موجود دی. د سوسیالستی ټولنی جوړول خودبخوده او نامنظمه پروسه نه ده او نه شی کیدلی. هغه د پرګنو چی د سوسیالستی-ایدیولوژی له خوا سوق کیږی، آګاهانه فعالیت غواړی. پرولتاری انقلاب نه یوازی په سیاسی او اقتصادی بلکه په مفکوروی او کلتوری ساحو کی هم ترسره کیږی. دا انقلاب د بورژوایی ایدیولوژی پر ضد مبارزه، د مارکسیزم او لینینیزم د مفکوروی حاکمیت ترلاسه کول، د سوسیالیزم په روحیه کی او د پرولتاری انترناسیونالیزم د مفکورو له مخی د ټولنی د غړو روزنه او د کلتوری انقلاب ترسره کول غواړی.

د ټولو هیوادونو د کارګری طبقی د مبارزی د هغی د بریو او د ماتو او په تیره بیا په شوروی هیواد او نورو سوسیالستی هیوادونو کی د پرتمینو سوسیالستی انقلابونو تجربی وښودله چی د ټولنی د ژوند په ټولو ساحو یعنی په سیاسی، اقتصادی او کلتوری ساحو کی د سوسیالستی تحولاتو عمده شرط د مارکسیستی ګوند لارښودنه ده. د داسی ګوند څخه پرته چی په انقلابی تیوری سره سنبال وی او پخپل وحدت او کلک یووالی سره غښتلی وی، د خلکو د تر ټولو پراخو پرګنو سره په تر ټولو ټینګو رشکیو سره تړلی وی لنډه یی دا چی پرته له داسی ګوند څخه کارګری طبقه بری نه شی موندلی. د شوروی اتحاد د کمونست ګوند د همدی لارښودنی له برکته ، د هغه د مدبرانه سیاست او د هغه د نه‌ستومانیدونکی تشکیلاتی، تنظیمیه او تربیوی کار له فیضه شوروی ولس وکولی شول د کورنیو او بهرنیو دښمنانو ټولی حملی رد کړی او په شوروی هیواد کی سوسیالستی ټولنه جوړه کړی.

په ځانګړو هیوادونو کی د سوسیالستی انقلاب د پرمختګ ځانته خصوصیات د عمومی قوانینو سره څه مناسبت لری؟

عمومي قوانين تر ټولو مهم او اصلي خصوصيتونه تشخيصوي چې د سوسياليزم د استقرار پروسه تشکيلوي په داسي حال کې چې خاص قوانين د ځانته خصوصيتونو سره ارتباط لري او ځکه عمومي قوانين لغو کوي نه بلکه د هغو تابع وي.

ژوند په صراحت سره وښودله چې په ټولو سوسيالستي هيوادونو او حتى په هغو هيوادونو کې چې د شوروي هيواد د پرمختګ په مقايسه خصوصيتونه زيات دي هماغه عمومي قوانين چې په شوروي اتحاد کې بې نفوذ درلود لومړۍ درجه اهميت لري.

سره ددې چې عمومي قوانين لومړۍ درجه اهميت لري، هغه هيڅکله د خاصو قوانينو څخه غير نه شي رابرسيره کيدلی. د سوسياليزم خوا ته د انتقال د عمومي قانونمنديو څخه هره يوه په ځانګړو هيوادو کې د ټاکلو خصوصيتونو سره راښکاره کيږي. مثلاً په سياسي ساحه کې د کارګری طبقې قدرت چې په خپل ماهيت کې متحد په مختلفو دولتي شکلونو کې تبارز موندلی شي. د ځانګړو هيوادونو د پرمختګ د مشخصو تاريخي شرطونو مطابق د پرولتاريا يعنې د سوسيالستي انقلاب د لارښوونکي قوي او د زيارايستونکو د ګڼ شمير غيرپرولتاري قشرونو تر منځ طبقاتي اتحاد تنګ يا پراخ ګرزيدلی شي.

له کاپتاليزم څخه سوسياليزم ته د انتقال د عمومي قانون په حيث د پرولتاريا طبقاتي مبارزه د شدت مختلفي درجې درلودلی او بيلا بيل شکلونه غوره کولی شي. په مختلفو هيوادونو کې د اقتصاد د سوسيالستي تحولاتو شکلونه هم پخپله تنوع کې توپير لري. د مشخصو شرطونو مطابق کاپتالستي صنعت ضبطيدلی او يا په داسي ترتيب چې پخوانيو بادارانو ته قسماً بونګه ورکړه شي، مصادره کيدلی، واردواره ملي کيدلی او يا په تدريجي توګه د دولتي کاپتاليزم د انتقالي شکل په وسطه سوسيالستي صنعت ته اوښتلی شي. د سوسيالستي صنعت د پرمختګ او د کرهنې د سوسيالستي تحولاتو د انکشاف وظيفې په ځانګړو هيوادونو کې په مختلفو شکلونو او ډول ډول ګړنديتوب سره سرته رسول کيږي. مثلاً د مرکزي او جنوب ختيزې اروپا په سوسيالستي هيوادونو کې د توليدي تعاون شکلونه ځانته خصوصيات لري.

د عمومي او خاصو قوانينو متقابل ارتباط يوه ديالکتيکي خبره ده او ځکه په هيڅ يوه هيواد کې عمومي قوانين په «خالص» شکل نه ليدل

کیږي. هغه تل یوازې په ځانګړي قانون کې او د ځانګړي قانون له لارې موجود وي. شوروي هیواد هغه لومړی هیواد دی چې سوسیالیزم ته د انتقال عمومي قوانین د هغه د مثال له مخې آزمویل شوي او مشخص شویدي. شوروي هیواد د سوسیالستي انقلاب د راوستلو او ترسره کولو ځلانده مثال وښود. له دې امله د اکتوبر انقلاب چې د ټولو هیوادونو دپاره یې د سوسیالیزم خوا ته اساسي لاره اواره کړه، د تجربې بین‌المللي اهمیت لري. مګر د شوروي هیواد په پرمختګ کې هم ډیر خصوصیتونه موجود و او زموږ په هیواد کې هم عمومي قوانینو په خالص شکل نفوذ نه درلود. ځکه خو نو نورو هیوادونو ته د هغه څه چې د شوروي اتحاد دپاره خاص شمیرل کیدل، د میخانیکي انتقال کوششونه د جدي اشتباهاتو موجب شول. له بله پلوه، د هغه څه چې د شوروي اتحاد په تجربه کې عمده او زیات مهم دي، د عمومي او بین‌المللي اهمیت څخه سر غړولو لا زیاتې خطرناکې اشتباوې تولید کړې. د نورو سوسیالستي هیوادونو د کمونستي او کارګري ګوندونو له خوا د دغو عمومي قوانینو څخه تخلیقي استفاده د هغوی د حتمي موفقیتونو موجب کیږي.

د شوروي ولس د همتي کار او د شوروي اتحاد د کمونست ګوند د نظري او علمي فعالیت له فیضه بشري ټولنې واقعي سوسیالستي ټولنه او د سوسیالیزم د جوړولو په باره کې داسې علم ترلاسه کړ چې په تجربه سره آزمویل شویدی. دا علم نن ورځ د نورو هیوادونو چې په موفقیت سره د سوسیالستي ټولنې اعمار ترسره کوي، په تجربه سره غني شویدی.

د سوسیالستي انقلاب او د سوسیالستي ټولنې د جوړولو اساسي اصول عمومي اهمیت لري مګر دا قوانین تل په خاصو قوانینو کې راښکاره کیږي او د خاصو قوانینو سره په وحدت کې وجود لري. آیا د کلمې په پراخ مفهوم سره خاص د ملي سره یو شی دی؟ موږ فکر کوو چې داسې نه ده.

ځانته او خاصې پدیدې دوه ډوله دي: الف) د ځانګړي هیواد دپاره خاص شی. ب) د یوې ډلې هیوادونو دپاره خاصې پدیدې (په دې صورت کې خاصې پدیدې د هغو ټولو دپاره عمومي دي).

مثلاً د مرکزي او جنوب ختیزې اروپا په سوسیالستي هیوادونو کې هغه عمومي پدیدې شته چې له شوروي اتحاد څخه یې بیلوي. پخپل وار هر دغه هیواد ځانته خصوصیتونه لري چې له نظره نه شي غورزول کیدلی.

په دی ترتیب خاص شیان په مختلفو شکلونو وجود لري. ددی خبری سبب دا دی چې یو لړ خصوصیات د نړیوال اقتصاد د دغو یا هغو کړیو د پرمختګ د مختلفی سویې څخه سرچینه اخلي او نور یې د انقلاب د بری د زماني توپیر، د عمومي تاریخي حالاتو څخه په کومو کې چې سوسیالیزم ته د ځانګړو هیوادونو انتقال ترسره کیږي د توپیر څخه سرچینه اخلي. په دی ضمن کې مختلف خصوصیتونه سره ګډیږي او یو پر بل باندی اغیزه کوي او د هغو نفوذ تل په یوه لوري کې نه وي.

اوس به په تفصیل سره دا خبره وڅیړو چې څنګه هغه خصوصیتونه چې په ځانګړو هیوادونو کې موجود دي له هغو خصوصیاتو سره چې د یوی دوری د عمومي تاریخي اوضاع څخه سرچینه اخلي څنګه ګډیږي.

لکه معلومه چې ده د امپریالیزم په دوره کې د سوسیالستي انقلاب د ترسره کولو او د سوسیالیزم خوا ته د انتقال دپاره د بیلا بیلو هیوادونو د آمادګۍ د درجې په باره کې مسئله په نوی طرز سره مطرح شوه. و . ای. لینین ثابته کړه چې څرنګه چې په کلي توګه د امپریالیزم سیستم د سوسیالستي تحولاتو دپاره آماده دی نو په دی سیستم کې د ځانګړو کم پرمختللو هیوادونو موجودیت د دغو تحولاتو مخه نه نیسي. مګر سوسیالیزم ته د انتقال شکلونه په پرمختللو کاپټالستي هیوادونو او کم پرمختللو هیوادونو کې یو رنګه نه شي کیدلی.

په ټولو کاپټالستي هیوادونو کې د ماقبل کاپټالستي مناسباتو بقایا شته دی لکن د هغو برخه توپیر سره لري. که چیری کاپټالستي مناسبات د معمول سره‌سم مستقیماً سوسیالستي مناسباتو ته اوښتلی شي نو ماقبل کاپټالستي مناسبات باید له اوله د یو لړ انتقالي شکلونو څخه تیر شي. د اقتصاد د سوسیالستي اوښتون شکلونه په دی پوری هم مربوط دی چې کوچنۍ شتمنۍ د یوه هیواد په اقتصاد کوم ځای نیولی دی. و . ای لینین لیکلي و چې «په دی کې هیڅ شک نشته چې له کاپټالیزم څخه سوسیالیزم ته انتقال په مختلفو شکلونو ددی په ارتباط ممکن دی چې آیا په یوه هیواد کې پراخ کاپټالستي مناسبات حاکم دی یا دا چې کوچنۍ اقتصاد پکې نفوذ لري» *.

له هغو عواملو څخه یو عامل چې د سوسیالستي انقلاب د شکلونو

*و . ای. لینین. کلیات، ۴۳ ټوک، ۷۸ مخ.

تنوع زیاتوی د هغه د عینی او ذاتی شرطونو د برابریدو بی‌توازنی ده.
و. ای. لینین لیکلی و چی «هر مارکسیست او حتی هر هغه انسان چی عموماً له معاصر علم سره آشنا وی نو دی پوښتنی ته به چی «آیا د پرولتاریا دیکتاتوری ته د بیلا بیلو کاپتالستی هیوادونو متوازن، هم‌آهنگ او متناسب انتقال ممکن دی؟» هرو مرو منفی ځواب ورکړی. په کاپتالستی نړۍ کی نه توازن، نه خو هم‌آهنگی او نه خو تناسب هیڅکله نه و موجود او وجود یی نه شو درلودلی. هر هیواد د کاپتالیزم او کارگری نهضت په تیره بیا کله یو او کله بل اړخ یا خصوصیت یا یو شمیر خصوصیتونو ته په وتلی توگه انکشاف ورکړیدی. د پرمختگ پروسه په غیرمتوازن ډول روانه وه» *. په ځینو کاپتالستی هیوادونو کی چیری چی په زیاته اندازه د سوسیالیزم مادی شرایط برابر شوی و، د سوسیالستی اوښتون ذاتی شرطونو کم انکشاف کړی و. په هغو هیوادونو کی چیری چی د مادی شرطونو د ټاکلی اقل حد په موجودیت کی هغه انقلابی طبقاتی قواوی زیاتی پخی شوی وی چی ددی قدرت یی درلود چی کاپتالیزم رانسکور کړی سوسیالستی اوښتون تر نورو د مخه ترسره شو. په دی ملحوظ چی کله و. ای. لینین روسیه د لا زیاتو پرمختللو کاپتالستی هیوادونو سره مقایسه کوله نو ویل یی چی زموږ دپاره د سوسیالستی انقلاب پیل کول آسان ولی سرته رسول یی مشکل و.

په هغو هیوادونو کی چی تقریباً په یوه وخت کی د سوسیالیزم لاره غوره کوی هم مشخص تاریخی شرطونه توپیر لری. البته د دغو هیوادونو د صنعتی پرمختگ د درجو توپیر له نظره نه شی غورزول کیدلی. په بیلا بیلو هیوادونو کی زراعتی مناسبات هم مختلف و، د هغو جغرافیاوی شرایط د خلکو د شمیر او ترکیب خبره هم پکی تفاوت لری. سربیره پر عینی شرطونو ملی عنعنی چی د یوه هیواد د تاریخی سابقی محصول شمیرل کیږی، د ملت (یا د ملتونو) چی په دی هیواد کی اوسی، خصوصیات او داسی نور عوامل د هر هیواد په پرمختگ باندی اغیزه کوی. د سوسیالستی ټولنی د جوړولو د شکلونو او طرزونو په ټاکلو کی د ټولو دغو شیانو له نظره غورزول ناجایز کار دی. لکه څنگه چی و. ای. لینین لیکلی و «مطلب په دی کی دی چی مختلف ملتونه په یو

---

* و. ای. لینین. کلیات، ۳۸ ټوک، ۳۰٤ مخ.

رنگه تاریخی لاره باندی ځی مګر هغوی له ښتو ډیرو کړلیچونو څخه تیریږی کاږه واږه او په ډول ډول تړو باندی روانیږی او دا چی زیات متمدن ملتونه له پخوا څخه د کم متمدنو ملتونو په نسبت په بل ډول خوځیږی» *.

دا خبره چی په معاصره پیړۍ کی لکه څنګه چی ک. مارکس او ف. انګلس اټکل وهلی و سوسیالستی انقلاب په عمده کاپتالستی هیوادونو کی په یوه وخت کی نه بلکه په ځانګړو هیوادونو کی چی یو په بل پسی د امپریالیزم له سیستم څخه وځی بریالی کیږی د سوسیالیزم خوا ته د انتقال د شکلونو تنوع زیاتوی. په دی وجه سوسیالیزم ته د انتقال د شکلونو ځانته خصوصیت نه یوازی د یوه هیواد د پرمختګ له سویی بلکه د عمومی تاریخی اوضاعو د تغییر سره هم ارتباط لری. ددی خبری د سنجش څخه پرته مثلاً نامکنه ده چی ددی علت معلوم شی چی ولی د اکتوبر د انقلاب له بری څخه وروسته په لومړۍ دوره کی د پرولتاریا دیکتاتورۍ چی به په ځینو هیوادونو کی برقراره شوه نو د شوراګانو شکل به یی غوره کړ ولی په معاصره دوره کی هغه د ولسی دموکرسۍ شکل غوره کوی.

د عمومی تاریخی اوضاعو بدلون تر اوسه پوری تر ټولو د مخه د لاندی شرطونو سره ارتباط درلود لکه: الف) څرنګه چی، د کاپتالستی سیستم څخه د ځانګړو هیوادونو د جلا کیدو خبره د نړیوالو جګړو په شرطونو کی وه نو ددی جګړو خصلت چی یورنګه نه و په انقلابی پروسو باندی کلکه اغیزه کوله. مګر سوسیالستی انقلابونه (مثلاً په کیوبا کی) له جګړی څخه پرته هم ترسره کیدلی شی او جګړی نه خو د هغو سرچینه او نه یی حتمی شرط شمیرل کیږی. د حوادثو دغسی جریان به ښایی چی په آینده کی د سوسیالستی انقلاب په انکشاف کی ډیر نوی شیان راولی. په دی برخه کی سړی له دی رویه هم قضاوت کولی شی چی د کاپتالیزم د عمومی بحران په پراختیا کی نوی سرحله د نړیوالی جګړی په ارتباط نه بلکه د دوو سیستمونو د مسابقی او مبارزی په شرطونو کی په داسی حال کی منځ ته راغی چی کله د سولی، دموکراسۍ، ملی آزادۍ او سوسیالیزم دپاره د ولسونو مبارزه نوره هم لمن خپروی.

---

* و. ای. لینین. کلیات، ۳۸ ټوک، ۱۸۴ مخ.

16*

ب) څرنګه چې د کاپتالیزم عمومي بحران له یو لړ مرحلو څخه تیرېږي او د امپریالیزم له سیستم څخه د نوو دولتونو د وتلو په اندازه وسعت مومي نو هغه شرطونه هم په کومو کې چې سوسیالستي انقلاب ترسره کېږي اصلا تغییر مومي. مثلاً هغه شرطونه په کومو کې چې په لومړي هیواد کې انقلاب ترسره کېږي له هغو شرطونو څخه په کومو کې چې سوسیالستي تحولات د نړیوال سوسیالستي سیستم په طرفدارۍ سرته رسول کېږي ډېر توپیر لري.

هر څومره چې لا نوي او نوي هیوادونه د کاپتالیزم له سیستم څخه وځي په هماغومره پیمانه په بین‌المللي مقیاس د طبقاتي قواو تناسب او په دې بنیاد په نورو هیوادونو کې د انقلاب شرطونه تغییر مومي. همدغه علت د هغو ولسونو چې د نورو په نسبت وروسته د سوسیالیزم په لاره پښه ږدي په پرمختګ کې ځانته خصوصیت راولي.

هغو تاریخي شرطونو په کومو کې چې د اروپا او آسیا په یو لړ هیوادونو کې خلکي دموکراتیک رژیم منځ ته راغی په روسیه کې د شوراګانو د پیدایښت له شرطونو څخه ډېر توپیر درلود. که چیرې شوراګانو کورنۍ جګړې ته د امپریالستي جګړې د بدلیدو په نتیجه کې قدرت لاسته وروست نو خلکي دموکراتیک جمهوریتونه د ضدفاشیستي ولسي جبهې په بنسټ باندې چې د ملي آزادۍ او ضدامپریالستي مبارزې په جریان کې منځ ته راغلي تشکیل شول. په تیره بیا دا خبره چې په اکثرو دغو هیوادونو کې د ولسي جبهې ائتلافي حکومتونه منځ ته راغلل، ډېر ګوندي سیستم وساتل شو او داسې نورې خبرې د تاریخي شرطونو د خصوصیتونو سره ارتباط لري.

نن ورځ ورونه هیوادونه د سوسیالیزم خوا ته خپله لاره په یوازې سر نه بلکه د شوروي اتحاد په ملاتړ او مرسته طې کوي. مثلاً د اقتصادي عمار ځیني خصوصیات او د بیلابیلو اقتصادي څانګو د پرمختګ د ګړندیتوب بل ډول تناسب ددې خبرې مولود شمیرل کېږي. دا هیوادونه د کار د پراخ ویش او د ټولې سوسیالستي اتحادیې د اقتصادي مرستې په اتکاء کولی شي چې پخپل ملک کې د درانده صنعت ټولې څانګې په عین وخت کې نه بلکه په لومړۍ مرحله کې هغه څانګې پرمخ بوزي چې د هغو دپاره مساعد اقتصادي شرطونه موجود دي. دا هیوادونه د شوروي اتحاد په نسبت چې د سوسیالستي صنعت د تاسیسولو د وظیفو په ترسره کولو

کې مجبور و چې په زیات ګړندیتوب سره د دراندہ صنعت تهولی ځانګی ایجاد کړی په بل وضعیت کې دی. د سوسیالستی اتحادیی سوجودیت د ځانګړو هیوادونو د سیاسی رشد په شرطونو باندی هم ستره اغیزه کوی. د شوروی اتحاد د ملاتړ له برکته د اروپا سوسیالستی هیوادونه د بهرنی مداخلی څخه بچ شول، هغه مداخله چی د شوروی اتحاد ولسونو پخپل وخت کی وزغمله.

نه یوازی د یوه هیواد په دننه کی بلکه په بین‌المللی مقیاس د طبقاتی قواو تناسب د طبقاتو د مبارزی په انکشاف باندی اغیزه کوی. او وروسته تر دی چی په یوه هیواد او په تیره بیا په څو هیوادونو کی د امپریالیزم محاذ ړنګ شی نو دا تناسب تغییر کوی. خبره په دی کی ده چی د امپریالیزم په جبهه کی درز اچول د کاپتالیزم سیستم په عمومی ډول کمزوری کوی او د هغو دولتونو چی د نورو په نسبت وروسته په سوسیالستی لاره باندی پښه ږدی د انقلابی قواو دپاره ددی درز د راتلونکی پراختیا زمینه برابروی. د سوسیالستی هیواد سوجودیت (په تیره بیا د سوسیالستی هیوادونو د اتحادیی سوجودیت) د آزادی‌بخښونکی نهضت د پرمختګ دپاره غښتلی بنسټ شمیرل کیږی. د هغو نوو هیوادونو چی د سوسیالیزم لاره یی غوره کړیده انقلابی قواوی ګوښه نه دی او هغوی ته د کاپتالستی سیستم په مقابل کی په مبارزه کی مقاومت کول نه یوازی په دی خاطر آسان دی چی دا سیستم تر یوی اندازی کمزوری شویدی بلکه په دی سبب هم آسان دی چی هغوی کولی شی چی د وړومبو سوسیالستی هیوادونو په ملاتړ باندی تکیه وکړی. بالاخره د هغوی پرمختګ په دی هم آسانیږی چی هغوی دی ته مجبور نه دی چی په ناسعلوسه لاره باندی د سوسیالیزم خوا ته روان شی بلکه کولی شی چی د هغو ولسونو چی پرمخ تللی دی له تجربی څخه استفاده وکړی.

ټول دا عوامل د سوسیالستی انقلاب راتلونکی پرمختګ ګړندی کوی او د سوسیالستی تحولاتو د ترسره کولو دپاره نوی امکانات برابروی.

د سوسیالیزم او کمونیزم جوړول د ملیونهاو هغو زیاراېستونکو فعالیت دی چی د مارکسیستی لینینی ګوند له خوا لارښودل کیږی. هرڅومره چی انسانان کمونیزم ته ورنژدی کیږی په هماغه پیمانه لا زیات پراخی ولسی پرګنی سوثر تاریخی خلاقیت ته راجلبیږی. ددی خبری معنی دا ده چی د ولسی خلاقیت سرچینی به لا په زیاته او ډیره پیمانه

سره راوسپړل شي او په دې ملحوظ به هغه ونډه زياته شي چي هر ملت يې د کمونستي ټولني د جوړولو د تجربې په عمومي گنجينه کې ږدي. ددې تر څنگ به په سوسيالستي لاره باندې د نويو هيوادونو په روانيدلو سره د هغې د جوړولو د شکلونو تنوع چي د ملتونو د ابتکار مولود دي هم زياتيږي.

د عمومي قوانينو څخه اصلاً زموږ مطلب د هغه قالب نه دی چي په هر هيواد کې ځني استفاده ممکنه وي. دا قوانين د کمونستي او کاگري گوندونو د هغه خلاق فعاليت چي د خپلې ستراتيژۍ او تکتيک په جوړولو کې يې ښيي ځای نه نيسي. مگر دا قوانين د کاپتاليزم پر ضد او د سوسيالستي ټولني د جوړولو دپاره په مبارزه کې عمومي شرطونه څرگندوي. په يو شمير هيوادونو کې د انقلابي قواو هم د بريو او هم د ماتو تجربه پخپله ددې درس ورکوي. ددې تجربې په نظر کې نه نيول (که څه هم حتی د ځينو موقتي گټو دپاره وي) بالاخره ځان ته د جزا ورکولو معنی لري.

د سوسيالستي انقلاب او د سوسيالستي ټولني د جوړولو هغه عمومي قوانين چي د سوسيالستي هيوادونو د کمونستي او کارگري گوندونو د نمايندگانو د مشورتي کنفرانس په اعلاميه کې د گډې تجربې په اساس څه دپاسه شل کاله پخوا تدوين شوي و په ژوند کې تاييد شويدي او د سوسياليزم د برې عيني شرطونه څرگندوي. ددې تر څنگ نوې تجربې امکان برابر کړ چي دا قوانين مشخص کړې شي او غني شي او ځيني تعريفونه تدقيق شي.

په دې ترتيب د سوسياليزم د عمل او انکشاف تجربې امکان برابر کړ چي په اوومه لسيزه او اتمه لسيزه کې په دې باره کې اصول تدوين کړې شي چي پرمختللي سوسياليزم د کمونستي فرماسيون د استقرار قانوني مرحله ده چي د ټولو هغو هيوادونو دپاره چي په سوسيالستي لاره روان دي او په آينده کې به پرې روان شي عمومي اهميت لري. د يو شمير هيوادونو دپاره دا نتيجه د هغوی پخوانۍ تجربه تعميموي او د نورو هيوادونو دپاره د هغو د راتلونکې تجربې زيرې ورکوي.

د شوروي اتحاد د کمونست گوند او د ورونو گوندونو په گډو کوششونو سره د نوي کمونستي فرماسيون او په تيره بيا د هغه د لومړې مرحلې په تشکل کې د قانوني مرحلې په حيث د پرمختللي سوسياليزم

بشپړه نظریه منځ ته راغله. په دې ضمن کې د شوروي اتحاد کمونست ګوند او وروڼه ګوندونه د هیوادونو د پرمختګ د سویې، ملي مشخصاتو او نورو عواملو له مخې په ځانګړو هیوادونو کې د پرمختللي سوسیالستي ټولنې د جوړولو د عمومي قوانینو د تبارز ځانته خصوصیتونو هم په نظر نیسي. مثلاً په شوروي اتحاد او نورو هغو هیوادونو کې چې د سوسیالیزم په لاره روان شول او کمزوري یا متوسط پرمختللي اقتصاد یې درلود وروسته تر دې چې د نوي نظام اساسات جوړ شول د پرمختللي سوسیالستي ټولنې د مادي او تخنیکي بنسټ په جوړولو لاس پورې شو. په هغو هیوادونو کې چې د سوسیالستي انقلاب تر راتګ پورې مولده قواوې اوچت معیار ولرې نو اوضاع یکې بل ډول وي. سره ددې هم په هر ځای کې چې مخصوص شرطونه هر ډول وي پخپل اساس باندې د سوسیالیزم تکامل مرحله، د پاخه شوي پرمختللي سوسیالیزم مرحله به د کمونیزم خوا ته په لاره کې حتمي، قانوني او نسبتاً اوږده مرحله وي.

نن ورځ مختلفو هیوادونو د نړیوال سوسیالستي سیستم په چوکاټ کې د سوسیالیزم د استقرار عمده مرحلې ښودلې دي. په دغه جمله کې هغه هیوادونه هم شته چې تر اوسه پورې یې له کاپیتالیزم څخه سوسیالیزم ته د انتقال دوره پوره نه ده بشپړه کړې. او د هیوادونو داسې ډله هم شته چې په هغو کې د سوسیالیزم اساسات جوړ شویدي او د هغو په وړاندې د پرمختللي سوسیالیزم د جوړولو وظیفې په عملي توګه دریدلې دي. او بالاخره داسې هیواد هم شته یعنې شوروي اتحاد چې د پرمختللي سوسیالیزم مرحلې ته رسیدلې دی.

د سوسیالستي ټولنې د استقرار او پرمختګ درې مرحلې په ګوته کیدلې شي. ۱) انتقالي دوره چې د سوسیالیزم په بری سره او د سوسیالیزم د اساساتو په جوړولو ختمیږي. ۲) د سوسیالیزم د اعمار د بشپړولو او د پرمختللي سوسیالیزم د ټینګولو دوره. ۳) د پرمختللي سوسیالیزم او کمونیزم ته د هغه د راتلونکې اوښتون دوره.

په دې حساب نو پرمختللي سوسیالیز د کمونستي فرماسیون د استقرار په عمومي پروسه کې کوم مقام نیسي؟ ددې مرحلې خصوصیت په دې کې پروت دی چې سوسیالیزم چې کله په پوره ډول او په قطعي توګه بریالی شي نو ددې امکان لري چې د کاپیتالیزم په وړاندې خپلې ټولې ښیګنې رابرسیره کړي. او په عین وخت کې پرمختللي سوسیالیزم هغه

مرحله ده چې په هغې کې کمونستي ټولنې ته د سوسیالستي ټولنې اوښتون تر سره کیږي.

د شوروي اتحاد په اساسي قانون کې ویل شویدي چې «په دې مرحله کې چې کله سوسیالیزم په خپل اساس باندې پرمختګ کوي نو د نوي نظام خلاقي قواوې، د ژوند د سوسیالستي طرز برتري په زیات بشپړ ډول راښکاره کیږي».

پخپل اساس باندې د سوسیالیزم پرمختګ البته ددې معنی نه لري چې سوسیالیزم د هغو خاپو او نواقصو څخه خلاص شویدی کوم چې د کاپيټالستي ټولنې څخه په میراث پاته شویدي. د پخوانۍ زمانې څخه پاتې شوي میراث نه یوازې په اخلاقي او معنوي بلکه په اقتصادي برخه کې هم لیدل کیږي. مثلاً د ښار او کلي تر منځ، د جسماني او دماغي کار او داسې نورو تر منځ لا غټ توپیر وجود لري. مګر د سوسیالیزم د استقرار د لوړیو مرحلو پر خلاف چې کله د و. ای. لېنین په قول سوسیالیزم لا «کلک بنسټ» نه درلود اوس سوسیالیزم دغسې بنسټ لري. سوسیالیزم نور پر هغو مولده قواو باندې چې له کاپيټالیزم څخه په میراث پاته شوي وي نه بلکه په هغه مادي او تخنیکي بنسټ باندې ډډه لګوي چې د سوسیالستي ټولنې د جوړولو په جریان کې ایجاد شوي دي او ځانته د تولید د کارکوونکو کدرونه لري. د سوسیالیزم د برې او ټینګیدو په نتیجه کې د اقتصادي مناسباتو هغه سیستم چې د سوسیالیزم خاصه شمیرل کیږي ټینګ شویدی او دا سیستم د کمونیزم د لوړې مرحلې د خپلو خاصو قوانینو له مخې انکشاف کوي.

سربیره پر دې سوسیالیزم په یوه داسې وحد ټولنیز سیستم مبدل شویدی چې اوچت تشکیلات لري. ستر تاریخي اختلافات (مثلاً د مترقي سیاسي نظام او د ټولنې د نسبتاً بیرته پاته تخنیکي او اقتصادي بنسټ تر منځ) چې په تیرو انکشافي مرحلو کې حتمي و له منځه وړل شوي او د ټولنیز ژوند د ټولو اړخونو د لا زیات همآهنګ پرمختګ د پاره شرطونه برابر شوي دي.

تاریخي تجربې وښودله چې سوسیالستي ټولنه واردواره د انتقالي دورې څخه په پوره پرمختللې او منکشف حالت کې نه زیږیږي. په شوروي اتحاد کې سوسیالیزم د څلورمې لسیزې په دوهمه نیمایۍ کې بریالی او په اساسي توګه ایجاد شو. مګر دری لسیزې پخوا تر هغې تیرې شوي وې

چې دا نتیجه اخیستل شوی وای چې په شوروی اتحاد کې پرمختللی سوسیالستی ټولنه جوړه شوی ده. د پرمختللی سوسیالیزم په باره کې د لومړی ځل لپاره په ۱۹۶۷ کال کې د ل. ای. بریژنف په راپور کې ذکر شوی و په کوم کې چې د اکتوبر د ستر سوسیالستی انقلاب د ۵۰ می کالیزې په مناسبت په شوروی اتحاد کې د سوسیالستی ټولنې د اعمار نتیجې راټولې شوی وی*. دا استنتاج په ۱۹۷۱ کال کې د شوروی اتحاد د کمونست ګوند په ۲۴ مه کنګره کې تایید او تعمیم شو چې کله وویل شول چې «د شوروی وګړو په همتی کار پرمختللی سوسیالستی ټولنه جوړه شوی ده» **.

پرمختللی سوسیالیزم د نوی ټولنې په استقرار کې قانونی مرحله ده کومه چې د سوسیالیزم په ذریعه د انکشاف تاکلی مرحلې ته د رسیدو معنی لری او دا هغه وخت دی چې کله د ټولنې د ژوند ټول اقتصادی، ټولنیز، سیاسی او معنوی اړخونه یو له بله سره مطابقت ولری. دا د ټولنیزو روابطو او مناسباتو واحد او بشپړ سیستم دی چې د تولید ګړندی رشد، پخپله د خلکو هراړخیز پرمختګ، د خلکو د هوساینې او کلتور د سویې د لا زیاتی اوچتیا دپاره او د سترو ټولنیزو وظیفو د سر ته رسولو په منظور د ګڼ شمیر امکاناتو برابرول پیشبینی کوی. همدغه پرمختللی سوسیالیزم دی چې د کمونیز خوا ته د انتقال شرطونه برابروی او دا شرطونه په کومه بله لاره نه شی ایجادیدلی. و. ای لینین په دی خبره ټینګار کړی و چې بشری ټولنه له کاپیتالیزم څخه کولی شی چې یوازی سوسیالیزم ته انتقال وکړی کوم چې د پخیدو څخه وروسته باید حتماً کمونیزم ته واوړی.

د کمونیزم دا دواړه مرحلې چې مشترک اساس لری خاص ټولنیز او اقتصادی فرماسیونونه نه شی شمیرل کیدلی.

په عین زمان کې د دغو دواړو مرحلو تر منځ تفاوت کم شمیرل هم ناسم کار دی.

---

* ل. ای. بریژنف. د لینینی تګ‌لاری په پیروی. ویناوی او مقالی، ۲، ټوک، ۹۲ مخ، مسکو ۱۹۷۳.

** «د شوروی اتحاد د کمونست ګوند د ۲۴ می کنګری مواد»، مسکو، ۱۹۷۱، ۳۸ مخ.

د فرماسیونونو د تبدیلی پر خلاف د عین یوه فرماسیون په دننه کی د بیلابیلو مرحلو تبدیلی د ټولنیزو انقلابونو څخه پرته تر سره کیږی سره ددی چی دا تبدیلی یو کیفی خیز هم وی. د کمونستی ټولنیز او اقتصادی فرماسیون په چوکاټ کی سوسیالیزم کمونیزم ته رااوړی او دا اوښتون د آگاهانه سوق شوی قانونی پروسی په حیث په تدریجی او منظم ډول تر سره کیږی.

د کمونستی فرماسیون د جوړیدو د داخلی قوانینو تر څنگ د هغی بهرنی قوانین هم شته. په یوه هیواد کی د سوسیالیزم له بری څخه نیولی د هیوادونو په تمامه ډله کی د سوسیالیزم تر تینگیدو پوری چی نړیوال سوسیالستی سیستم جوړوی او بالاخره د ټولی نړۍ د پاره په یوازنی او واحد ټولنیز او اقتصادی نظام باندی د هغه تر اوښتلو پوری ـ دا په نړۍ کی د سوسیالیزم او کمونیزم د استقرار قانونی مرحلی شمیرل کیږی.

د ځینو هیوادونو له خوا د هغه بیرته‌پاتی‌والی چی په میراث یی اخیستی و لری کول د سوسیالستی اتحادیی د تینگتیا او پرمختگ شرط دی. د ماقبل سوسیالستی فرماسیونونو پر خلاف چی د خاصو نظمونو په شکل یی د اقتصاد پخوانی شکلونه ساتلی و سوسیالیزم ټول دغه نظمونه له سره جوړوی او واحد سوسیالستی اقتصاد ایجادوی. دا پروسه هم دننه په ځانگړو سوسیالستی هیوادونو او هم په عمومی توگه ددی اتحادیی په چوکاټ کی ترسره کیږی.

هغه لویه قوه چی د سوسیالستی هیوادونو له گړندی پرمختگ سره مرسته کوی د دغو هیوادونو تر منځ متقابله مرسته او همکاری ده. په همدی کی یو هغه تر ټولو مهم خصوصیت پروت دی چی سوسیالیزم د ټولو متضادو ټولنیزو او اقتصادی فرماسیونونو او په لومړی سر کی له کاپتالیزم څخه بیلوی.

د کاپتالیزم پیدایښت او پرمختگ له لومړی سره پخپله د کاپتالستی هیوادونو تر منځ چی د رقابت، د بازارونو د اشغال، د اومو موادو د منابعو د نیولو او په نورو برخو کی یو له بله سره نښتل په سخته مبارزه کی روان و. په دی ضمن کی پرمختللو کاپتالستی هیوادونو بیرته پاته هیوادونه چی په هغو کی ماقبل کاپتالستی مناسبات پاته شوی و د خپلی باداری تابع کول.

د ورونو سوسیالستی هیوادونو متقابل مناسبات بیخی بل ډول خصلت لری. په سوسیالستی اتحادیه کی هغه دولتونه شامل دی چی د اقتصادی

پرمختګ مختلفې سویې لري. مګر دا دولتونه د ټولنیز او اقتصادي نظام او دولتي واک په مشترک طبقاتي ماهیت، د ګډو او هدفونو په اشتراک، د مارکسیزم او لینینیزم په واحده ایدیولوژۍ سره متحد شوي دي. متقابله مرسته چې په هغې کې د سوسیالستي انترناسیونالیزم اصل خپل موثر تبارز پیدا کوي د هغو د مناسباتو ترکیبي برخه تشکیلوي. د ورونو سوسیالستي هیوادونو تر منځ پراخه اقتصادي او کلتوري همکاري د هغو پرمختګ ګړندي کوي او د هغو له جملې څخه د هغو هیوادونو سره چې له زاړه نظام څخه یې تخنیکي، اقتصادي او کلتوري بیرته‌پاته‌والی په میراث اخیستی مرسته کوي چې ژر تر ژره هغه له منځه یوسي او دا کار د هغو د پرمختګ د سویو په برابرولو ختمیږي.

په نړیوال کاپتالستي سیستم کې چیري چې بې‌نظمي حکمفرما ده د هیوادونو د اقتصادي او سیاسي پرمختګ د بې‌توازنۍ قانون عمل کوي. برعکس سوسیالیزم د خپل ماهیت له مخې له بې‌توازنۍ څخه خلاص دی او سوسیالیزم منظم پرمختګ کوي. مګر څرنګه چې سوسیالیزم د کاپتالیزم څخه زیږیږي نو هغه د هیوادونو د پرمختګ په سویه کې له پخوا څخه پاته شوي توپیر واردواره نه ایسته کوي بلکه د زیاتي یا کمي اوږدي تاریخي دوري په ترڅ کې هغه له منځه وړي.

د سوسیالستي اتحادیې په چوکاټ کې د بیلابیلو هیوادونو د اقتصادي او سیاسي پرمختګ د بې‌توازنۍ د قانون عمل ته خاتمه ورکړه شوه. نوی قانون په سوسیالستي هیوادونو کې منځ ته راغی او دا د هغو د اقتصادي او کلتوري پرمختګ د عمومي کرښې د توازن قانون دی.

انترناسیونالیزم د سوسیالیزم ستره محرکه قوه وه او ده. د سوسیالستي هیوادونو په متقابلو مناسباتو کې یو له بل سره د مرستې او وروړګلویزې همکارۍ روحیه موجوده ده. شوروي اتحاد خپلې انترناسیونالستي فریضې ته نه‌بدلیدونکې وفاداري درلوده او لري یې. د شوروي اتحاد د کمونست ګوند په ۲۶ مه کنګره کې ل. ای. بریژنف وویل چې «موږ د نورو ورونو هیوادونو سره یوځای کله چې آزاد شوي هیوادونه له موږ څخه غوښتنه کوي نو د هغو د دفاعي قدرت د ټینګولو سره مرسته کوو. دې خبرې مثلاً په انګولا او ایتوپیا کې خپل مصداق وموند. تلاش کیده چې د کورنیو ضدانقلابیونو یا له بهر څخه د تیري په مرسته په دغو هیوادونو کې خلکي انقلابونه له ستوني ونیسي. موږ د انقلاب له صدور سره مخالف یو مګر د ضدانقلاب له صدور سره هم موافقت نه شو کولی.

امپریالیزم د افغانستان د انقلاب پر ضد رښتونی تاعلانه جګړه ونښلوله. دی خبری زموږ د جنوبی سرحد امنیت ته هم مستقیم خطر پیدا کړ. دغسی اوضاعو موږ مجبور کړو چی هغه نظامی مرسته وکړو چی دوست هیواد زموږ څخه غوښتی وه» *.

د نړیوالی سوسیالستی اتحادیی په ټولو هیوادونو کی د ملی اقتصاد د منظم او متناسب پرمختګ قانون چی په عمومی توګه د کمونستی فرماسیون قانون شمیرل کیږی نفوذ لری. هغه هیوادونه چی پخوا په اقتصادی لحاظ بیرته پاته و ددی قانون په اتکاء او د تولید د چابک پرمختګ د امکاناتو په استفاده چی سوسیالستی نظام د هغو خاوند دی خپل اقتصاد او کلتور پرمخ بیایی.

اقتصادی پرمختګ سوسیالستی هیوادونه نور هم په کلکه سره پیوندوی. په اوسنی وخت کی د تولید پراخ بوځای کیدل د ځانګړو هیوادونو له سرحد څخه وځی. دا د مولده قواو د بین‌المللی کولو په پروسه کی خپل مظهر پیدا کوی. ددی عینی پروسی پر اساس سوسیالستی اقتصادی توحید ترسره کیږی یعنی هغه سیاست چی د سوسالستی اتحادیی د غړو هیوادونو زیات توحید، د تولید تعاون او د ملی اقتصاد د پلانونو انسجام ته متوجه دی. د دغو هیوادونو د کار بین‌المللی ویش او تعاون د هغو د ولسونو تر منځ د تولیدی همکاری او د هغوی د اقتصادی توحید د پراختیا په معنی دی. د متقابلی اقتصادی مرستی د غړو هیوادونو د همکاری د نوری پراختیا او تکامل او د هغو د سوسیالستی توحید د نور پرمختګ مجموعی پروګرام (۱۹۷۱ کال) د ټولی سوسیالستی اتحادیی د عمومی ګټو سره د هر ځانګړی هیواد ګټی یوځای کوی. د سوسیالستی هیوادونو تر منځ همکاری د سوسیالستی تولیدی مناسباتو په اساس ترسره کیږی او ځکه د ولسونو متقابله همکاری پیشبینی کوی او د هغوی کوششونه په منظم ډول سره یوموټی کوی. ددی متقابلی مرستی له برکته د هغوی د اقتصادی او کلتوری پرمختګ د سویو تدریجی توازن هم تر لاسه کیږی** .

---

* «د شوروی اتحاد د کمونست ګوند د ۲٦ کنګری مواد». مسکو، ۱۹۸۱ کال، ۱۲ — ۱۳ مخونه (په روسی ژبه چاپ).

** «انترناسیونالیزم او د سوسیالستی اقتصادی توحید مسئلی» مسکو، ۱۹۷٤ نوموړی اثر ته رجوع وکړی.

ددی ټولو خبرو څخه موږ دا نتیجه اخلو چې سوسیالیزم نه یوازی د خپل داخلی انکشاف خاص قوانین بلکه داسی خاص قوانین هم لری چې د سوسیالستی هیوادونو تر منځ په مناسباتو کی نفوذ لری او د نړیوال سیستم په حیث د هغو خاصه شمیرل کیږی.

* * *

پورته خیړل شوی مسئلی لکه چې وموویل د هغو تمایلاتو پر ضد چې له مارکسیزم او لینینیزم سره دښمنی لری د مبارزی دپاره ستر اهمیت لری.

د ځانګړو هیوادونو د پرمختګ عمومی قوانینو او خصوصیاتو د متقابل ارتباط سم ادراک د کمونستی او کارګری ګوندونو د انترناسیونالستی سیاست اساس ږدی مګر یو له بله سره د هغو مقابله کول هرومرو د پرولتاری انترناسیونالیزم څخه د انحراف او د بورژوایی ناسیونالیزم باطلاق ته د ښوییدو موجب کیږی.

سیاسی او تیورتیک اشتباهات اکثراً نه یوازی طبقاتی بلکه ادراکی ریښی هم لری. ادراکی اشتباهات د عمومی او خاصو قوانینو د دیالکتیک په نه درک کولو، د هغو څخه د یوی ډلی په حتمی بللو او یو له بله څخه د هغو په جلا کولو کی پراته دی. د خاصو قوانینو حتمی بلل چې د تجدیدنظرغوښتونکو خاصه ده ډیر خطرناک دی. تجدیدنظرغوښتونکی د ځانګړو هیوادونو د پرمختګ ځانته خصوصیت د سوسیالیزم د جوړولو د عمومی قوانینو سره په تضاد کی اچوی او دا خاص قوانین د عمومی قوانینو تردید شمیری.

تجدیدنظرغوښتونکی نه غواړی چې دا مسلم حقیقت ومنی چې سوسیالیزم سره ددی چې له اوله په ملی حدودو کی پیدا کیږی ولی د خپل ماهیت له مخی هغه بین‌المللی دی. هغوی عقیده لری چې ګنی د اکتوبر د ستر سوسیالستی انقلاب تجربه په خپل اساس کی عمومی اهمیت نه لری او ګنی دا چې په هر ځانګړی هیواد کی د سوسیالستی ټولنی جوړول پخپله او کاملاً خاصه طریقه جریان درلودلی شی چې د هغو طریقو سره چې د شوروی اتحاد ولسونه غوره کړی وه هیڅ مشترکه وجه نه لری. دغسی تبلیغ د سوسیالستی هیوادونو تفرقی ته متوجه ده.

د ځانګړو هیوادونو د خاصو ممیزاتو په نظر کی نه نیول هم د

پرولتاري انترناسيوناليزم له اصولو څخه د لرې کيدو موجب کيږي. دا خبره یو شمير هيوادونو ته د نورو هيوادونو د تجربې د بې‌سنجشه انتقال تمایل منځ ته راوړي. د دوگماتيزم او د گوښه‌والي پيروان سوسياليزم ته د انتقال تنوع له نظره غورزوي، کمونستان د پراخو پرگنو څخه جلا کوي او هغوی د افراطي کينو او ماجراغوښتونکو عملياتو ته تشويق کولی شي.

و. ای. لينين تل په ټولو هيوادونو باندې د یوه قالب د تحميلولو هم هژمونيستي کوششونه او هم د ملي خصوصياتو څخه انحراف چې په هغو عناصرو پورې اړه لري چې له گوند څخه بې د محدود گروپ د جوړولو دپاره هلې ځلې کولی کولی په کلکه غانده. هغه ويلي دي چې تر هغو پورې چې د ولسونو او هيوادونو تر منځ ملي او دولتي توپيرونه شته د ټولو هيوادونو د کمونستي او کارگری نهضت د بين‌المللي تکتيک يووالي، د تنوع له منځه وړل نه، د ملي توپيرونو ايسته کول نه بلکه د کمونيزم د اساسي اصولو څخه داسې استفاده ايجابوي چې په خصوصياتو کې د دغو اصولو شکل ته معقول تغيير ورکړي.

دا د ټولو گوندونو څخه د مشخصو اوضاعو له تحليل سره خلاق برخورد غواړي. په دې کې هر گوند په خپلواک طرز سره د خپلې تجربې او د ورونو گوندونو د تجربې په اتکاء د سوسياليزم دپاره د مبارزې د طريقې د ټاکلو مسئله حل کوي. ملگری ل. ای. بريژنف ويلي دي «هر ډول خطاالسيرونه که غوره شي بالاخره کمونستان وظيفه لري چې پرگنې اصلي هدف يعنې سوسياليزم ته بوزي. د اکتوبر د انقلاب د برې دپاره د مبارزې تجربې وښودله چې په انقلابي فعاليت کې د تکتيک بدلون او د نوو متحدينو د پيدا کولو دپاره گذشتونه امکان لري. مگر موږ په بل شي هم يقين پيدا کړ او هغه دا چې په هيڅ صورت بايد اصول د تکتيکي گټو قرباني نه کړی شي» *. او دا اصول د سوسياليزم د استقرار او پرمختگ د عمومي قوانينو د منلو څخه سرچينه اخلي.

د تجديد نظرغوښتنې (ريويزيونيزم) پر خلاف چې يوازې د سوسياليزم خوا ته د لارو په ملي خصوصياتو باندې په استناد سره خپل اپورتونيستي

---

* ل. ای. بريژنف. د لينيني تگ‌لارې په پيروی. ويناوې او مقالې، ۶ ټوک، ۵۹۳ مخ.

ماهیت تر نقاب لاندی پټوی، مارکسیزم او لینینیزم واقعاً دا خصوصات په نظر نیسی، مارکسیستی او لینینی تیوری د ټولنیز او اقتصادی فرماسیون د پرمختګ د عمومی قوانینو او په ځانګړو هیوادونو کی د هغو د ښکاره کیدو د مخصوصو شکلونو تر منځ رښتونی متقابل ارتباط راسپړی او په دی ترتیب کلک نظری اساس جوړوی چی پر هغه باندی د کمونستی ګوندونو پرولتاری انترناسیونالیزم ولاړ دی. د کمونست ګوندونو موفقیتونه او په یو شمیر هیوادونو کی د هغو د قواو رشد ښیی چی د هر بیل هیواد د مشخصو شرطونو مطابق د مارکسیزم څخه خلاقه استفاده څومره ګټوری نتیجی ورکوی.

د شوروی اتحاد د کمونست ګوند په ۲۶ مه کنګره کی یو ځل بیا هغه مفکوره تایید شوه چی د هغی له مخی د سوسیالیزم د عمومی قوانینو د لارښوونکی رول منل په عین وخت کی په بیلابیلو سوسیالستی هیوادونو کی د دغو قوانینو د ښکاره کیدو د خاصو شکلونو سنجش پیشبینی کوی. کنګری ته په راپور کی ویل شوی و چی «د سوسیالستی انقلاب شکلونه، طرزونه او طریقی په هیڅ یوه موجود سوسیالستی هیواد کی د پردی تجربی بی‌سنجشه تکرار نه و. د آلمان دموکرتیک جمهوریت یا پولینډ، هنګری یا کیوبا، منګولیا یا یوګوسلاویا، لنډه یی دا چی ټولو سوسیالستی هیوادونو انقلاب په خپل طرز سره او په هغو شکلونو ترسره کړ کوم چی د هر یوه دغه هیواد د کورنیو طبقاتی قواو د تناسب، ملی نظم او بهرنیو اوضاعو له خوا غوښتی و» *.

د مارکسیزم او لینینیزم عمومی اصولو ته د وفادارۍ او د بیلابیلو هیوادونو د ملی خصوصیت د سنجش تر منځ هیڅ ډول تضاد نشته او وجود نه شی درلودلی. همدا اصول د ګڼ شمیر مختلفو مسئلو د خلاق او معقول تحلیل تر ټولو سمه وسیله ده کومی چی د سلګونو ملیونو خلکو او لسګونو هغو ملتونو چی نن د سوسیالستی ټولنی د جوړولو په لاره روان دی راپورته کیږی. د مارکسیزم او لینینیزم نه‌فنا کیدونکی تعلیمات چی د اکتوبر د ستر سوسیالستی انقلاب او د سوسیالستی اتحادیی په هیوادونو کی د سوسیالیزم د جوړولو په تجربه سره غنی شوی دی د جاویدانی لمر په شان د کمونیزم خوا ته د بشریت لاره روښانوی.

---

* ل. ای. بریژنف. د شوروی اتحاد د کمونست ګوند د ۲۶ کنګری مواد. مسکو، ۱۹۸۱ کال، ۱۷ مخ.

# د مندرجاتو فهرست

Dzwa:k Mənd

## گرانو لوستونکو !

د «پروگرس» نشراتي مؤسسه هیله لري چې تاسي د کتاب د مضمون او لهجې او همدارنګه د هغه د طباعتي هنر او ډیزاین په هکله خپلې نظریې او پیشنهادونه په لاندیني پته راواستوئ: شوروی اتحاد، مسکو، زوبوفسکی بولوار ۱۷، د «پروگرس» نشراتي مؤسسه.

